دیوان

# اشرف خان هجري

تحقيق، ترتيب او سمؤنه

همیش خلیل

پیش لفظ

پروفیسر ډاکټر راج ولي شاه خټک

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

# دیوان

# اشرف خان هجري

تحقیق، ترتیب او سمون

## همیش خلیل




پیش لفظ

پروفیسر ډاکټر راج ولي شاه خټک

پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي



د پښتو اکېډمۍ د مطبوعاتو سلسله نمبر ۵۳۰

---

| | |
|---|---|
| دکتاب نوم ——— | ديوان اشرف خان هجري |
| مصنف ——— | اشرف خان هجري |
| تحقيق ترتيب ——— | همېش خليل |
| خورونکے ——— | ډائرېکټر پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي |
| کتابت ——— | لطف الله |
| چاپ ——— | سنه ۲۰۰۱ء |
| شمېر ——— | ۱۱۰۰ |
| قيمت ——— | |

د محمد جاويد خليل په اهتمام په ملت پرنټرز لاهور کښې چاپ شو او د پښتو اکېډمۍ پېښور يونيورسټۍ نه خور شو۔

# پيش لفظ

اشرف خان هجري د پښتو د ادب او د پښتانه سياست يو نوموړے شخصيت دے. په سياست کښې کهٔ هر څو متنازعه حيثيت لري ـ ولې د شاعر په حيث د پښتو د کلاسيکي دور او شايد چې د هر دور خوږ ژبان او خوش بيان شاعر دے ـ د هجري شاعري د درد او لذت ، فن او صنعت او قادرالکلامۍ يو ځانګړے او منفرد فن دے ـ د هجري د شاعرۍ د ډېرو فني اړخونو نه سوا يوه په زړهٔ پورې خبره د پښتنو ثقافت پهٔ حقله د هغهٔ پوخ شعور دے ـ چې بيان ئې پهٔ شعر کښې ځائے پهٔ ځائے موندے شي ـ تر دې چې د هغه وخت جامه، کالي او نور رواجي څيزونه ئې ياد کړي دي ـ د نرمو او لطيفو جذباتو دا شاعر قدرت پهٔ داسې ماحول کښې او پهٔ داسې وخت کښې زېږو لے وو چې شايد د دهٔ شاعرانه مقام د تعيّن او فکري فروغ د پاره موزون نهٔ وو ـ کهٔ نهٔ وے ـ نو دا به د خټل دور د خټل مکتب فکر سختي ګرځېدلے وے ـ يوه لويه خوبي ئې دا هم وه چې د عظيم خوشحال خان خټک زوئے وو. او شايد هم د هغه خوبي ئې د شعر د نمر د تندر نيوو بسبب شوے هم دے ـ د خوشحال خان خټک پهٔ عصر کښې هغه يو شاعر د دې جوګه نهٔ ښکارېږي ـ چې د دهٔ ستر روښانه نمر پهٔ موجودګۍ کښې ځلا وکړے شي ـ

هجري د خوشحال خان د فن وارث هم وو - او جانشين هم - ولې قدرت د قسمت په داسې کرداب کښې کېر کړے وو چې ترې د وتلو څه امکان يې نه وو. په ژوند کښې ناکام، په کورنئ او مغلي سياست کښې ناکام، د خپلو وروڼو، خپلوانو عزيزانو دلاسه دَر په دَر زنداني دا بناغلے شاعر د ستر خوشحال خان خټک مشر زوے وو - په کال ۱۰۴۸ھ په روژه ۱۶۳۵ء کښې زېږېدلے دے. د خوشحال خان بابا نه پس يې د قام مشري هم کړې ده او د خپلې کورنئ د علمي او ادبي روايت ساتندويه هم دے - ولې د ژوند لويه او اهمه برخه يې د مغل په قيد کښې د دکن په زندان کښې تېره کړې ده.

په کال ۱۰۹۲ء کښې گرفتار کړے شوے دکن ته لېږلے شوے وو - او هم د مسافرئ په حال کښې هم په دغه ځاے په کال ۱۱۰۶ھ کښې يې وفات موندلے دے - د ژوند په شان يې مرګ هم متنازعه دے. چې فطري وو که غير فطري.

هجري د پښتو شاعرئ او د فارسي شاعرئ د خپل وخت معتبر نوم دے. ولې سره د دې د دهٔ د مقام تعين لا ترننه څهٔ ونهٔ شو - ولې چې ديوان يې هم هغه شان نورنهٔ شو - لکه څنګه چې د دهٔ حق هم وو او د عصر روايت هم. د ديوان ډېرې قلمي نسخې يې انګرېزانو ځان سره انګلستان ته وړي دي. او هم هلته په لائبرېريو کښې محفوظ دي - دا هم د هجري د هاغه قسمت کاني دي - کومې چې يې ژوند سره شوې ښکاري.

د پښتو شاعرئ د ارتقائي يون د تاريخ شعر چې په کوم دور کښې تندي موې د خوشحال خان د شروع کړي ادبي تحريک لهٔ ټولو ړومبے او د معيار په لحاظ بناغلے او استاذ شاعر هجري پاتې شوے دے - خو د نامعلومو وجوهاتو په بنا د دهٔ کلام دومره تشهير نهٔ دے موندلے - لکه څومره چې پکار وو.

د پښتو ستر محقق او نقاد ښاغلي همېش خليل وړاندې هم په وړومبي ځلې دده ديوان راپيدا کړے او شائع کړے وو ـ او بيا يې د نوي سره د پښتو اکېډيمه دپاره ترتيب کړو ـ په دې اهم کار همېش صاحب د ډېرې ستائينې وړ دے. زهٔ په دې اهمه ادبي کارنامه د همېش خليل شکريه ادا کوم ـ

ددې ديوان د اشاعت په لړ کښې زهٔ د پېښور يونيورسټۍ د موجوده وائس چانسلر ښاغلي پروفېسر ډاکټر ذوالفقار ګيلاني د زړهٔ د اخلاصه مننه کوم چې ددې ديوان اشاعت د هغهٔ په نګرانۍ کښې د پېښور يونيورسټۍ په مالي مرسته ممکن شو ـ زهٔ د ښاغلي ډاکټر ثناء الله ټرېژرار پېښور يونيورسټۍ هم ممنون يم. چې د مالي امورو کار يې اسان کړو ـ د اشاعت او طباعت د څانګې چلومنګرو ښاغلي جاويد خليل ، قاضي حنيف الله او لطف الله شکريه ادا کوم ـ چې د اکتاب يې په ډېر محنت چاپ ته تيار کړو ـ او هم په دغه لړ کښې د ملت ايجوکېشنل پرېس لاهور مالک د ښاغلي ګوان هم بې حده ممنون يم ـ چې د هجرې ددېوان د اشاعت ذمه واري يې په ښهٔ شان تر سره کړه ـ

ددې سره لوستونکيو ته دا وضاحت هم ضروري ګڼم ـ چې ددې ديوان کتابت په هغه ورځو کښې شوے وو ـ کله چې نوي املانهٔ وه رائج کړے شوې ځکه نو ديوان په زړهٔ املا کښې دے ـ البته نور کار په نوي املا کښې تر سره کړے شوے دے ـ د لوستونکيو ددغه رنګ ګړاؤ دپاره اکېډيمي معذرت خواه ده ـ خو دکتاب شائع کول د وخت اهم ضرورت وو ـ او دغه ضرورت تر نظر وساتلے شو ـ

پروفېسر ډاکټر راج ولي شاه خټک
ډائرېکټر پښتو اکېډيمي
پېښور يونيورسټي

# مقدمه

## حالات :-

اشرف خان هجري دکال سنه ۱۰۴۴ [۱] دروژې په میاشت زېږېدلے دے . ددهٔ د زېږېدنې کال خوشحال خان خټک یو قطعه کښې داسې بیان کړے دے . ؎

بہ زاویاے مه روزه پاس اول شب
بزاد اشرف واندر کنار دایه بخفت
چو بود وقت بهار و شگفتن گلها
حساب وے آمد "بهار اهل شگفت"

(۱۰۴۴ھ)

اشرف خان هجري لکه دخپل عظیم پلار هم سردار وهٔ او هم شاعر وهٔ . په ړومبي ځل کال ۱۰۶۳ - ۱۰۶۴ھ کښې دخپل نیکهٔ بهادرخان (دخوشحال خان ترهٔ) دکمان لاندې په "غورېزه" دسردار شېر محمد خان بنگش خلاف جنګ کښې شامل شو . دجنګ په نتیجه کښې څهٔ وخت چې بنګش په ماتې شول . هجري ددوئ دتعاقب هڅه وکړه - ولې خپل نیکهٔ بهادرخان منع کړو . دغه جنګ کښې زمونږ شاعر د

---

[۱] دکوهاټ مشرق ته د پنځلسو شپاړسو میلو په فاصله کښت کلي سره د یو مقام نوم .

خپل شجاعت اومړانې ښهٔ مظاهره وکړه.

په کال سنه ۱۰۷۲ﻫ کښې دمندړو او اکوزیو خلاف یو بل جنګ کښې هجري په وړوبې ځل دخپل پلار په کمان کښې شامل شو. دغه جنګ کښې سعادت خان اوبهرام خان هم شریک وو. ددې جنګ وجه افضل خان ختک "تاریخ مرصع" کښې دخوشحال خان دبیاض په حواله دابیانوي چې څهٔ وخت خوشحال خان ختک په کال سنه ۱۰۷۰ﻫ کښې د تیراه له مهمه واپس شو، نو بهاکوخان دمندړو اواکوزیو دیو لښکر سره دخپل ورور سېدا خان دقتل اوبغېله دخوشحال خان له لاسه په یو جنګ کښې دژوبل کېدو دانتقام په غرض په ختکو حمله وکړه. ددواړو قبیلو ترمنځه داجنګ یو میاشت دوان وهٔ - اخر بهاکوخان ماتې وکړه - اوسره دخپل لښکره واپس شو.

سنه ۱۰۷۴ﻫ کښې څهٔ وخت چې خوشحال خان ګرفتار کړے شو اوبیا له پېښوره یې ډیلي ته روان کړو - اواکوړې ته دسرکاري بدرګې سره ورسېدو، نو باوجود ددې چې خوشحال خان له وړومبیه، اشرف خان هجري اودقبیلې خلقو ته دجنګ نهٔ کولو او ټراسته وسېدلو پیغام لېږلے وهٔ - بیا هم په خپل یو نظم ترکیب بند دوالـقا فتین کښې وائې چې څهٔ وخت دوي خیرآباد ته ورسېدل، نوښهره خوا خلق ولاړ وو - اوکوم سرکاري اهلکار چې ددوئ سره وو، په ویره وو - ځکه چې دچا هم دجنګ نهٔ کېدلو خیال نهٔ وهٔ - او زما هم دغه خیال وهٔ چې اوس به دیو طرف نه بېرغ راپورته شي - اوداسې جنګ به وشي چې هرخوا به دمړیو ډېرېي ولګي - ولې جنګ ونهٔ شو - خدائے پاک ته به داسې منظوره وه - اوزهٔ داټک دریابهٔ ته ورسېدم - دذکرشوي نظم په یو بل بند کښې بیا داهم وائې، چې ما اشرف خان ته دتوري پورته کولو اشاره اوکړه - ولې هغهٔ زما په نصیحت عمل ونهٔ کړو.

دخوشحال خان له خوا دجنګ نه کولو دپیغام او وروستو بیا اشرف خان هجري ته دتورې پورته کولو داشارې په حقله دوست محمد خان کامل مومند لیکي.

"معلومیږي چې وړومبے خو خوشحال خان خپلې قبیلې ته دپرامنه وسېدلو تلقین کړے وو - وروستو چې سید امیرخان خوافي هندوستان ته دهغه دبوتللو حکم وکړو، نو خوشحال خان زړه کښې دهنګامه ارایئ خیالات پیدا شول." (ترجمه)

(خوشحال خان خټک ص ۸۹-۹۰)

ډيلي ته دخوشحال خان خټک رسېدلو نه پس دخدایار خلیل اوجګرام وغیره په لمسه دخوشحال خان دمصلحت او صلاح مشورې نه بغیر هجري دغه وخت د کابل صوبه دار سید امیرخان خوافي له کابل ته ورغلو - او بیا څه موده پس هغه هجري هم ګرفتار کړو - خوشحال خان دهجري ددغه ګرفتارئ باعث دهغه ورور بهرام خان ګڼي او وائي. ـــه

مش ورور دې په زندان کړو ته خاني کړې
داخاني دې شه په څان پورې حرامــه

دغو ورځو کښې دخوشحال یو دوست او خیرخواه دلبرهمت خان هم کابل کښې وه - هغه چې دهجري له ګرفتارئ نه خبر شو، نو سید امیرخان خوافي ته ورغلو او هجري يې پخپل ضمانت رها کړو - دهجري دازادولو په دلبرهمت خان داحسان نه علاوه یوه وجه دا هم وه، چې دپلار او زوے په غبرګه ګرفتارئ علاقه کښې بدامني هم پیدا شوې وه - ځکه دحالاتو په ځائے راوستلو دپاره دهجري پرېښودل دحالاتو مصلحت وه -

بیا څه وخت چې دخوشحال خان خټک دآزادولو ټول کوششونه ناکام

شول - او د هغهٔ بال بچ "سیکوي" کښې پناه واخسته. دغه وخت امیرخان خوافي اشرف خان هجري دوباره گرفتار کړو - د هجري ضامن دلېرهمت د سید امیرخان خوافي په دغه حرکت ډېر زړهٔ بد ے شو - د "تاریخ مرصع" د مؤلف افضل خان خټک د بیان مطابق د هجري په دغه دوباره گرفتارېدو د دلېرهمت او کابل د صوبېدار سید امیرخان خوافي تر مینځه نوبت تر جنگه رسېدلے وو - ولې خیر شو. نتیجه دا شوه چې اشرف خان بیا له قیده آزاد شو - دغه ځل آزادېدو نه پس هغه چېل کلي اکوړي ته لاړ - او چې امن وامان شو - نو د خوشحال خان اهل وعیال او نورو خپلوانو چې کلے یې پرېښے وو، واپس کلي ته راغلهٔ -

کال ۱۰۷۸ - ۷۹ھ کښې د سید امیرخان خوافي ځائے مهابت خان مرزا لهراسپ د کابل صوبه دار مقرر شو او د خپلو فرائضو سمبالولو د پاره چې څهٔ وخت کابل ته روانېدلو، نو خوشحال خان هم دغه وخت ازاد شوے او مهابت خان سره وطن ته رارسېدلے وو. نو د حکومت لهٔ خوا د ننگرکوټ د قلاء په تعمیر د احتجاج او سرکاري منصب نهٔ قبلولو پهٔ وجه مهابت خان د خوشحال خان خلاف شو.

دغو ورځو کښې خوشحال خان د ترېي او بولاق تر مینځه د اختلافاتو ختمولو پهٔ غرض لاچېر ته لاړ وو - د خوشحال خان او مهابت خان تر مینځه د خفگان هم دغو شپو ورځو کښې اشرف خان هجري مهابت خان سره پهٔ خیرآباد ولیدل. اگر کهٔ مهابت خان د خوشحال خان نه د خفگان پهٔ وجه د پرده د اشرف خان هجري هم خلاف وو - ولې د سیاسي مصلحت لهٔ مخه یې د خلعت پهٔ ورکړه هجري خپل طرفدار کړو - او خان سره یې لهٔ خیرآباده تر نوښهره بوتلو - او نوښهره کښې د رخصته ولو وړاندې یې ورنه ددې خبرې مچلکه واخسته چې هغه (هجري)

به خېل پلار پخپله علاقه نهٔ پرېږدي - خوشحال خان لاچېرکښې ناروغه پروت وهٔ ، ولې هم د ناروغتیا پهٔ حال کښې " خوړې " ته لاړ - او بیا څهٔ وخت چې هغه د اشرف خان هجري نه د مهابت خان د چلګي له حقیقته خبر شــو نو وې ویئیل -

" بایده چې داهسې چلکه یې نهٔ ورکولے - کښل یې ورکړے وے چې دَفساد ضامن یم - فساد به ونهٔ کا - "

(تاریخ مرصع ص ۳۰۰)

نو د چلګي باوجود بیا هم د کابل صوبه دار مهابت خان د هجري پهٔ کارګزارۍ مطمئن نهٔ وهٔ - ځکه یې د خوشحال خان پرېښانولو پهٔ غرض بهرام خان ته لاس ورکړو - بهرام خان چې د سردارۍ ډېر خواهشمند وهٔ - وړاندې نه د خپل پلار او ورور (هجري) خلاف وه - ځکه چې حکومت د خوشحال خان د قېد پهٔ دوران د قبیلې او علاقې سرداري اشرف خان ته ورکړې وه - او چونکې خوشحال خان هم د اشرف خان هجري پهٔ سردارۍ رضا وهٔ - نو ځکه یو خوا کهٔ بهرام خان د ورور سره حسد کولو ، نو بل خوا د پلار نه هم خوشحاله نهٔ وهٔ - هم دغه وجه وه چې بهرام خان مهابت خان ته دا یقین ورکړو چې هغه به د خپل پلار خلاف هر هغه کار کوي ، دکوم د پاره چې هغهٔ ته حکم ورکولے شي - عن کهٔ ضرورت شو نو د پلار او ورور (هجري) له قېد ولو به هــم لاس وانخلي - مهابت خان هم بهرام خان ته لهٔ خپله جانبــه د هر قسم امداد او تعاون ورکولو یقین ورکړو -

کال ۱۰۸۴ھ / ۱۶۷۳ء کښې څهٔ وخت چې خوشحال خان د مغلو ســـره د روغې پهٔ ضمن کښې مشورې د پاره د دریاخان اپریدي خط ورسېدو ، نـــو

خوشحال خان اشرف خان هجري دروغې په باره کښې دخبرو اترو دپاره دریاخان ته خیبر له وُلیږلو - دریاخان اپریدي او ایمل خان مومند دواړو مغلو سره دروغې جوړې تابیا کړې وه -

د اشرف خان هجري په وررسیدلو دخبرو اترو په مینځ کښې دهجري دَزړهٔ کارنهٔ کیدلو په وجه دروغې جوړې دا کوشش شنډ شو - او اشرف خان هجري واپس لاړ -

دغه مینځ کښې مغلو دخوشحال خان خلاف یوه منصوبه جوړه کړه - خوشحال خان چې دغو ورځو کښې په "توتکي"[۱] وهٔ - مهابت خان، بهرام خان ته وویل، چې پلار لهٔ "توتکي" وُباسه کښې سرداري به اشرف خان ته ورکړې - دبهرام خان ددغه کوشش په نتیجه کښې د پلار او زوئے ترمینځه دجرات خواؤ شا خو جنګونه وُشول - دغو جنګونو کښې عابد خان او اشرف خان دواړه ورونه دپلار په طرف وو - د یو جنګ په وخت دبهرام خان یو ملګرے عظمت داشرف خان د نیزې په ګوزار ژوبل شو - بیا عابد خان هم په نیزه وواههٔ او له اسه ګوزار پرېوت نو عابد خان له عظمت نه تیر شو او دبهرام خان یو بل ملګري محموتي باندې یې حمله وُکړه - هغه یې هم له اسه لاندې پرېوست او خپله هم له اسه لاندې پرېوت - د محموتي سره غاړه غړۍ په جنګ شو - محموتي له یې سر په او بو کښې وُمانلهٔ او وربانډې دپاسه پرېوتو - سید دبوړید پرې راغلو - محموتے یې په توره وُواههٔ - عابد خان ترې پاسیدو - دغه وخت خوشحال خان په عظمت دتورې وار وکړو - اشرف خان هجري په پلار غږ وکړو، چې "د ساتلو دے" ولې

---

[۱] چراټ پوځنهې سره د یو کلي نوم

خوشحال په عظمت د کوزار حکم کړے وه - په دا منځ کښې جليل خان خيل په توره وواهه او مړيې کړو -

کال ۱۰۸۵ھ / ۱۶۷۴ء کښې څه وخت چې د مهابت په ځاے فدائي خان د کابل صوبه دار مقرر شو ، نو جمرود او ايلم گودر کښې د څو مياشتو تېرولو نه پس اشرف خان هجري ته يې د " خوړې " په لار په آدم خېلو ابريد و د حملې حکم ؤکړو - اشرف خان هجري د صوبه دار فدائي خان د حکم تعميل خو وکړو- ولې دا اپريدو له لاسه يې ماتې وکړه - دغه حمله کښې ډېر خټک او مغل ؤمړل - ډېر و په تېښته خېر آباد کښې پناه واخسته -

## د خوشحال او اشرف خان هجري ترمېنځه ناچاقي :-

د "ډوډه" د جنگ نه اگاهو د پلار او زوے ترمېنځه څه غلط فهمي پيدا شوه - وجه يې دا وه چې خوشحال د اشرف خان هجري او څنو نورو زامنو د مشورې نه بغير تړې او بولاق ته لاړ - د "ډوډه" د جنگ نه پس د دواړو ترمېنځه تعلقات نور هم خراب شول

دواړو ترمېنځه څه جنگي مقابلې هم وشوې - ولې دغو مقابلو کښې اشرف خان هجري خپله د پلار مقابلې ته اونه وتلو - خوشحال خان د لاچي په قلا کښې د اشرف خان سرې محصور کړل - اشرف خان خپل زوے افضل خان د محصورينو د کمک د پاره لاچي ته ولېږلو - او ورته يې ووئيل ، چې يا خو محصورين

را خلاص کړه - او یا نیکهٔ سره مصالحت وکړه - ولې لاچې ته دافضل خان د رسېدو نه وړاندې محصورینو امان غوښتے وهٔ - او خوشحال خان قلاء هم وړانه کړې وه - دغه نه پس داشرف خان په حکم دَهغهٔ فوځ په یو ځو کلیو حمله وکړه. او لاچې کښې په یوه تانړه جوړولو کښې کامیاب هم شو- خو د ترې او بولاق خلق خپلو کښې دصلاح مشورې نه پس خوشحال خان ته دیوې جرګې په شکل "یوټ" ته ورغلل - او ورته یې ووئیل، چې تاسو خپلو کښې سره پلار او زوئ یئ. او ستاسو د یې اتفاقۍ په وجه مونږ تباه کېږو. نظام پور کښې چې موږ خوښه وې خپلو کښې یې سره کوئ - ولې دلته مونږ مهٔ تباه کوئ - خوشحال خان د دغو خلقو په خواهش نظام پور ته لاړ - اشرف خان د وینې او مینې د تقاضا له مخه دخوشحال خان دلجوئي وکړه - او دغه شان د پلار او زوے زړونه دنفرت له کردہ پاک شول - او شاید داشرف خان هجري هم داهغه صفت وهٔ چې باوجود دخپل پلار دمقاصدو خلاف د توري وچتولو بیا هم اشرف خان بهرام خان نهٔ شو - ؎

پهٔ داهومره قباحت اشرف عاق نهٔ شو
چې بهرام داهسې عاق شو څهٔ حکمت دے

---

له دجهه اسماعیل خیل او بانړه داؤد شاه ترمینځه یو مقام دے چې ورسره دغرهٔ دپاسه دخوشحال خان خټک په وخت یوه قلاء وه -دا قلاء اوس نشته. البته غوهٔ لانډې دآبادۍ نخښې نښانې اوس هم موجودې دي. دخوشحال ثاني ذوے سردار شهباز خان هم دخپلې سردارۍ په زمانه دلته وسېدٔ. داځائے اوس په شهباز ګړ مشهور دے -او ورسره د سلطان شاه بابا زیارت دے -

ددغو وا قعاتو څخه موده پس د ترین خان یو فوځدار سره د بنګښو مخالفت شروع شو . د کابل صوبه دار اشرف خان ته د ترین فوځدار سره د امداد او مرستی د پاره ووئیل - اشرف خان څجري چې د ترین خان دکمک د پاره د نظام پور نه تقریباً د دوه کروهو په فاصله "شګئ" ته ورسېدو ، نو دافضل خان په خوله یې خوشحال خان ته پیغام ولیږلو ، چې که اجازه وي ملازمت ته به حاضر شم - ولې خوشحال خان په سبب دخفګان د اشرف خان داخواهش پوره نه کړو - بلکې افضل خان ته یې ووئیل چې ددې مهمه راجاروزي بیا دې ما ووینې - اشرف خان د پلار سره دلیدلو کتلو بغیر "شادي پور" ته لاړ - وروستو افضل خان یو ځل بیا د نیکه د لیدلو دپاره نظام پور ته روان شو . دغه وار خوشحال خان یو شال د دستار په طور دافضل خان په سر وتړلو او ورته یې ووئیل چې ستا پلار ته ما سرداري نه ده ورکړې - هغه په خپل اختیار خپل ځان سردار کړے دے - او ما ته سردار مقرر کړې. افضل خان د تسلیماتو دادا یګي نه پس د نیکه نه رخصت شو او دوباره د نیلاب په غرونو کښې د خپل پلار سره یوځائے شو - اشرف خان چې په والیسه کښې افضل خان ولیدو - نو پوښتنه یې ترې وکړو - چې خان دې ولیدو؟ افضل خان چې د نیکه د لاس دستار یې ترخ کښې نیولے وو - له ترخه را ووېست او پلار ته یې وښودلو. او نیکه چې ورته څه وئیلي وو هغه په ټکي په ټکي یې پلار ته بیان کړه - اشرف خان چې د زوے بیان واورېدو نو خوشحاله شو - او افضل خان ته یې ووئیل چې دا دستار د تبرک په طور د ځان سره کړه - بیا سره د بنګښو اشرف خان "کښت" ته روان شو - او د ترین خان مخالفین یې زېر کړه - لعل بېګ او ملک میا حسن خیل اشرف خان ته په ننواتې ورغله - اګرچې بنګښي یې قدیمي دښمن وو . او په پرلېښودلو او معاف کولو یې د کابل د صوبه دار د خفګان د احتمال با وجود هغو ته

امن ورکړو او خوشي يې کړل -

سنه ۱۰۸۹ هـ کښې دشهزاده شاه عالم بهادر پېښور ته راتګ او د مغلو او پښتنو د روغې خبرې اترې په وخت بهرام خان دصوابي د تحصيل په "جلبۍ" نومې کلي کښې وه. چې داشرف خان هجري سرې وربانديې حمله وکړه - دغو ورځو کښې خوشحال خان هم د يو لښکر راغونډولو په غرض يوسفزو ته تللې وه - بهرام خان داشرف خان له سرو په تېښته خلاص شو - اوبيا خوشحال ته يې ځان ورسولو - معافي يې ترې وغوښتله او په پښو يې پرېوتو - خوشحال خان نه صرف بهرام خان معاف کړو - بلکې يوسفزيو ته يې د ځان سره راوست - او اشرف خان هجري ته يې هم دهغه سفارش وکړو او دکابل صوبه دار نه يې ورته منصب هم واخستو - بهرام خان هسې په ظاهره خو د پلار او ورور وفادار وه - ولې درپرده لګيا وه - د دواړو خلاف يې سازشونه کول - او په دغه کوشش کښې وه چې داشرف خان هجري جاګير او منصب ترلاسه کړي - دکابل صوبه دار هسې هم دهجري سره سم نه ښرېدو - وجه يې داوه چې دهجري يو خپښ آزاد ګګيانې دکابل دصوبه دار نه سرکشي کړې وه - او بله وجه يې دا هم وه چې اشرف خان دصوبه دار د خواهش مطابق هغه سره کابل ته دتللو ډډه کوله - آزاد ګګيانې اشرف خان هجري سوات ته لېږلے وه - او دهغه بال بچ يې دځان سره ډېره کړے وه - آزاد ګګيانې دسوات نه په دوآبه تاخت وکړو - او وروستو بيا دعلي مرداد خان زوے ابراهيم خان هندوستان ته لاړ - دکابل صوبه دار ډېر کوشش وکړو چې آزاد ګګيانے دابراهيم خان تېل شي - او ده ته رجوع وکړي - ولې آزاد په هغه يې اتبار نه وه. هم دغه وجه وه چې دبادشاه داجازت اخستلو نه پس امير خان راجه رام سنګه ته دهجري دګرفتارولو حکم ولېږلو - رام سنګه دغو ورځو کښې په جمرود

وه - هغهٔ د صوبه‌دار داخبره ونهٔ منله اوجواب ئې ورته وکړل، چې دا دهغهٔ کارنهٔ دے - روستو بیا امیرخان صوبه‌دار داشرف خان هجري یو دوست سید بهولا د شهامت خان زوے ته داشرف خان هجري د گرفتارولو دپاره وویل.

کال سنه ۱۰۹۲ه دجمادي الاول په او ایسل کښې اشرف خان هجري - دراجه رام سنگهه په بلنه جمرود ته لاړ - رام سنگهه د هجري ډېر قدر او عزت وکړو - او بیا ئې سره دتحفو تحائفو واپس کړو - درخصتولو په وخت ئې ورته اشارتاً دا هم وویل چې د پېښور ښهره مهٔ تېرېږه - بلکې د ښهرنه بهر په بهر کلي ته ځان ورسوه - دهجري زړهٔ صفا وهٔ - او دحکومت خلاف پکښې څهٔ نهٔ وو- ځکه هغه د راجه رام سنگهه په اشاره پوه نهٔ شو - او پېښور کښې ئې د خپل دوست سید بهولا کره لاړ - دیوبل سره د روغبړ نه پس هغه هجري ته وویل، چې ته به لږ په آرام شې او زهٔ به درته د ډوډۍ بندوبست وکړم - ولې د سید بهولا د تللو لږ ساعت پس د ډوډۍ د انتظام په ځائے دهغهٔ د گرفتارۍ انتظام وشو - گرفتارۍ نه پس هغه هندوستان ته ولېږلے شو، چې ورومبے په گوالیار او بیا په بیجاپور کښې بندي کړے شو -

خوشحال خان خټک دغو ورځو کښې په نظام پور کښې وهٔ - داشرف خان هجري اهل وعیال د ملاغنهان په ذریعه نظام پور ته ورسولے شو - خوشحال خان چې د هجري د گرفتارۍ نه خبر شو، نو هغهٔ افضل خان د عابد خان سره "سرورمله" ته ولېږلو - او بیا خپله هم ورپسې هلته لاړ - د وروستو حالاتو په حقله څهٔ جرگې مرکې وشوې - خوشحال خان بهرام خان زیارت کاکا صاحب ته د جرگې دپاره وغوښت - د بهرام خان په مغلو کښې د اثر رسوخ او افضل خان د کم عمرۍ او ناتجربه کارۍ په وجه د زیارت کاکا صاحب په جرگه کښې دا خبره فیصله شوه،

چې خاني دې بهرام خان ته وسپارلے شي - اوهغه به حکومت کښې دخپل اثر او رسوخ په وجه داشرف خان هجري د پرښښېدلو او په خپل منصب دمقررولو دپاره کوشش کوي - او دا فيصله هم وشوه چې اشرف خان به د بادشاه په حضور کښې وي - ددغو فيصلو نه پس خوشحال خان "سرورمېله" ته لاړ - او وروستو بيا خوشحال خان او افضل خان دواړه د "سرورمېله" نه نظام پور ته لاړ - خوشحال خان تري او بولاق هم بهرام خان ته وسپارل - افضل خان د امداد په طمع څهٔ موده د نيکهٔ سره وهٔ - چې دګواليار په قلا کښې داشرف خان هجري د قيدولو خبر را ورسېدو -

اشرف خان هجري دګواليار او پسته د بيجاپور په زندان کښې دڅوارلسو کلونو د قيد وبند نه پس په کال ۱۱۰۶ھ کښې وفات شو - او هم هلته خاوروته وسپارلے شو - دهجري يو ورور آزادخان دهغهٔ د وفات تاريخ په يو قطعه کښې داشان بيان کړے دے - ؎

دهجرت زرسل شپږ وو
اشرف خان چې فوت شو يارو
غم اندوه ددهٔ تاريخ دے
۱۱۰۶ھ
کهٔ حساب کړې وو يې شماره

## هجري ازاد کهٔ قيدي؟

داشرف خان هجري په حقله دځنو خلقو ګمان دے چې د بيجاپور (جنوبي هند)

---

ـلـه تاريخ مرصع مخ ۲۸۷

په زندان کښې هغه قید نه وه بلکې هلته ازاد وه - خو دا خبره سمه ځکه نه ده چې هم هغه پور کښې دیکلو شعرونو داحقیقت واضحه دے چې موصوف هلته هم تر اخره وخته په زندان کښې وه او د مرګ تر وخته قید کښې د هغه د سا تلو وجه شاید د اورنګزیب په زړه کښې لکه د خوشحال خان د قید نه پس د هجري نه هم د بغاوت او حکومت د پاره د مشکلاتو او راولاړولو خطره وه -

بهرحال وجه هرڅه چې وه ، ولې دا حقیقت ځپل ځائے دے چې اشرف خان د مرګ تر خونې د بیجاپور په زندان کښې وه - او د څوارلسو کلونو د قید په دوران هم بندي خانه کښې وفات شو -

لکه چې پورته یې ذکر وشو - د اشرف خان هجري دا شعرونه پرله پسې په زندان کښې په حیثیت د یو سیاسي بندي د هغه د قید د ژوند تصدیق کوي - سه

سه

تسع بگذشت که در نارِ عنایت هستیم[۱]
سال عاشر شده بر عمر عزایم آغاز

سه

نن اغاز دلسم کال دے باور وکړه[۲]
چې په بند کښې یې زیږیږم بې ګناه

---

[۱] دیوان اشرف خان هجري (فارسي) مخ ۱۲۰
[۲] دیوان " " (پښتو) مخ ۵۷۹

ده سال و چند ماه شده کز عتاب شاه[۱]
محبوس گشته ایم درین دارِ عاصیان

هجري تش صورت نصیب په دکن بند کړو[۲]
په خدمت یې دیار زړه دائم حضور وي

د ماهي په نس کښې پروت لکه یونس[۴] یم[۳]
مګر خلاص مې په کرم حق تعالے کا

دانایان دې یې دامن دامن وباسي[۵]
د هجري له فیضه دُر همه زندان شه

دَ ذکر شوو شعرونو نه علاوه د اشرف خان هجري په فارسي دیوان کښې د دوه[۲۲] ویشتو اشعارو دیوې ډېرې اهمې قصیدې اکثر شعرونه هم په حیثیت دیو قیدي د هجري په ژوند رڼا اچوي ـ داسې برېښي چې اورنګ زیب سره دیو ملاقات په ذریعې شاعر د خپلې آزادۍ خوب وینې ـ خو د ملاقات نه پس هره وجه چې وه د شاعر په امید هغه وخت یخې اوبه توی شي ، څه وخت چې بادشاه دوباره زندان ته

---

[۱] دیوان اشرف خان هجري (فارسي) مخ ۱۳۶

[۲] [۳] [۴] دیوان هجري (پښتو) مخ ۲۷۲ ، ۲۶۱ ، ۱۵۳

دَ هغهٔ دلېږلو حکم وکړي ـ دغه وخت زندان کښې دهغهٔ نههٔ کلونه تېر شوي وو.
او دلسم کال آغاز وهٔ ـ دقصيدې څو شعرونه دادي ـ سه

(۱) عرضکے ہست دہي دابہ شہنشاہ غفور
سايهٔ عدل بہ فريادِ غريبے انداز

(۲) پس ازاں کش قلم عفوه بوزدم راندی
بعد ايّامِ کثير و پس از اعمار دراز

(۳) مازِ شادی و خوشی پا بہ فلک بنہادیم
تارک فخریم از چرخ بریں گشت فراز

(۴) عازم بارگہت گشتہ براميد تمام
تا شوم از رہِ لطف بہ اماثل ممتاز

(۵) بعد تاریخ رسیدم بحضورِ پُرنور
بَرخلاف روش عفو روان شد الغاز

(۶) گشت تفويض ہماندم بہ کلاغے چند
اختيار بنگہ داشتن وحبس باز

(۷) گرچہ اصدار چنین حکم پس از عفو گناہ
دور بود از کرم شاہ بصد تیر انداز

(۸) چاره جز صبر ندیدم کہ چنان امر خطیر
شده ظاہر ز لسان شہے صاحب اعجاز

(۹) مازِ القاذِ چنین حکم بصد حیرانی
مانده در دائرهٔ حزن بہ اندوه دمساز

(۱۰) یعلم اللہ جرم نیست نمیدانم ہیچ
کیف وزرے کہ بران بندہ معاتب شد باز
برخلاف امل بندہ عیان گشت چنین
ورکنی خانۂ محنت بمنی مسکین باز

ترجمہ :-

(۱) شهنشاه ته یو عرض لرم چې پهٔ ما دعدل سیورے وکړه -
(۲) ډېره موده پس دې زما پهٔ ګناه دعفوې قلم راښکو .
(۳) پهٔ دغه وجه زهٔ ډېر خوشحاله شوم او دفخر تاج مو دآسمان نه هم جګ شو .
(۴) پهٔ ډېر امید ستا دربار ته پهٔ دغه خیال راغلم چې دبادشاه له مهربانو نه مستفید شم -
(۵) څو ورځې پس زهٔ دبادشاه پهٔ حضور باریاب شوم - ولې دخپلې عفو ې د روش خلاف دمهربانئ پځائے تا رابانډې عتاب وکړو -
(۶) نو پهٔ هغه وخت دې زهٔ کارغانو (پولیس) ته وسپارلم او زندان کښې دوباره زما داچولو اختیار دې ورکړو -
(۷) دګناه دعفوې نه پس دبادشاه داسې حکم صادرکول دبادشاه دکرم نه لرې وو -
(۸) ما نو چاره نهٔ لرله سوا دصبر نه، چې داسې یو خطرناک امر صادرشوے دے - دصاحبِ اعجاز بادشاه لهٔ خولې نه -
(۹) دداسې حکم دنفاذ نه پس زهٔ دغم او اندوه پهٔ دائره کښې حیران پاتې شوم -

(۱۰) خدای تعالی به پوهېږي چې زه هېڅ خبر نه یم. او هېڅ نه پوهېږم د هغه
ګناه په حالت چې زه ورباندې معتوب شوم.
(۱۱) ماته د خپل امید خلاف دا معلومه شوه چې ته ما دوباره زندان ته
اچوې.

داشرف خان هجري د پښتو او فارسي دیوانونو د پوره ذکرشوو شعرونو دداخلي شهادت نه معلومېږي چې هغه هم په زندان کښې د خپل قید په دوران وفات شوی دی. بلکې "حیات افغاني"[۱]، "تاریخ خورشید جهان"[۲]، او "تاریخ پښاور"[۳] درې واړه خو د
دېرې مایوسۍ په وجه د هجري مرګ د هغه خپله خودکشي بیان کړې ده. دوست محمد خان کامل مومند په خپل اردو تالیف "خوشحال خان خټک" کښې لیکي.

" وطن ته واپسي د هجري نصیب نه شوه او د خوار لسوکلونو د قید
رنجې ګوالیار او بیجاپور کښې یې تېر کړو) نه پس د بیجاپور قیدخانه
کښې وفات شو[۴]"

او د غه شان وطن ته د واپس کېدلو پخقله داشرف خان هجري دا پېشنګوئي
ټکي په ټکې درسته ثابته شوه.

هجري ته خو تل هوس د ولایت کړې
ولې ستا ورتله محال مګر نصیب[۵] وې

---

[۱] ص ۳۸۸ [۲] ص ۲۴۴
[۳] ص ۳۷۹ [۴] ص ۲۳۰
[۵] دیوان هجري ص ۲۷۴

## يوه بله واقعه:-

ويلې شي چې داشرف خان هجري او بهرام خان ترمنځه داقتدار په جنګ کښې دبهرام خان په طرفدارئ هجري خېل او بنے شیخ ضیاءالدین" په خېل کلي اکوړي کښې قېد کړو - او بیا هم د قېد په دوران یې د زهرو په ورکړه شهید کړو-

دخان بهادر محمد رفيق خان دګمبټ سره داشرف خان هجري ددیوان د قلمي نسخې ددوئم دفتر د "میم" پښتې کښې دیو غزل مطلع دا ده - ؎

؎

څو دیار دمستو سترګو نه جدا یُم

لاهو کړے دحیرت خوني دریا یُم

ددغه غزل په وزن، ردیف او قافیه دذکر شوې قلمي نسخې دذکر شوي غزل سره په څنډه دا شعر هم درج دے. ؎

زهٔ په بند داورنګ نهٔ یم چې به خلاص شم

بندي کړے شیخ رحمکار" زیړي کاکا یم

اګرکهٔ ددغه شعر غزل سره د قلمي نسخې په څنډه دليکلو يوخوا دا احتمال کېدلے شي چې دا به وروستو چا اضافه کړے وي، نو بل خوا دا احتمال هم اغلب دے چې دکتابت په وخت به دکاتب نه سهواً پاتې شوے وي. او وروستو د خپلې سهوې په احساس به يې متن کښې دنهٔ ځائيدلو په وجه په څنډه ليکلے وي -

بناغلي سیف الرحمن سیّد چې هم دغه غزل د محمد اسلم شاه واعظ کوهاټي

پهٔ حواله ییکلۓ دے۔ چې زیرِ بحث شعر پکښې شامل دے ولې دا نهٔ ښائي چې دا غزل واعظ کوهاټي کوم ځائے نقل کړے دے ۔ البته دا غزل دهجري په چاپي دیوان کښې دغزل نه درې اضافي شعرونه لري چې دادي ۔ ے

ے

بې دلبره عاشق نهٔ پائي حیاده
دور عار لره ساتلے چې لا پایُم
پهٔ دکن کښې پاړونشته چې مې دم کا
زهٔ خوړلے اژدها توري بلایُم
کهٔ هرڅو دوطن کاني بوټي یاد کړم
پهٔ اخلاص به سلام وائم چې جدا یُم

دزیرِ بحث شعر نه علاوه داشرف خان هجري دغهٔ دیوان کښې نور هم داسې دېر شعرونه شته چې لهٔ هغو نه معلومیږي چې دهغهٔ دلاسه یوه داسې خطا شوې وه - چې دضمیر دملامتي لاندې وهٔ او دخپل ګناه پهٔ اظهار مجبور وهٔ - ے

هجري مشه نا امید کهٔ ګنهګار یې
البته به انعام وُکا مهربان دے
ے لهٔ عطا دې دِسر امید لرم غفوره
زهٔ هجري ځکه دایم پهٔ استغفار یُم

---

ے ص ۶۳ ، ۶۲ ، ۶۵ درې میاشتنی مجله "خوشحال دیوی"
جلد ے شماره - ۱ سنه ۱۹۸۷ء

## اولاد :-

محمّد افضل خان ختک د اشرف خان هجري مشر زوے دے ۔ کال ۱۰۷۵ه کښې پیدا شوَ ۔ د پلار د قید نه پس د سردارئ تر لاسه کولو د پاره د بهرام خان او افضل خان تر مینځه ډېرو مقابلو او کال ۱۱۲۷ه کښې د بهرام خان د مرګ نه پس اکوړه د خټک توکه عبدالقادر خان خټک او ورور نامدار خان مخالفت ورپسے غاړه وه ، خو بیا هم تر ډېره حده د قبیلې په سردارئ کښې بې غمه وَه ۔ افضل خان چې تاریخ مرصع کښې ځائے په ځائے د خپلو زامنو کوم ذکر کړے دے. دهغهٔ په بنیاد د افضل خان د زامنو تفصیل دا دے ۔

(۱) محمّد علي خان (۲) محمد حسن خان (۳) اسد الله خان (۴) محمد اشرف خان (۵) سعید خان (۶) عبدالله خان او (۷) سیف خان - اکوړهٔ سکندر خان خټک د خپل هغه منظوم خط په یو شعر کښې د دهٔ د یو بل زوے بهادر خان ذکر هم کړے دے - کوم چې هغه اشرف خان هجري ته د قید په دوران هندوستان ته لیږلے وه. خو تاریخ مرصع کښې یې ذکر نهٔ کوي - شعر دا سې دے ۔ ؎

بهادر خان ، سیف خان نمسي دي ښکه ګُل دي
خدائے دې دواړه خان صاحب ته مبارک کا

افضل خان یو علم دوسته او ادب پروره انسان وَه ۔ "د کلیله دمنه" فارسي ترجمه "عیار دانش" یې په کال ۱۱۲۸ه کښې د علم خانهٔ دانش "په نامه پښتو کښې ترجمه کړے دے ۔

ګوهر خان هم د افضل خان په ترغیب ۱۱۲۰ه کښې "قلب السیر" نومې کتاب

---

ـه ص ۳۵۷ "ادبي ستوري دویم توک"

د فارسي نه په پښتو ترجمه کړو . " بازنامه " هم د افضل خان تصنیف دے .
پښتو نثر کښې د اکتاب راقم الحروف په اول ځل مارچ ۱۹۹۴ء کښې شائع کړو .

د شاه عالم بهادر شاه د زوے رفیع القدر سره دوست وه . په دغه حقله "تاریخ مرصع" کښې لیکي .

" د رفیع الشان د مؤلف سره ډیر اخلاص وه . بلکې یار وه . په ښکار ډیر مئین وه . د ما هم هغه ورځې د ځوانۍ وې . یو دبله مو ښکار د چرخ د شاهین ډیر کړے دے . نشست او برخاست مو په خلا ملا کښې سره ډیر شوے دے[1] "

" تاریخ مرصع " کښې افضل خان خټک تر کال ۱۱۳۶ھ حالات لیکلي دي . ځکه نو دا په یقین سره ویلے شو ، چې تر دغه وخته به ژوندے وه . وروستو حالات ئې نه دي معلوم .

## نامدارخان :-

د اشرف خان هجري دویم زوے دے . د افضل خان خټک سره د دۀ د مخالفت ذکر " تاریخ مرصع " کښې ځاے په ځاے راغلے دے . افضل خان سره د یوسفزو په لاهور په شلم ذوالقعد ۱۱۳۴ھ کښې چې د دۀ کومه عهدنامه[2] شوې وه . دغه وخت افضل خان د دۀ عمر ۵۵ نخه نخوسي کاله ښودلے دے . په دغه حساب د نامدارخان د زیږیدنې کال مونږ ۱۰۷۹ء تخمینه کولے شو .

د نامدارخان د زوے کامگارخان د یو قلمي دیوان په آخر کښې یوه قطعه

---

[1] ص ۵۰۵ .

[2] تاریخ مرصع ص ۳۹۶

درج دہ چې داسې دہ۔ ؎

سن نزرسل ښځه شپېته وو
چې رحلت وکړ کامګار
پس له دهٔ نه په درې کاله
پلار دهٔ فوت شو نامدار

په دغه حساب د نامدارخان دمرګ کال ۱۱۶۸ھ کیږي چې عمر یې نه اتیا[۸۹] کلونه جوړیږي۔

## شاعري:-

اشرف خان هجري دخپلې قبيلې سردار او خپل دور منلے شوے شاعر دے۔ دهغهٔ شاعري دهغهٔ دشاعرانه عظمت او لوے شان لوے دليل دے، پرته د اخلاقي، اجتماعي او عشقيه مضامينو او وطني رنګ دشوخيه، حزن وملال، ياس درد او حسرت دهجري دشاعرۍ ښکاره خاصيتونه دي۔ شاعرته وريښې حالات دهغهٔ دژوند يوه نهٔ هيرېدونکې الميه دہ۔ او هم دغه الميې هغه يو داسې مقام ته دسولے دے۔ چې انفراديت هم لري او يکتائيت هم لري۔ او دا احساس شاعرته خپله هم شوے وهٔ چې وئيل يې۔ ؎

دا محال دي چې شاعر به په پښتونخوا کښې
بل هجري غوندې په فن دشعر فرد وي

---

له دکوروئ "دکامګارخټک ديوان"
کابل چاپ ۱۳۵۸ھ ش

د هر محال دے چې شاعروي په پښتوکښې
ما خټک غونډې پیدا کاندي ادوار بـل

ســه

خوشه چین د پښتو ژبې شـاعران دي
زۀ دهـقان د بلاغت فیض رسان یم

ســه

منت بویه چې شاعر هسې پیـدا شي
چې ویل هجري ختک غونډې مطبوع کا

ژوند او درد و غم دواړه سره لازم ملزوم دي - آخر د زړۀ هغه کومه کلی ده چې د ارمانونو او حسرتونو له لاسه نۀ وي مـروړلې شوي؟ کوم زړۀ دے او کوم ځیګر دے چې د ارمان اُور ورباندې نۀ دے بل شوے؟ د هجري د ژوند د المیې هم داهغه واقعات دي چې د دۀ شاعرۍ ته د رغبت وجوهات جوړ شوي دي - او کۀ دا وویـلے شي نو بې ځایه به نۀ وي چې د هجري شاعري یو خوا کۀ د حسن وعشق او اجتماعي ژوند د هرو موضوعاتو ترجماني کوي، نو بل خوا هم د ده شاعرۍ کښې د یو زخمي زړۀ آواز لکه د ماتې رباب ساز هم محسوسیږي او د یو قفسي بلبل فریاد هم - ســه

د حیات رمق مې شته ځـکه بڅو د ۀ
لکه پروت زخمي هوسے لتي وهـمه

شپه د هجر طولاني ده بې حسـابـه ســه
څو به ورځ د وصال ګورم زۀ خراب

ے

کواکب په ژړا شمېرم نه تېرېږي
طولاني ده د فرقت شپه بې حسابه

ے

بنادي څه ته عالم وائي؟ خبر نه یم
تل ژړا زما ریاض غم مې چمن دے

ے

هر نفس په ما عاشورکه یزید انو
گویا زه حسینؑ د وخت په کربلا یم



د وطنیت او قومیّت له نظره هم د شاعر کلام کښې داسې اثرات لیده شي چې دده د مینې خواږه پکښې محسوسیږي - د ملک او ملّت دا مینه فطري ده. او بیا په داسې حالاتو کښې چې څوک چې د څه جرم نه له وطنه ډېر لرې د حالاتو په زندان کښې په ژوند تېرولو مجبور شي ، نو بیا د مینې دا اور عاشق لکه د شمعې ورو ورو سیزي. د خپلو وینې چې د وصال په ارمان د غمونو خوراک شي - او کله کله د انتهائي مایوسه په حالت کښې مجبور شي چې دوائي - ے

د خپلو وینې مې وڅښلې غمونو
مرگه چکې چکې راشه اوس رضا یم

لکه وړاندې ورته اشاره وشوه ، چې عشق هم د شاعر د شاعرۍ یوه اهمه موضوع ده - د فن په دغه موضوع د بحث په موقع په لنډو الفاظو دا وئیل کېدے شي چې مینې د هجرې عشق ته تمکین، جذباتو ته رفعت، خیالاتو

ته ترفع او زبې ته سنجیدګي ورکړې ده - د هجري د غم عشق د روایتي خاصیتونو هره جذبه د یو وقار، خلوص او سنجیدګۍ په خوشرنګیو روښانه او تابانه ده. ځکه نو مونږ ورته د مینې او محبت د جذباتو ترجمان او حسن وجمال د رنګینو مصور هم وئیلې شو - په ذکر شوې موضوع د شاعر د فکرې بلندۍ یو څو نمونې - ۔

دا جنون د محبت چې ما ته پیښ دے
کښلې نهٔ دے د هېڅ دور په اوراق

۔

زما عشق به درس ورکړے لیونے کا
که یې پس لما قسمت کا په میراث

۔

د عشق درد ترې دوا مالره بهتر دے
هرګز مهٔ شه د هجري له زړهٔ جدا درد

۔

په خاطر مې د عشق جښن ډېر وکړه
اوس د صبر وعقل زړهٔ دې رخصت کا

۔

لا د عشق ملې وما وته جنت شوې
یا ما هېرته بهشت وینم دریاب

په حبث د شاعر دا شرف خان هجري په حقله د مرحوم عقاب خټک خیال[۱] دے چې پښتو

---

[۱] تاریخ خټک ص ۲۸۶

شاعرانو کښې د نوم په ځای د تخلص په راوړلو د اولیت شمله د اشرف خان هجري په سر ده. ولې د اشرف خان هجري نه وړاندې علي محمد مخلص هم د پښتو ژبې یو داسې صاحب دیوان شاعر دے. چې خپلو شعرونو کښې ئې تخلص پکاروَلے دے.

اشرف خان هجري لکه د خپل دور د ځنو پښتو شاعرانو فارسي کښې هم شاعري کړې ده. او د فارسي شعرونو یو ورکوټے دیوان لري. پښتو او فارسي شاعرۍ دواړو کښې ئې د "اکرم" په تخلص بې نقطه منظومات لیکلي دي. په اول ځل د اشرف خان هجري د پښتو اشعارو د دیوان د مرتب کولو په وخت ما "اکرم" بېرته د اشرف خان هجري نه کوم بل شاعر ګڼلے وُه. خو دا سهوه وه.

همیش خلیل

(۱)

د بهار په ګلو سیل مسته شها کا
نوے داغ به د میُن په ځیګر بیا کا

عاشقان ئے همیشه لری زخمونه
ناوکی بانړهٔ ئے ګوره څهٔ وغا کا

تورے سترګے ئے عادت لری د ترکو
په کاتهٔ ے د زړهٔ کور همه تالا کا

په هر لورے ئے د زینت همسره نشته
چه د خیاله مخ څرګند کله قضا کا

مرغلرے ئے په لعلو کښے مخزون دی
شهر یار به هسے ګنج کله پیدا کا

د شبنم غوټے په ګل دی آویزانے
کهٔ ئے ذره په بنا ګوشو کښے بریښنا کا

سجنجل چه ئے د مخ سرابری کا
صیقلی ئے په مالش ځکه سزا کا

یا دے بونیں د زلفو تیرکا په ریاض کښے
د چمن دلبرے خلهٔ په دعا وا کا

دا اسباب د حسن وړے څخه نشته
چه ئے مخ وته مهتاب وائی خطا کا

د نکریزو رنګ ئے کله وی په لاسو
په پنجو د شیدا وینے مصفا کا

تورے خاورے ئے ذدر زما دا رو دی[1]
د دیدو علاج مے کله توتیا کا

په وصال به د دوهی خاطر قرار شی
بیلتانهٔ په زړهٔ ویشتلے دے غوغا کا

---

[1] دا شعر په (چ - ن) کښے نشته.

(۲)

دعاشق سره نسیم دیره دفا کا    چه له بنهٔ مخه زلفین خواؤ شا کا
له عذاره و به ئې چاخنړے کړے لرے    داشمال دِ په جبش کښې ردوم پیدا کا
بل اورهٔ چه له ریاضه تارپتار شی    په سما بدر بشکاره خپله ضیا کا
دجبین په چین ئې توره تاریکه شی    نسیم خنده ئې په شیدا یانو سبا کا
نهٔ به نام دمعشوقے وهٔ نهٔ دحسن    دعاشق فریاد ئې هر کله رسوا کا
که زهٔ سر شندم په کشلو عیب ئې نشته    داخصلت د محبت چه سر ګیا کا
په سینه جامه پاره ورته ولاړیم    چرے نه چه په ناوک مے زړهٔ خطا کا
په جنت کښې به خادمے وی دکشلو    چه تیرے دحورو ژوی اخن ربا کا
په مشکلو ګرفتار طمع دیدن کړم    په خواهش مے دخاطر خلق خندا کا
په قدرئې درحے شپے نهٔ پیدا کیږی    ګوندِ وی چه دیدن یوځله وار را کا
دوصال لارے بندی دظلم اوړ کړے
خام امل د روهی ګوره چه رجا کا

(۳)

دګلو نو تصویر ستا په تن بویا کا    روشنی ئې دمخ لال طوطا ګویا کا
آرائش دحسن ؤکا درته ګوری    په دیوال صورت به هم دځان جویا کا

دبدیه د نمر باطله هغه دم شی  چه څرګندہ تر برقعے د مخ ضیا کا
د زیست پایه ئے چرته دہ بلندہ  چه کینه ئے ماہ و مهر ثریا کا
د شکر د جودیا کوم وائے لائے لوے  سرے تو دے سرہ پریوتے خبر بیا کا
په ستم عاشقان وژنے روهیله ئے  چه پروئے د سالو قمیص دننه بیا کا
په تارک باندِ کابدهٔ ګلونه کیږدی  وداقی د زړهٔ په تش دین نبیدبیا کا
د ګردون خاصیت کله بنهٔ منصف شی  کهٔ یاران جدا کوی بیا ئے ملیا کا
دا فګار خټک په زړهٔ به ملهم کیږدی  کهٔ په خوب کښے ورسکاره چله رویا کا
په تاثیر ئے د نظر روحی حیران دے
چه بے اوره صورت څرګنه جلیا کا

(۱۴)

دبوسے وعدہ همیش یار په فردا کا  زړهٔ زما کله باور په دا وینا کا
چه هوس کانن دکاندہ په کارونه  عاقلان به هغه کس پورے خندا کا
یار آګاہ نهٔ دے د دهر له نیرنګه  لار بنتیا په زړهٔ کښے نهٔ لری دغا کا
هومرہ ناز د زیبا مخ په حسن مهٔ کړه  خزان ګورہ څشکل هیڅ د ګل سبا کا
تهٔ له کبرہ چه لما سرہ دروغ کړے  زمانه به د عمل جزا دربیا کا
د وصال په ملک اسباب د عیش ډیر وی  ولے ذرئے د هجران لښکر تالا کا
د ګل مخ ته مرګز مهٔ ګورہ بلبله  جدائی به دِ تازہ زخمونه لا کا
په صلاح به بلبل ګل کله رخصت کړ  د خزان بادئے په زور جبله جدا کا

دسبا په اُمید دیر په ارمان لاړل — نن به څوک باور د عمر په وفا کا
چه په طمع د ژوندون ته فراغت کړے — شین سپهر فرصت کله د بقا کا
نن نوبت د یوه کاږ په جهان وینم — ګانده بله چار څرګنده په دنیا کا
بیجاپور همجری په خوب لیدلے نۀ وۀ
آخر پېښ شی هغه کاږ چه ئے قضا کا

## (۵)

فلک تیغ د کین وُکښلے دے هیجا کا — په نوبت له تنه بیل سر د هر چا کا
که هر څو د خیال پګړۍ په دوړ پاڅی — زر به زر ئے به دا مزکه خوره بیا کا
صد هزار مانړۍ ئے پرېښے له بیخه — لا به څو کورونه خاورے د بیدیا کا
څوک به خشکاله امید د عیش کاندی — چه په دور ئے واړه غم لره پیدا کا
هغه یو نفس دیدن د یار بنادی وی — هم ئے بیا سره ګُلتی په زور جدا کا
په یو حال ئے قرار نۀ پرېږدی په مزکه — تر هغه چه ئے راهی بیاله دُنیا کا
دا ګردون لکه صرصر سرے وزرشهٔ — هر ساعت ئے ګاه په مخ ګهے ترشا کا
ته بازی د بازیګر سپهر ګوره — چه هر کاږ په ضد د عقل هویدا کا
هر نفس به صد هزار عجائب وینی — که پکار ئے څوک د عقل سترګے وا کا
په دا حال ته ناپوهی دسری ګوره — چه په چرته بیهوده اوږده رجا کا
فلک کج دهر غلیم یاږ مستغنی دے
د همجری په خام اُمید عقل خندا کا

(۶)

رب دِ ورک آتشِ ژغ ددے سُرنا کا — دم په دم د مُرده غم راته احیا کا
په هرلو رچه ئے له قربه مسافر شوم — راته اور هغه مکان په ژړا بیا کا
په کړکې کښے ئے له قربه ګریزان شوم — ماوے ګوندے مې ترے بیل چرخ وسما کا
بیا پو رلره چه راغلم کۀ مې غوبن کړ — دلے هم هغه فغانَ دے چه ئے دا کا
زۀ لمبه د هجر مره کړمه په اوبښکو — دا ئے بیا راته پوُکی سرئے بالا کا
ما په ډیره ناله نو دصورت وُچ کړ — لا مې هم چه بانړهٔ وُچ وینې غوغا کا
یا جُدا دهٔ له یارانو پیسے ژاړی — لا زما په حال خبره شوه ژړا کا
چه ئے غور په مضمون د آوان اوکړم — واړه یو په یو بیان قضیه زما کا
ما چه راز دحقیقت له نایه غوبن کړ — ټوک به څرنګ له یارئ طمع وفا کا
کۀ یو دم وصل دیار چا ته موجود شی — هغه دَم ئے بیا ګردون سره جُدا کا
هجری تهٔ بانړهٔ وُچ مهٔ لره چه خوُبږ ئے
ستا په دوغ وکړی څهٔ دی کهٔ خندا کا



(۷)

چه خم خم په عارض زاو[۱] لام وفا کا — پورے محبوس دخته زاوَړا[۲] وهـا کا

---

۱ زلفې ۲ زړهٔ

نون و میم[1] ورا تغیر کا له رونقه — له نقابه چه پیدا راسره خا[2] کا
عین و سین[3] ولام ئې هیڅ شی په نظر کښې — هر سړی چه ئې خون نوش د لام و با[4] کا
صاد و با[5] ورا قرار وکا له زړو نو — چه نما د نون و ها[6] په میان کښې تا کا
سین و تا[7] ورا وکاف ئې قزاقان دی — له غار ته ئې ملک غین و واو و شا[8] کا
غین و شین[9] وقاف ئې هسې کړم له غیره — لکه کاتب چه بې نقطه الف طا کا
زا و لام[10] وفا چه خم کا په رخسارو — په کاغذ گویا نګار کافونه ظا کا
میم و خا[11] ته مې څیر مه گوره خټکه! — تا به بیل له ها و شین[12] لکه را کا
چه مې نور د میم و خا[13] چا ته ملا شه[14] — ها د ماه له سلکه غوخه باقی[15] ما کا

زه هجری به ئې له جوره ژړا نه کړم
که په خوند لکه لب خا و واو و یا[16] کا

---

[1] نمر — [2] رخ — [3] عسل — [4] لب
[5] صبر — [6] نته — [7] سترگے — [8] غوث - فریاد
[9] عشق — [10] زلفې — [11] مخ — [12] هوش
[13] مخ — [14] یعنی ښکاره شه — [15] یعنی اویه — [16] خوی

(۸۱)

په خپل رائ د هر مهم فیصل قضا کا
نهٔ دچا په صلاح کار نهٔ ے رضا کا

بوږ کاروونه زیر زبر کا د عالمو
هم ئے ز رسره پیوند په حکمت بیا کا

په یو دم په یو نفس په یو لحظه کښې
دګرګون واړه کاروونه ددُنیا کا

د مراد په مونډهٔ خوښ کا څو وګړے
هم په زړهٔ د ډیرو ماته تمنا کا

ډیر خُرم کا د وصال په مجلسونو
ډیر د وصل له خوشئ په زور جدا کا

څوک دګوره په خله کښې ورکاندي بوسه
څوک د مور له نَسه نوے هویدا کا

شهریار له تخته کوز وُلی په مزکه
په سریر باندے قائم د ملک ګدا کا

بې زواله عیش هیچا ته موجود نشهٔ
څو دوړ ونه په خاکی مزکه سما کا

نیله بخره هاله اوړاړه فقیره!
کهٔ دولت همیش یاری د اُمرا کا

نهٔ باقي وي تل دبدب د امیرانو
نهٔ دِ فخر په شوکت د ملک بادشا کا

هغه څوک چه په اسرار د قضا پوهشي
کهٔ عالم تهه و بالا وینی خندا کا

د انکار ژبه خوندي کا له جُنبشه
بې حاصله حکایت پرے نا روا کا

تنګ ناست په بیجاپور مهر په بسو
بازیګر فلک د لوبو تماشا کا

په آواز ئے غوږ لړئ د دوه بلبلو
په دکن د حال قصه مجری طوطا کا

## (۹)

پری رُویه چه پیدا حسن زیبا کا
دبهشت جُونه سرکښته له حیا کا

کهٔ خندا ئې بازار سوړ د متاع نهٔ کا
جوهریان د ښهر و لے نن ژړا کا

د زړو ښت لره ځلونه کا پیو هیږم
مشاطه چه ئې شکست د زلفو بیا کا

کهٔ ئې اووینی په سترګو نوړ به ژاړی
ګل ئې مخ لیدلے نه ځکه خندا کا

کشکے یو ځل ئې نقاب له مخه دُور کړے
چه هر چا وته شرګی د سیب صفا کا

ماه له شرمه اوږهٔ سر کاندی په مخ کښے
هر ساعت چه ئې عارض جلوه پیدا کا

نوکرئ ته به ئې غاړه سورج کیږدی
کهٔ په ځېره ورښکاره د مخ ضیا کا

چه نسیم ئې د کُوئے بوئے په ریاض وروړی
غنچه تړوله خُلهٔ کشاده په دُعا کا

باد ئې ښنه په انګړ نهٔ ږدی له ادبه
خام د هسے چا د عشق دعوی کا

ختک عمر په امید د وصال تیر کړ
لا به کله شراب نوش د مُدعا کا

زهٔ هجری د عشق په کار ثانی مجنون یم
اوسنئ جُونه خوی کله د لیلا کا

## (۱۰)

د ارمان په داغ به زړه خپل مُبتلا کا — چه باور څوک په کارونو د دُنیا کا
په الطاف ئے غرور مهٔ کړه فریبی ده — گمان مهٔ کړه چه دا مهر به رښتیا کا
چه له تیروئے وفا تر سره نهٔ کړه — هر چه نن ځنی وفا غواړی خطا کا
د هر کار بنیاد ئے ایښے په جفا دے — مهٔ وفا غواړه له دوره نهٔ وفا کا
په یارئ د هغه یار بدائ مهٔ کړه — چه په یو نفس هزار ځائے خندا کا
زهٔ د یو ساعت باور په عمر نهٔ کړم — هغه اوُم دے چه امید د یره بقا کا
دا دنیا مانړئے چه تهٔ په جهان وینے — نهایت به ئے گردون همه صحرا کا

یو زمان به هجری تیر په دکن نهٔ کړی
دوران کله په وینا چېله رضا کا

## (۱۱)

عاشقان به هرگز پرے نږدی جناب ستا — کهٔ هر څو خصلت دښی لری کلاب ستا
د ذقن په چاه ډبه هاله به خلاص شم — کهٔ راواچوی د مشکو یو طناب ستا
خوار عاشق ته کهٔ ئے باد برهنه نهٔ کا — له عارضو به څوک لرے کا نقاب ستا
تهٔ په خپل بناست مغروره خبر نهٔ ئے — زاهد تل غندی په خلقو کښے اجاب ستا
صلابت د حسن څهٔ خوور بسکاره کا — چه لا گرم ترما زغلی په رکاب ستا

دووچشموکښې غواړم موندهٔ نهٔ شي
شاید یوړهٔ بړایه دغم سیلاب ستا

دهجران لښکر دځکه پائمال کړم
چه دداد هرګز رانغې یو جواب ستا

په تشریف دآشنا خوښه مباهی کړه
چه تحفه کا خپل نسلے دِل کباب ستا

د زړو خپل لره بل بند مناسب نهٔ دے
زلفے ځکه مشاطه کا پیچ وتاب ستا

فراق وړے نور به بیا راشي په چشمو
کهٔ پرے اومږم آشنا دپښو تراب ستا

نورمښن دیار په بنهٔ خبره خوښ شي
زهٔ هجری ترشهد خوږ کړم عتاب ستا



(۱۲)

دخوښئ په ملک همیش هغه طرب کا
چه ترشا مینه دجاه اود منصب کا

دمطلب ناوے به اووینی څرګنده
چه له آزه منقلب دزړهٔ جلب کا

دهیچا بخره په زور چا خپله نهٔ کړه
جاهل و لے بیهوده شور وشغب کا

نهایت به مشرف په خپل مراد شي
هرسړے چه په اخلاص د کار طلب کا

نیک وبد په ازل کښلی دهر چا دی
اوس چه بخره ورکوي با نه سبب کا

عقل نشل هنره کا همه باطل شي
په خلاف دعقل کیږي هر چه رب کا

دانسانٔ شرف موقوف په زینت نهٔ دے
هغه کس سړے باله شي چه ادب کا

---

۱ شرافت الانسان فی العلم والادب لابالمال والنسب (حدیث شریف)

عاقلان د زړۀ مطلب له کنده مومي — نادان فخر په زربفت او په قصب کا
سزاوار د بنۀ مجلس هغه بشر دے — چه نګاه له بیهوده وسلو لب کا

حمزی زړۀ په هیڅ ما مۀ سپاره کۀ بوه ئے
ن یاران آشنائی واړه په مطلب کا

## (۱۳)

چه زلفین ئے په مخ خم د مشک وناب کا — دعاشق په خته ګڼ خر د اسباب کا
په موزه ګنې به بیا سنګ دېرو کیږ دی — مشاطه چه ئے د زلفو پیچ و تاب کا
د غماز پرتوګ به ورڼ یو لبالب شي — چه له ما سره خندا مسته مهتاب کا
کۀ بنائست ئے د مخ اووینی په سترګو — نیلاب غاښے به په مخکښے د آفتاب کا
چه ئے دُر د ښتے اوبریښی په مزکه — ناهید ګڼ په عظیم سیند ګښے د حجاب کا
د زړۀ پښے ئے د تانبے په زنځیر بند شي — هرسرے چه ګشت د کښلیو په جناب کا
د عشق ځیل ته به ئے ځپ په رضا کیږدي — کۀ نقاب له مخه دور مخ په ګلاب کا
سفینه به د ماه ماته شي په سیند ګښے — کۀ په شپه له قصده دور د مخ نقاب کا
د حیرت غم به ئے باد بند کا په نس ګښے — کۀ حورا ئے مشاهد د صورت آب کا

چه د عشق په کوڅه ګرځي دار ئے نۀ شي
د حمزی غونډے به ځان مست و خراب کا

---

ل چه په مخ ئے زلفین خم د ق . ن ؛

## (۱۴)

چه په ناز دلبره سم سره قامت کا
وعشاقو ته پیدا دم د قیامت کا

هغه دم چه سنګاره ګا په خرام شي
ترکنګرو ئې دیدن جونه د جنت کا

تا صفونه د زلفینو کړهٔ فوځونه
چه جنګریز لره د چشمو حمایت کا

هیڅ حاجت ئې په کومک د زلفو نشته
چه هرګز په جهان نهٔ هغه بدعت کا

نهٔ په دا دنیا چا کړی نهٔ ئې کاندی
لکه دوئ دواړه په دوی قباحت کا

محبت د یار ته هسې بې وقار کړم
چه همیش را ته نظر په حقارت کا

مهٔ دِماغ په حسن کړه مهٔ مې په مینه
دا به دواړه دورتیر په لږ مدت کا

ماوې هجره! لږ رخصت د وصال راکړه
د یار غم مې په خاطر هر ګور شِدّت کا

وې ئې مه کړه شور وشر په غم صابر شه
دا وینا هغو ته کړه چه مروّت کا

غم اندوه ته غاړه کیږده اې خټکه!
نهٔ رِقّت د هجر شته نهٔ مرګ مهات کا

روښانی مرزا به ووې که ژوندۀ وې
چه هجري په نظم نن نوې حکمت کا

## (۱۵)

تورې سترګې ئې بیا څهٔ کوره بدعت کا
زړهٔ ئې وُځکا وهٔ نما د ځان همت کا

که په دا اکتفاؤ کا دین را پسې دی
زهٔ هزار ځله راضی یم مروّت کا

واڼې هاں! بوسه اخله خوچه ورشم
بیا مې منع دابرو په اشارت کا

دآشنا جفا مې اولیده په سترګو
وفادارې په دروغ کله هسې ست کا

دعشق غم ئې له همه عیشه جُدا کړم
لا مې هم په حال رقّت نهٔ شفقت کا

کهٔ له جوره ئې ناله کړم راته لاندې
د ابجد تر لام و باد رو شفقت کا

چه بنا ئست وته ئې ګورم څهٔ عجیب دې
کهٔ د شاه لوږه ئې مینه دخدمت کا

داوینا چه عقل واوریده وئیل ئې
لوږه څهٔ دی دخسرو چه دا جراُت کا

چه سنګار دحُسن وکا باور اوکړه
نوکوئ ته ئې حورا دارم نیت کا

په خاطر مې دعشق جیش دېره اوکړه
اوس د صبر و عقل زېرمه دِ رخصت کا

کهٔ ئې به ووځې تر خلې کبر ئې ګوره
دهجری په ځان توده بار دمنت کا

(۱۶)

زړهٔ چه یاد دهغه تیر عمر نوبت کا
زما تن لره تجویز داور صحبت کا

ګذشته عمر په زور غواړئ یارانو
مُضا عم ئې چالیده چه بیا رجعت کا[2]

صرفه نهٔ کاندی هجران زما په وژ له
د قضا منت راباندې لامهلت کا

ددې شنهٔ ګردون په ګشت کښې څهٔ اثر دې
چه په دم عشرت زحمت، زحمت عشرت کا

صد هزار ځایه بنا دی چرې ژړا شی
هر زمان چه آهنګ ساز دحرکت کا

---

[1] د مشتاق و صبوری از حد ګذشت یارا
ګر تو شکیب داری طاقت نه ماند ما را

[2] قضا عمر چالیده چه بیا رجعت کا (ق-ن)

روغه نهٔ کاندی هرگز له آزاده وُ  مگر[۱] لږ مهر دګل سره نسبت کا

ګهه ګهه دمقصود لاس ورکا په لاس کښې  هغه هم په ربنتیا نهٔ وی حرافت کا

زمانه په چل روش هرگز پرے نږ دی  کهٔ څوک شکر ترے هیڅ یا شکایت کا

د ژړا سیل مے جوړه کسی لا هُو کـړهٔ  کله زړهٔ د دهر سوړ شو لا شدّت کا

هره شپه ددے فانی جهان که ګورے  دیر کارونه تولد د قباحت کا

په راحت ـے قریب مخوږه باقی نهٔ دے  په ارمان به دِ ترے تیر په لږ مُدّت کا

نن فلک له هجری غم کا راشه ګوره

چه بیداد د هجری څشکل حمایت کا



(۱۷)

په بنهٔ مخ چه ول دتورو زلفو مات کا  په هزار غمه اخته زما اوقات کا

راشه یو دیدن په ځائے دِ دیت ورکـړه  تا ولیشتلے آشفته ګوره وفات کا

چه دِ حسن ته څوک اوګوری حیران شی  په پاکئ د مولا یاد اسم د ذات کا

ستا د مخ په دود به یو بنا نشته نهٔ وی  کهٔ هر څو بُتان بنانست د سومنات کا

په آرسی کهٔ ثانی بدر هویدا شی  هر ساعت چه پُرسیده د مخ آیات کا

مُرتظی غونده غازی په دوران بویه  چه په لاس د عدل مات بدن د لات کا

بلبل تل دګل تعریف کا په ریاض کښے

هجری تل دخپل آشنا د مخ صفات کا

---

۱ مګر لږ مهر دګول سره البت کا (ق ـ ن)

## (۱۸)

چې ئې زړهٔ دې عالم قتل پسند کا　　ځړۍ هاله د جوتې په سر پیوند کا
هزار زړونه قضا وروله پخپله　　هر نفس چه خال دانه زلفې کمند کا
بیا په نته لاس وهي آئینه ګوری　　بل مطلب ئې په زړهٔ نه د قتل سند کا
جلا د تل چه نیت کوی د چا د وژنو　　توره اوکاږی اول په لاس ئې بند کا
سکور ئې ځکه په ډنډ ر د نتې ګیښو　　چه ناظر د مخ کباب لکه سپند کا
له المه ډیر الف قد ونه نُون شی　　چه روانه شی په ناز الف بلند کا
تل د زړونو ملک لوټې تن خبر نهٔ وی　　په شتاب هسې هُنر د یار سمند کا
د وصال مانړۍ ئې هسکې وربه نهٔ شی　　کهٔ عاشق په ډیر جدل سنجر برند کا
په خوږه ژبه ئې بیا کا سندی خبرې　　نرخ به هر چرې خنک شکر و قند کا
له سرو شونډو ئې لذت خبره واخلی　　ځکه بس په لطافت د قند و خوند کا
هجری ته چه نمر ته غبټ کتلې نهٔ شې
ځیر به یار کوره په څهٔ کهٔ مخ څرګند کا

## (۱۹)

په زیور چه ډیره مینه هر دلبر کا　　د بنائست سره کومک زر و ګوهر کا
بل مطلب ئې هر نهٔ وینم په سترګو　　مګر دا چه ملک د زړهٔ زیر و زبر کا
تقصیر کله په لوټ کا حسن د کښلیو　　چه زیور بیهوده مخ سره ښکر کا

چه د مخ سیاه یې تاخت کا په هر لوری ... کبود خال یې دوان لکه رهبر کا
د قضا کاتب یې مد کون کا د ورو ځیو ... د حیرت لاس ربو ده ځنې مسطر کا
چه په تاخت د زړه د ښهر صرفه کاندی ... په زړګی دوباره ساز هغه زیور کا
د جنګیا نو توره نه وی بې صیقله ... سور بلاق یې تل صفا ځکه زړګی کا
د وطن عیش و هوا به یې هیر نه شی ... بیجا پور که راته ډک همه په زر کا
یو هجری د هجر غم تر لمن ونیو ... نور همه دیار په وصل تل اختر کا

(۲۰)

چه اوربل د مخ د پاسه لکه سپر کا ... د سرو ګل یې خاصیت همه د نمر کا
د یاقوت مثل یې سکورنته آتش ده ... سور بلاق د خُنګه جوړ لکه شرر کا
چمکی یې ځکه سره د یار په ویښو ... چه خلش ته یې هر دان لکه نشتر کا
ابروان جوړه لیندے بانړه یې غشی ... پیرایه د حسن توره څوک خنجر کا
هغه دم چه سنګار وکا روانیږی ... یو نظر یې صد ساله صوفی ابتر کا
ژولیده زلفې چه خم کا په رخسارو ... خرابئ ته اجازت زنګی لښکر کا
تورے سترګې یې لا تورے په رنجو کړے ... هر بانړه به د آشنا په ویښو تر کا
نوے نوے قصے کا واړه فریب دے ... په بانه بانه په زړه د سحر ګر کا
اوارم یې د عاشق سته مُهیا دی ... د وصال خوان ده بهشت هجر سقر کا
د عشق سیورے شخص سنګ پارس دے ... په هر چا بانده چه اوشی تن یې زر کا
په مذهب د سرباز انو ګشتنی وی ... چه د عشق په لاره ځی له غاوه ډر کا

## (۲۲)

هغه څوک چه له زړهٔ لرے بیخ دآز کا
نور به ورک دابیهوده فکر دراز کا

همه اور دبیلتانهٔ دے چه بلیږی
کهٔ څوک ځیر فهم دناسئے دژغ په راز کا

له‌مضمونه ئے دکوچ خبر مؤسنده شی
هره شپه چه په سحر جرس آواز کا

په دا باد فانی منزل دعیش په څوکړم
دغم دَر ژغ دګړیال دَم په دَم باز کا

ژړا واړه دهجران له زخمه کا بندی
شور دچنګ کهٔ درباب کهٔ ئے بل ساز کا

په مداد کهٔ اشعار کوښی نور وکړی
دانایان به دا ګفتار په زر طراز کا

دکوټل دژغ په راز هجری پوهیږی
ځکه تل په ډیر زخمت کښے عیش وناز کا

## (۲۳)

ناز لائق دسویو نه ځکه نیاز کا
نیاز نهٔ لری دلبرے ځکه ناز کا

زهٔ په مهر دیار ځکه باور نهٔ کړم
چه ګیله زما کوی غوږ په غماز کا

نور قرار له هغه دله رمیده شی
چه په سرئے دبنهٔ مخ مینه طراز کا

نمر ګلونه تولد کا ندی په شپه کښے
چه خمونه په عارض د زلفو ساز کا

هزار زړونه ئے طرے په منګل واخلی
په عذار چه ئے پرواز دحسن باز کا

له خولوئے بوئی همه ګل وکافور شی
چه په وصل دتن خاص هغه پیشواز کا

دسرود ندا زحمت ګڼړه هجری ستـه
هغه دم چه بشے دلبرے سره راز کا

غټ دِ نۀ ګوری هرګز دیار و مخ ته چه مائل وی په حیات و یرۀ دسر کا
هر چه اوکړۀ د هجری په زړۀ دلبرو هغه تاخت به سرۀ مغل کله خیبر کا

له وفا به هجری شا نۀ کا و یار ته
که پټ پټ ئې تن په وینو ګنبے احمر کا

## (۲۱)

چه آغاز د زړونو بند لره تدبیر کا تو رے زلفے هاله ځل غندے زنځیر کا
څو خمونه ئې موجود شی په زنځیر ګنبے هومره زړونه په هغه ځل ګنبے اسیر کا
په کوڅۀ ئې دعشق مۀ ورځه مالداره په نګاه به دِ مجنون غندے فقیر کا
څو شیران زلمی زخمی کا په ساعت ګنبے چه دوروځو په لیندہ دبڼو تیر کا
په تاراج ئې حیله نۀ کا تورے وروځے خال په کوم جرم ترے بر لکه امیر کا
رنګ و بوئې به ئې ثانی دبدن نۀ شی که کافور څوک په ګلابو ګنبے خمیر کا
په کالونو به ئې شمار ترسره نۀ شی که حساب ئې د بنائست څوک په ضمیر کا
دخوبئ پیشګار ئې خلق په اور کښېږدی چه اور بل لکه خسرو تیک ئې وزیر کا
بنائسته بۀ ونه غره د مخ په زیب وی په کثرت د مال که فخر عالمګیر کا

هجری سخت ساعت هغه دے په دُنیا ګنبے
چه نا بی صنم ئې خاوړو ته مصیر کا

## (۲۴)

په عارض ګورم زیبا مشکی نقط ستا — چه چاپیر ګورم ترمخ عنبرین خط ستا
هغه دم چه تا دناز چاړهٔ په کف کړه — بنده سر کښیښه آشنا دعشق په قط ستا
ما چه پښه دمحبت په کوخه کښیښوه — لا هاله مې کړ قبول واړه شطط ستا
هر عاشق دیار په مینه تازه کیږی — په خټک تر قند و بنهٔ لګی سخط ستا
د مخ زیب دِ کهربا زړونه علف دی — بنده وی یې لکه غلهٔ زلفې قطط ستا
نام و ننګ دِ نخستین همه تر شا کا — چه لری هغه عاشق دکوئ نمط ستا
هغه ورځ چه غوغا پیښه دقیامت شی — د هجری له ژبې مشه نوم غلط ستا

## (۲۵)

له نقابه چه دې مخ ضیا شروع کا — تهٔ به وائې له مشرقه نمر طلوع کا
په بنهٔ مخ دې شان دخال هسې پیدهٔ شی — ګویا مهر ته هندو سجده د رکوع کا
دیار مخ که مهر نهٔ دے راته وایه — زړهٔ مې ولې نیلوفر غوندې رجوع کا
تورې سترګې دې چه سحر کا حیران یم — چه په یو نظر دد شتو شیر جزوع کا
په دربار دکښلیو کښ پا تې نهٔ شی — کهٔ بادشاه دې په در وریشی خضوع کا
زهٔ له یاره په دا خوی شکر ګزار یم — چه رقیب غمازی کا همه مرفوع کا
مدت بویه چه شاعر هسې پیدا شی
چه ویل هجری خټک غوندې مطبوع کا

## (۲۶)

چه زلفینې په بندٔ مخ باندې مرغول کا — هر زیبا مرغول یې وژله سکه غول کا
هر چه مخ یې برهنه په چشمو ولید — په ژړا لکه مجنون خانه په چول کا
په چار گل یې ملک همه زیر و زبر کړ — لا به څهٔ شي چه یغاړه همه پسول کا
هیڅ اثر یې په زړهٔ نهٔ شي له نخوته — کهٔ شیدا په ناله تشه ناله قبول کا
هغه کار چه یو نظر د جونو کا سندی — هسې کار نهٔ هر اول نهٔ د بنهٔ غول کا
شهرې مړده په کټ پسنه چرې به خوبړ شي — څو کلونه د بستر خادمه نهول کا
هر شیدا چه یې په دین د حسن ورشي — تش بدن یې د هیده خاطر یې اول کا
عشق یو څهٔ سنګِ محک دې په دُنیا کښې — هر چه شک د غش لری نُما یې پول کا
د خوړو څنړیو بها په جهان نشته — د دُنیا په مال یې بیعه مګر کول کا

هجری قدر د طرو تر هر څهٔ ډیر دې
کهٔ عزت یې څوک د عشق په تله تول کا

## (۲۷)

هر ساعت مې خاطر نوې نوې خیال کا — بیهوده په تشه طمع خان خوشحال کا
کله راز کا د هجران له کشمکشه — کله یاد په آفرین ورد د وصال کا
کله واڼ ډیر دولت حشمت شوکت وې — بیا یې زړکیله آغازه د زوال کا
کله واڼ درویشي د مقصود لار ده — لا یعقل دې هر چه مینه په اقبال کا

---

ـه وار (ق-ن)

نکه تش په جهان راغلهٔ تش به دروې — کهٔ څوک خپل په دیرحرص دجهان مال کا
ګاه دښو دلبرو شوق پرے غالب شي — ددیدن آرزو پیدا دخط وخال کا
ګاه ئے سیر دګلزار ګریبان نسي — هر نفس نکه هدک سرې ته سوال کا
هم په دا خامو فکرونو زړهٔ اخته وی — څو دمرګ صیاد ئے لاندې ترے[۱] جال کا
هغه مرغ[۲] چه په هوا مے په سیند وی — نهایت دواړه فنا واړه داجال کا
چه باور دیو نفس په حیات نشته — تف په بوهه دهغهٔ چه طمع کال کا
دګردون دور یو هسے بازیګر دے — چه په یو زمان بدل دجهان حال کا

اے حجری هغه نادان دجهان مهٔ شه
چه دُنیا ئے فریفته په خپل جمال کا

(۲۸۱)

چه مهره[۳] په تخته جوړه دجمال کا — دعشق نرد ئے مضطرب دزمن حال کا
دواړه سترګے دِ واله شی کعبتین — دبیاضو مثل هرې کَسی دوخال کا
محبت په تخته واچوی تاسونه — سر دخصل په ځائے زورنډ بهئے مال کا
چه لباط دقمار جوړ کا سحر ګره — عاشقان همه بیدل نکه جوال کا
په بنړو ئے څهٔ مدام[۴] کهٔ ځګر ولے — ایروان ئے اشاره په القتال کا
توره سترګے ئے راضی په شدت نهٔ دی — کرشمه ئے دشیدا ینه غربال کا
چه په چاه دزنن بند رها ئے نشته — چاپیره ئے توره زلفے نکه جال کا

---

[۱] ترمه [۲] مرغے (ق-ن)
[۳] چه ئے مهر په تخته جوړ دجمال کا (ق-ن) [۴] ملام (ق-ن)

کهٔ تابش ئې دجمال وربانده اوشی        په زمان به خاره سنګ قدر دلال کا
دتو بې ډربه ئې مات شي ډېرې ورې        که زاهد خبر دشونډو په زلال کا
چه دعشق مزل ئې طې په واعظ نهٔ شهٔ        بس حسد ئې په عاشق ځکه تیماَل کا
ستاله مخه به مجلس د هجري اوښکې
همیشه د هجرت غم سره جنجال کا

(۲۹)

کهٔ ئې[۱] یار په لاس کېنې موټې دخنجر کا        دخنجر په تیغ جدا د بنده سر کا
دې بخیله په زوال دګمان قاتل دې        که څو عکس پېځه حرفونه داقبال کا
کل اقبال نتیجه نهٔ بخښي وچاته        مګر غم د هجر دوست لره زکهال کا
ترهغه نادان به څوک په دهر نهٔ وي        چه باور په اتحاد د ماه وصال کا
داندوه شپه ئې هم تل قائمه نهٔ ده        ترجاب کهٔ ورځ دعیش ئې ذر زوال کا
نهٔ ئې بېنهٔ زمان قیمت لري دعیش        نهٔ ئې بدساعت ارزش داستملال کا
ګوره څشکل په رخصت ئې عمر دی ومې        تر سبا ئې لاسرعت یودم ویال کا
ګویا هجرې اشنا راسره نهٔ وه        بیګا نه غونده شتاب په انفصال کا
هجري ناز دزمانې په بخښش مهٔ کړه        تلطف ئې صادق نهٔ همه طیطال کا

---

[۱] مخلص (ق-ن)

[۲] دمطلع شعر دغزل دباقي شعرونو د قافیې سره سمون نهٔ خوري.
داغزل په چ - ن کېنې نهٔ وهٔ - قلمي نسخې نه مو رانقل کړو.

## (۳۰)

باد دیاد په هغه یار زما سلام کا — چه له یاره مخامخ مجلس د کام کا
په یوه لاس تورے څنړے دیار نسی — پیوسته په هغه بل غذا دجام کا
صدهزار زړونه ئے بند شی په څونو — یار چه زُلفے په عارضو باندِ دام کا
په هر ذرهٔ چه بنګر کوز دمحبت شی — سرے غوځ په تیغ دجور دآرام کا
هیڅ باور په خورمی دوصال نشته — اورهمه دے نکوی هجر بدنام کا
دوصال روشنه ورځ ډیره خوبه وی — خو تلخی ئے دهجران په سری شام کا

هجری کله شعرګوئے یا ئے طلب وو
له غمونو دِ ذرهٔ سود په دا کلام کا

## (۳۱)

دلشده همه په درشول سناسیان ستا — څکه تن په ایرو رغړی په آستان ستا
په دا حال به دِ له دره تیښت وُنه کا — کهٔ ئے همه تر تورو تیر کا جلّادان ستا
کهٔ ئے منع څوک په زور کا کمان مهٔ کړه — چه د ذرهٔ مهر به نور کا عاشقان ستا
څوک دِ څکه ژوندی نهٔ ځیٔ له دربارهٔ — چه هر یو قوت دشیر لری سګان ستا
له بنائسته به دِ کله څوک خبر وو — زما مینے نام نامی کړ په جهان ستا
ما سنګدل لیدلی ډیر دی په دُنیا کښے — وے تیر دی تر همه وُ نوکران ستا
چه دِ حسن ما څرګند کړ نو دِ غل شوم — چه مے تل شړی له دره نګهبان ستا

نکه ستیره شوه لیلیٰ نوم نه باقی دے — تل به[۱] هسے وی بیا یاد زیب زمان ستا
د ریاض گلزار به څه کړم چه ته نه یې — گل هرگز په څهره نه وی د بستان ستا
زه خټک د قسم کړم په توره و سترگو — که رانږیځ وی په صورت د هندوستان ستا
کافرنه کا هوسره قصد له مسلمانه — لکه[۲] وکا په عاشق باندے هجران ستا

ترپالنگه به د یوځل هجری درشی
که په زړه راضی کیږی دربانان ستا

## (۳۲)

زړه مے تل په هغه مخ پسے فغان کا — چه ضیاۓ چراغ گل په یو زمان کا
دځیگر په تاؤ مے سترگے شوے لالونه — ترسرو لالو ملغلرے دی باران کا
لطافت چه یے په خیال کښے تصور کړم — بے درنگه د آرزو اوبه دهان کا
له قامته یے قیامت هلته نازل شی — چه تمکه په جبین کیږدی په خله پان کا
دعاشق پنجه شانه وے غم به نه وه — چه کاکل یے په څورنگه پریشان کا
نازکی یے د تن څه سره مثال کړم — بے وقاره گل ورق مهین کتان کا
کله سیل لره ورځی چه زیوری غواړی — عاشقان تالاکوی نوے سامان کا
په دوؤ چشمو مے شیرینه ترلیلیٰ ده — خو په زړه مے خرابی لکه لیوان کا
طرفه یون په لارے کا دخنړ یو کسره ے — که زه مرم صنمه څه دکنړه ے زیان کا
دواړه شونډے یے عسل انګی سیب دی — دعشاقو زړونه توپل په دغه خوان کا

---

۱ تل به هسے وی په یاد د زیب زمان ستا
۲ لکه کالیٔ په عاشق باندے هجران ستا
(ق - ن)

ستا تورې زلفې لکه جال پروت را خور شوې ... 

## (۳۳)

پـه دنګو چـه آلوده جوړه آهـو کا — بې دقاره آهـو دواړه د آهـو کا
دمړونو زینت ئې کله زیور غواړي — چـه مدد ئې کاریګر دسرو یاهو کا
صبر وهوش ئې کوم ګناه د زلفو اوکړه — چـه ئې موږي پـه هر زړه ګوري جاهو کا
هرګز یاد هغه ساعت دوصال مه شه — حرارت ئې دارمان خوـلې راهو کا
خرمي دوصال لاړه غم ئې نه ځي — تـل د زړه پـه سرولاړ لیږي هاهو کا
دفراق اوښکیو مې زور اوکړ په چشمو — چرې نه چـه ئې سیلاب کـې لاهو کا

دمجرّي له آه دار اوکـړه رقیبـه!
تـل دشپې پـه لمن اوژاړي یـا هو کا

## (۳۴)

چه زړی او ډنډې په سر قمیص سالو کا
په هر زړه چه عقل موږ کوږے لو کا

د زلفینو شان ئے هسے شی له باده
لکه بوټی په ډیر مېلو کشمالو کا

لطافت ئے د نامه کوره چه یادشی
ترشکرو لا شیرین هغه تالو کا

په عارض ئے د خال زیب تر هغه ډیردے
څو جلوه په ګل د نار بورا کالو کا

کوم لذّت به ئے بیالی کاله شفتو
چه خوبی ئے بیهوده قند والو کا

سحرګو اوربل ئے ګورئ زمانیو
په خزان شګوفه وا د شفتالو کا

د عشق لار به هیڅ پاخه تر سهله نهٔ وے
مګر خام ئے تصوّر کور د خالو کا

د جهان په باغ چه ګل فلک ئے مروړی
په مکان ئے تربیت د سمبالو کا

زهٔ هجرؔی په دا هُنر غمونو ډوبې کړم
د وطن عیش به بهرام و مسیّ مالو کا

## (۳۵)

سبا شُم له زلفو پټ د مستے ماه کا
بے د رنګه واړه لطے د چمن راه کا

په دا شم چه مباهی تو له غُنچه شی
د هوسه خلهٔ کشاده به واه واه کا

د دنیا تعبیر ئے څهٔ دے خبر نهٔ ئے
چه فاخته ئے تن د سرو به خرګاه کا

دائے شرے خَتے په تن ګلونه ګوری
په آتش به ئے د ډیرو کود تباه کا

هغه چارے په زړهٔ اوکړه سرو عزادو
لکه زیړه کهربا چه ئے په کاه کا

دزلفینو شم ئے باد پہ سحر یوسی — پہ زمن پہ زار دشکو ارزانی کا
کۀ ولیتۀ دزلفو بیعہ کانکو نہ — ھسےٗ نہ چہ پہ چا جور گرانی کا
ددنیا دولت ئے بیعہ دموئے نۀ دے — پہ عاشق لہ ډیرہ مهرہ آسانی کا
چہ سنگار دحُسن وُکا څۀ عجیب دے — کہ مُلک ئے وُدیدن تہ حیرانی کا
چائے مخ پہ چلو ستر کو رُو برو کړ — چہ پہ رب ئے وئیلی نہ دسبحانی کا
لا بہ اوس دحُسن بل کا پہ مدکو څو — کۀ بیسر پہ ځائے دنتے مکانی کا
چہ ئے ملۀ دحُسن غواړم لہ فکر تہ — زړۀ مے زر لہ تنہ دغلن توانی کا

چہ دحُسن تاج ئے ځل، ملامت نشتہ
کۀ حجریؔ پسے بدن قیس نشانی کا

(۳۷)

پہ گوهر و عاشقان د کے کیسے کا — چہ آغاز ے مستہ شاہ خوبۃ ے قیمے کا
پہ هر زړۀ کښے ئے دعشق لمبہ بلیږی — لا ئے سترگے د ناتار لڑکی پسے کا
هسے نہ چہ ئے پہ روہ دحسن کوک دے — د پنجاب خلق ئے لا قیمے لیسے کا
بل مطلب ئے تل پہ تاوُ دزلفو نشتہ — د زړۀ بند ئے پہ خاطر بخته رسے کا
څوک دعشق پہ نرد بازی گټلے نہ شی — کۀ طلب شی د دوششِ بنکارہ دوسے کا

---

لہ هسے نہ چہ پہ چا جور وگرانی کا (ق-ن)

هسې کار چه ئې شکن د زلفو کاندی — نه ئې سحر د ساحر نه ئې سیاه کا
بس والله زړونه به اووینې په سترګو — که نما د زلفو وَل د ذقن چاه کا
بیائې زلفې خم په خم په دا نمط کړے — چه په غم ئې د شیدا عمر کوتاه کا
غنچې ئې مه کسه په لور د تورو سترګو — صفا بخت به دِ ترکیسو لاسیاه کا
خو نړی یاقوت ئې اوپو بښتئ سرېو — چه په کومه وجه خون د بیګناه کا
که ئې دار له خپله بده خویه نه شی — بنے او کینړی د نتے دُر وے پناه کا
له کتو ئې صبر خشکل کړم واعظه — صد ساله توبه باطله په نړګاه کا
که ئې اووینی ناصح طلب ئې ګوره — چه ئې نن له مخه تل زما مناه کا

هجری تن د غم د یار هغه تنور کړ
چه لوګے د اُور شمله په یوه آه کا

## (۳۶)

چه دلبره په عاشق مهربانی کا — کام روا ئې په دیدن له امانی کا
د کنار په نعم پس له ره نما نخه شی — بوره لب ئې له اوله مهمانی کا
نور ئے جُونه ئې خاد ے شاه صاحبه — په سریر د حسن ناسته سلطانی کا
په څو رنګه ئې کېږدی حنا په لاسو — واشمه په هنرځان لکه مانی کا

---

۱ سرداری
۲ په څو رنګ ئے حنا کیدی په لاسو { ق - ن

دعشق لار ډیره مشکله ده بیشکه    په دا لار له ډیرو یون کیے کا

مجرَی ته چه بوس لیـه غوارے له یاره
بنائسته آشنائی کاله بے پیسے کا

## (۳۸)

هغه څوک چه د فانی دُنیـا اسـرے کا    نهایت ئے مرګ هغه اَسرے خورے کا

په هیڅ مخ دبخات لورے موندهٔ نهٔ شی    چه سوارهٔ داجل تیرے ترے پیرے کا

قضا زر پکښے توده کا تو دے خاوُر ـے    هغه خُلے چه زمانه شـکر خورے کا

پرورش په نعمت څهٔ لره دځان کرے    چه آخر ئے چیچی نوش لکه ترے کا

چه بُنیاد د ودانیٔ پردی په دا مزکه    چه نابود ئے شین سپهر له ابرے کا

ما چه اولیده ددُنیـا نادان وکرے    داوبو په مخ جاب غونډے دیرے کا

د قرار ولدیت خپل دهیچا نهٔ شهٔ    څو داشنه څرخه په سر باندے پرے کا

هر مکان چه بنائسته په ودانیٔ شهٔ    په شتاب ئے پیبن وابنهٔ لکه میرے کا

د وصال مزے محکم دابنکاره نهٔ شهٔ    څکه زر ئے د هجران لاسونه پرے کا

خُرمی په جهان نشته کهٔ پیـدا شی    هم هغه زمان ئے مرګ خاوُرے ابرے کا

نقاره په دروغ ژغ کاچه ښادی ده    غم ئے څکه دوئی عالم ته مسخرے کا

په مجرَی ئے سینه مخ په خپل مراد کره
سود ئے څهٔ کهٔ اوس سپهر ته بنیرے کا

(۳۹)

که[1] مې کښ دلبر ځای د کف پاسې کا
تر هر چا به لوړې زما د عزت ځای کا

زه د یار د در د خاوړو آرزومند یم
نور عالم همه آرزو و ظِل د همای کا

که ئې یار همیش په اور د هجر سیزی
عاشق نه دې که ظاهر غیر و ته های کا

زه د وصل له دولته پناه غواړم
چه آغازه د هجران خبره ناسې کا

د وصال زوال به ماله قصه هیر کړي
دا خبره د کوچ بله چه ئې درای کا

هغه تیر عمر هر ګز د زړه یاد مشه
په ژړا مې او چه مژګه ستر ګې لای کا

هغه دم چه زه له یار سره خلوت وم
یاد که وکا د لیری عمر به بای کا

رنګ و بو یه دیر حاصل کاندی ګلونه
قصد ریاض له ره په سیر د نس باسې کا

د هجران د اغونه یوسی چل وطن ته
هر بشر چه هویدا په دا سرای کا

روغ عالم د مال و ملک خبرې کاندی
د دلبر حکایت تل د عاشق رای کا

یار په ځیر ګوره هجری همیشه وینی
چه په خلقو ئې ګردون حادثه رای کا

(۴۰)

چه ئې زلفې پخپل مخ کړې پیچ و تاب
زما زار په مخ ئې پرانت د غم باب

غم د یار همه لما کړه میلمه شه
ما حضر ورته پیش کړ زړه کباب

محبت خه هسې زه مالیده نه کړم
چه په خوښ شم په سل جامه د شراب

---

لـ دا غزل په قلمی نسخه کښې نشته.

زهٔ په تیغ د هجر غوځ بهار به څهٔ کړم — زیړے روغ خلق ته کار کا د رباب
لا د عشق لیے وما وته جنت شوے — یا ماهیو ته بهشت ویسم دریاب
په نرمئ د زړو تسخیر کا غلط مهٔ شه — دام طاؤ ته صیاد پټ کا په تراب
چه په خم د زلفو بند شوے تینته مهٔ کړه — مرغهٔ لا په جال اخته کا اضطراب
نن به څهٔ مومم رِها د عشق له چنګه — که هر څو مے وریتوی د عشق په تاب
هغه دم مے دَ زړهٔ زرکه ښکون کا — په ازل چه ښکار کاوه د دهٔ عتاب
د ذقن په چاه کښے بند رها مے نهٔ شی — مګر راکړه له دوو زلفو یو طناب
شپه د هجر طولانی ده تر حسابه — څو به ورځ د وصال ګودم زهٔ خراب

ما هجّری چه د باور په چشمو اولید
د وصال عمر دیر کم دے تر حباب

(۱۱۴)

خستهٔ[1] زړهٔ مے تازه نشی په شراب — خشکه ونه پهلاؤ نهٔ کاندی په آب
شورش مهٔ کړه د ګردون له کشمکشه — لومه کلکه کړه مرغئ په اضطراب
له هر چا طمع په قدر د هُش کړه — په[2] منګل به واطه نشی د عقاب
هر صنم وخپل سیُن ته حمیده وی — ماهی خوښ په بحر نهٔ وی تر تالاب

---

[1] خسته زړهٔ مے تازه نهٔ شهٔ په شراب
خشکه ونه باران نهٔ کاندے په آب } ق۔ن

[2] په منګل به ورطواط نهٔ شی د عقاب (ق۔ن)

تو یول د شهاب شهٔ عدد ئې څوک کا
ذرّه او به کرم د هجران په شپه عذاب

د حاسد په طعنه غاوُ نهٔ کا رښتینی
په سنګینه مزکه شور لری سیلاب

نهٔ به جال د مکر بند شی د رند انو
نهٔ به جلشی د نهنګ په مخ ګرداب

پېکوڼګان دِ فکر نهٔ کا له دو ړ نګو
سم سعوړی د منګور کج شی په طناب

په زحمت به ئې ګردون ترحم وُ کا
کهٔ په مړ دلسوزی کړے وی قصاب

عندلیب خټک بندی په هسے ملک شهٔ[1]
چه طوطائے ژبه وانی د غــــــــراب

(۴۲)

چاچه اولیدهٔ په یار بانړ زما حُب
ورته سهل شهٔ د هیر او د رانجا حب

د مجنون عشق به مشهور په دهر نهٔ وه
کهٔ تر عشق ئې زیاتی نهٔ وے د لیلیٰ حب

د وامق د عشق به هومره غوغا نهٔ وه
د یر نامی کړه په جهان کښے د عذرا حب

هغه مهٔ شماره عاشق بلکه کاذب دے
چه ئې سوړ شی د دلبرے د جفا حب

په دا دور زما ستا د عشق نوبت دے
اوس قصّه شو د ښّد او د اسما حب

دا په هم آخر فلک ګاند ه ماضی کا
لکه تېر شهٔ ورته هم د ګلشا حب

څو دیار ذړهٔ ئې مائل دے و جفا ته
د هجری شهٔ همیش هومره په وفا حب

---

[1] عندلیب خټک ئې بند په هسے ملک کړ (ق - ن)

## (۴۳)

چه دایم دِ دے له زړهٔ سحر مصحوب — هم هغه دے په دُنیا کښے ستا مطلوب
څوک حسن گیرنده د زړونو نهٔ وی — په زور نهٔ شی څوک هرگز دچا محبوب
هیرجدل عاشق واصل په مطلب نهٔ کا — څوکےۤ زړهٔ دعشق په کار نهٔ شی مرغوب
دوصال سحر ئے کړه په خرمئی کا — کهٔ دهجر شپه مئین کاندی مکروب
په هجران کښے ئے نظر دستر گو کم کړه — بیا بینا شهٔ دیوسف په مخ یعقوب
دعشق جیش ئے هسے زور دایانهٔ وُکړه — چه ئے عقل له دماغه کړه مسلوب

هغه‌دم په ما هجری عید اکبر دے
چه نازل شی په دکن دیا مکتوب

## (۴۴)

کباب دل به ے تازه نهٔ کا شراب — وُچهۤ ونه خو مریمے کړه په تاب
تیښته مهٔ کړه دگردون له نوائبه — دام دِ نهٔ شلوی مرغئ په اضطراب

---

۱ څوکے زړهٔ دمعشوقے نهٔ شی مرغوب (ق - ن)

۲ وَهُزِّي إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَاقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ه (سوره مریم)

او اوخوزوه په طرف خپل بیخ دکجورے لره چه وغورزوی په سر ستا خرما تازه -

دشعر مطلب دا دے چه دکجورے اوچه ونه خو په بی بی مریم تانده شوه ولے زما سوزیدلے زړهٔ به په شرابو تازه نهٔ شی -

هر بشر د مراتب په قدر کار کا — نیونے نهٔ شی د باشین صید عقاب

که عقاب حمله د چتی په نیوهٔ کا — په منګور به ئے ورنشی تراب

د مینې ژوندون مشکل وی بے ضمه — د ماهی موت خشکی حیات دریاب

کواکب په ژړا شمیرم نهٔ تیریږی — طولانی ده د فرقت شپه ترحساب

صفا د دل دجګړه نهٔ کا له بد ذاتو — بحر نهٔ شی کهٔ غوغا کاندی سیلاب

د چلے لومه په بند د صادق نهٔ شی — نهنګ کله بیرحصار کا د کس داب

کهٔ دقن رسولړے سدا د پیشه کړه — د راستئ په مجلس کوزګوری قلاب

صادقان به وے دار کا له کذابو — نهایت دکار مطعون کړه کذاب

هجری ستا په ژړا دوی نهٔ رحمیږی
دلسوزی په مژونو کله کا قصاب

## (۴۵)

ډیرے اولیدهٔ ملوکے د ګلزار زیب — وے نهٔ لری هرګز ستا د رخسار زیب

ما چه حسن ستا د مخ په سترګو اولید — نور یه نهٔ ګورم هرګز د ګلبهار زیب

ستا د مخ حسن محتاج د زیور نهٔ دے — نور د مخ سره مدد کا د سنګار زیب

سپین بدن د کهٔ نقره بولم روا دے — چه ئے مات په سپینډئ کړ د چوتار زیب

لکه ستا په عارض باندے خال جلوه کا — هسے نهٔ کا تور بورا په ګل د نار زیب

دا زینت چه ستا غنچه کا د شونډو — لاله نهٔ کا هسے شان په لاله زار زیب

چه بیرته دِ حیران هاله به څهٔ کا     که دِ اوویني عالم دچندنړ هار زیب
هیڅ شاعر به ئې تمام په قرنو نهٔ کا     کهٔ دِ شب وروز بیان کا دگفتار زیب
په خرام دِ دری زرکه شرمنده کا     روښن څکه شهٔ تر نرستا د رفتار زیب

زهٔ هجری ئې دبنائست خبرے څوک یم
چه ئې ختم په بنهٔ مخ شهٔ دادوار زیب

(۴۶)

دهجران له دوکه څهٔ وایم وچاتَ     پرے ئې نهٔ شهٔ د فریاد طاقت وماتَ
هر ستم چه په ما کا همه روا دے     خو یو ځل دِ مسته وه دری مخ راتَ
سرهٔ کندن ئې په مرونډ عجب نما کا     هرگز مهٔ شه په آفت دگردون ماتَ
دلسوزی ے[1] په حال ډیره کړے طبیبه     وائې خلاص به په علاج شے له آفاتَ
دبدن رنځوریٔ پیژنے بیشکه     د زړهٔ درد برهنه کله وی وتاتَ
زهٔ خټک هرگز رضا په پردیس نهٔ یم     دیار مینے کړم جدا له قراباتَ

د هجری غم به بیدل په خر مې شی
که[2] څوک داوړی کړه ے له خراباتَ

---

[1] دلسوزی ے په حال تل کوے طبیبه
[2] کهٔ څوک داوړی کړے ے له خراباته
} ق - ن

(۷۴)

چه یې اولیدهٔ دلبرے ستا بنائست | شکست وخوړ د قمر والا بنائست
لکه ستا حسن عالم زیر و زبر کړ | وران به نهٔ کاندے ملک دچا بنائست
ډیر دلبردی په جهان کښے مالیدلی | په دین نه کړ ستا په مثل ما بنائست
چه یې سیال دحسن پرنهٔ یشی په دور | صد رحمت شه ستا دمخ په دا بنائست
تو بازار دخلقت کرم په جهان شهٔ | دائم نهٔ وسی یو ځائے وفا بنائست
څوک دِ طمع دوفا دکښکلیو نهٔ کا | په ملک نشته دچا بے جفا بنائست

هجری یار که وفا نهٔ لری معذور دے
هرګز نهٔ وی له جفا تنها بنائست

(۷۵)

ما چه اولیدهٔ په سترګو د والا بت | شاید نهٔ په وی داسے په دنیا بت
خپل بتان به آذر واړه په اورکښے سول | په ژوندون که یې لیدلے وے زما بت
داچه ئن یې زما زړهٔ یوړهٔ له تنه | هسے نهٔ وه پخوا هم دصنم شیدا بت
زما بت بنده دحق زهٔ یې عاشق یم | هرګز نهٔ وینم کافره ستا بلا بت
رسیدل مولا ته هومره مشکل نهٔ دی | که حائل په میان کښے نهٔ وے دهوا بت

---

لے داشعر ق - ن کښے نشته
۲ داشعر پح - ن کښے نشته

ولایت به د مطلب په حیات خپل کړے | کهٔ نابود کړے په کوشش د عمل دا بت
هغه رب زما خالق چه لا شریک دے
هجری مات که خلیل کړ نا روا بت

## (۴۹)

راشه راشه یوځل وُدرېږه مخ راتهٔ | څوخبرے به د راز وایمه تاتهٔ
هغه راز چه مے په زړهٔ کښے پوشیدهٔ دے | بے له تا یه ئے ونه وایم هیچا تهٔ
چه دائم ئے رنګوے دیار په وینو | ستا کنړئ به د مرهم کا آخر ماتهٔ
تهٔ چه هسے زړونه تل په غشو وہلے | هیڅ عبرت نهٔ کړے د سوځو له آفاتهٔ
زهٔ په دا موت اول غواړمه له یاره | چه اګاه ئے هرګز نهٔ شم له وفاتهٔ
چه ئے حسن ته څوک کوری هسے واتهٔ | چه دا مخ بیشله کوز له سما واتهٔ
هجری اصل ئے انسان کهٔ بنا پیری وهٔ
په یقین ئے څوک خبر نهٔ شو له ذاتهٔ

## (۵۰)

مخ ئے هومره د کتوتی کا نظر تهٔ | چه د هیچا نظر نهٔ کا هسے نمر تهٔ
څوک ئے غښتی ځکه دیدن ته کتے نهٔ شی | چه په دم ئے کا نظر نور د دلبر تهٔ
زهٔ ئے مخ په قمر څشکله نسبت کړم | نظر نهٔ کا د هیچا مخ د قمر تهٔ
د بنا اُست پایه ئے هومره دهٔ بلنده | چه ئے وینم تر خوبئ پورګوم تهٔ
لطافت ئے د رخسار مشاهده کړه | چه زینت ئے کړ یاقوت همه احمر تهٔ

دیا رحسن به هم هسے فلک تیں کا | نکه وار کا دخزان دگل بشر تت
هر ساعت چه په دیدن د ریاض ورشي
د مخ زیب ئے کا مجذوبی گلونه تر تت

(۵۱)

د مخ زیب ئے نقاب لرے کړ دلبر تۀ | بیهوده زبونی پسری خپل نظر تۀ
دادعوئ په ستا هاله خلق باور کا | کۀ په خیں و سترگو وگوری و نمر تۀ
بنا ئستهٔ گله! پسرهٔ په ریاض اوکړه | صد هزار د منتظر دی مخ انور تۀ
تورو زلفو ئے عزت دمنکومات کړهٔ | نۀ ئے قدر هیڅ پرئینے دے عنبر تۀ
چه له سترگو ئے دائم برابری کړه | بنۀ چه رنځ د زیړی ورغے عبهر تۀ
په زیور آرائش کا چه زیبا نۀ وی | تۀ گلرنګه څۀ محتاجه ئے زیور تۀ
لږ ئے حسن په عارض دیار مثال دے
څکه ډیر گوری مجذوبی گل احمر تۀ

(۵۲)

عجب شور په مزکه کښلیو کړی احداث | له جورونو ئے څوک نۀ کا الغیاث
ماچه اولیدهٔ بازار د مهوشانو | صفه څائے ے کړی نازل دکور اثاث

---

۱؎ تۀ چه واے نقاب لرے کړه دلبر تۀ
بیهوده زبونی پیرے خپل نظر تۀ } ق - ن

۲؎ ذیړ نرگس -

په جهان اګرچه ډېرے دي ګلرنګے — ن دحسن ستا په سر وینم رعاث
مګر چشمو دِ په لوټ د زړهٔ صرفه کړه — چه کومک لره دِ چودے کړهٔ حشاث
دیار غم ے بیا په زړهٔ غلبه اوکړه — مطرب بولی چه آغاز کاندے عشاث
زما عشق به ډېر وګړی لیسونی کا — که ئے پس له ما قسمت کا په میراث
کیفیت دعشق عشاقو ته روشن دے — په احوال دکینت دانا ګنړه حراث
زهٔ به هله داغ دهجر برهنه کړم — په قیامت چه خلق وکا انبعاث
زهٔ هجری به دِ له دره تیښت اونهٔ کړم
کهٔ مے وژنے مره ورځ څله ثلاث

## (۵۳)

چه مے یار په ملک دحسن شو مبعوث — هغه ورځے ئے عشق پیدا اوکړ حدوث
داجنون چه نن په بخره دختک شهٔ — له مجنون په دور پاتو وهٔ موروث
دا بتان خلقت د رب زهٔ پرے مئین یم — صد لعنت شه په دوستانو د بغوث
دغلام په نام مے یو څله طلب کړه — چه له دوکه شی هلاک رقیب دیوث
دعاشق په زړهٔ کښے عشق هسے شورش — لکه نسهٔ وزی دچا په خت برغوث

چه دِ یار له عشقه منع د هجری کا
هغه کس ګنړه د درست دهر هلیوث

## (۵۴)

زهٔ که وُکړم ستاله جوره شا غیاث ... کله آروی په ملک څوک زما غیاث
په احوال ے التفات وکړے نهٔ کا ... ستاله عشقه تلکوم ژړا غیاث
ماچه خوئ د بنا ئسته وُ تجربه کړ ... هرګز نهٔ کاندی له چا وفا غیاث
هرٔ عاشق چه ژړا وُکړه له دلبرو ... کله غوږ کا دحیران وُچا غیاث
په رانجا به کار دعشق و لے مشکل وُه ... کهٔ نغوتے ددهٔ غیرت هیرا غیاث
په ژړا ژړا مجنون په دشتو وُمړ ... و ے ګوش نهٔ کړ ددهٔ لیلیٰ غیاث
که لهٔ جوره دِ زهٔ ژارم سودے څهٔ دے ... چه څوک نهٔ آروی زما آشنا غیاث
چه دیار دجور داد په دوړ نشته ... نور به نهٔ کړم په عالم لتا غیاث

هجرَی غاړ کله څوک آروی دبُتانو
چه به آروی اوس وکړے ستا غیاث

## (۵۵)

چه په ملک دحسن ستا په سر دے تاج ... مناسب دی کهٔ له کبنکلیو اخلے باج
دخوبئ سداح دِ زهٔ مهر په بل کړے ... ستا په دور ے نن اولید دا رواج
نهٔ دچا په زړهٔ جوړه مینے وفا کا ... نهٔ په یو مزکه وطن کا دوه مهراج

---

۱ داشعر چ-ن کښے نشته .

هغه یار چه په دیدن ئے مبتهج وم　　په ارسال ئے دجواب یم نن محتاج
جدائی په رضانه په زور ئے یو تم　　د قضا قوت چوګان وه زهٔ مُغلاج
دمراد دامن بلند رسد مے نهٔ شی　　مګر هسک مے کادمهر په معراج
هغه مهٔ ګنړه عاشق بل منافق وی　　چه جُدا له یاره کاسندی ابتهاج
د نفاق سردهمت په توره غوڅ کړه　　هاله درومه دعشاقو په منهاج

په ساتل ئے فهم بویه چه مات نهٔ شی
دحجری خاطر نازک دے تر زجاج

(۵۶)

تاچه مات کړی سر دزلفو په رخسار کج　　عشق ئے وکړ په خاطر زما پرهار کج
ستا په قد ئے چا خوبی ده نسبت کړے　　وُچ ولاړ لړګے دسروے ناهموار کج
ما اظهار دمینے کړهٔ زورل ئے وکړهٔ　　له هوسه مے په سرکښینه دستار کج
غم به دیر هسے کاندهٔ لکه لیندهٔ کا　　چه ډجوړ کړی په سینه دډرو هار کج
دابرو په کج دبخت دجهان کوږ کا　　لا به څهٔ شی کهٔ له کبره کړے ابصار کج
خاصیت ئے دګردون په دود مانش کا　　کهٔ هر څو دی په زیب نهٔ لری رفتار کج

لکه ستا صورت بے وسه رب پیدا کړ
دحجری هم هرګز نهٔ لری اشعار کج

## (۵۷)

لکه توره دیار هجوکړه په ما ورځ    په چا ورمهٔ شه هرګز مه یـیا ورځ
تهٔ زما په هجران خوښ مشه رقیبه    نهایت به شي دا مه توره ستا ورځ
کهٔ وفا د وصال وار له هیچا نهٔ کا    آخر شپه د هجر هم شي مجلا ورځ
د شباب د بهار ورځ تږګلو بتهٔ وه    ولې نهٔ وه چندان مه با وفا ورځ
یاره راشه په دیدن مې مشرف کړه    حق پیدا په جهان نهٔ کړه د بقا ورځ
تهٔ چه تل وعده د وصل په فردا کړې    ګوره کوم مخ تو لد کاندی سبا ورځ
ورځ د عیش لکه باد مه آخر شوه    څو به ماسره کینه کا د عنا ورځ
نو آخر به لکه باد مه ماضي شي    داچه وینم د فرقت بې سر و پا ورځ

غم بنادی د ګردون تل په قرار نهٔ وی
نو به تیره شي هجری دا د جفا ورځ

## (۵۸)

مکدر نږونه څو مخ کا د آشنا ورځ    هو مره نهٔ کا هرګز مهر انجلا ورځ
ما په شپه کښې د هجران عمر آخر کړې    لا به کله د وصال وینم صفا ورځ
لکه ماته محامخ شوه له دوړانه    پسبه مهٔ شه په هیچا مه بلا ورځ
فلک ډیر ګوشمال ؤما په مدت راکړ    ګونډ بیا په مراد راڅیشي زما ورځ

هغه دم چه د راحت وو پا تو نهٔ شو — تل به کله پائنده وی د عـنا ورځ
ن زما اوستا د عشق خبرے کیږی — پرون لاړه د مجنون او د لیلا ورځ

د هجری خاطره خوښ وسه په غم کښے
نهایت به مخ ظاهر کا د خندا ورځ

## (۵۹)

په دنیا به هسے نهٔ وی څوک سبک روح — څولری تل شگفته یار د څټک روح
یو نظرے هسے زړهٔ له تنـه یوسی — لکه رانـی نه چا تیر وتهوپک روح
عاشق زړهٔ هسے دیار په زلفو باٸے کړ — لکه باٸے کړ گدایانو په بنانک روح
نهٔ عاشق دیار له عشقه صبر کا ندی — نهٔ شکیب له شیرینٸے کا د ملک روح
زړهٔ ے هسے دیار هجر په اورسیزی — څو ورتیری په دوزخ د بد ملک روح
تش صورت د څټک شته په بیجار پو رکښے — تل ٸے سیر، پورے کاندی تر اتهک روح

هجری هسے خام عاشق نهٔ دے دلـبره
چه دربان دِ ٸے هیبت کا په کوتک روح

## (۶۰)

نن ظاهر کړله نقابه خاکی ماه یـوح
سیال ئې نهٔ وو دخوبئ دفلک ماه یوح

دمهتاب انوار به څهٔ وی هغه نوُر ستـه
چه ئې مخ کړې وقار ترګیاه یوح

دماه مخ ته څیر به څه شکله ته ګورے
چه کتے نشی هرګز په غټ نګاه یوح

مخ دورځے هاله شپه په زلفو پټ کا
چه په غم کاهغه دَم دمغرب چاه یوح

دشپے زلفے بریده ورځ هویدا کـا
چه خنجر له شرقه اوکاږی په ګاه یُوح

په خاکی مزکه ئے سیم وزر نثار کـړهٔ
چه روان ئُے له ماهیه کړے سیاه یوح

هجری تورعنبر دماه پـه مخ ګـوره
هرګز نهٔ لری عنبر هسے سیاه یوح

## (۶۱)

وخالق ته چه څوک کا سحر الحـاح
زر پیدا کا دقبـول اثر الحاح

په تاهجرے تاشیں دفریا د نهٔ شی
عاشقان چه کاهمیش په دراالحاح

دبنانُست کبر کهٔ ووځی ستاله سره
هاله واورے تهٔ دچا مګرا لحاح

نن ژړا دخلق اوره چه وار تیر شی
اوبه نهٔ کا درسته هیڅ بشرالحاح

ستاپه زړهٔ به دالطاف اثر اونهٔ شی
که له کوره درته کا اکبر الحاح

فغان سل ځله فغان ستا له ستمه چه هیڅ نهٔ لری لتا شمر الحاج
یو بوسه دِ په هزار منته غواړی
کله اروی د هجری اخقــر الحاج

(۶۲)

چه دشپې په لمن څوک وکا الحاح مطلبونه ئې رب واړه کا انجاح
دتقوی لمن مضبوطه کړه په لاسو که پکار دِ له دوزخه دے فلاح
تر دا لوئے ګناه بل مهٔ ګڼړه په دور چه ملال کړی په ناحق دچا ارواح
داوینا باطله مهٔ شمیره چاهــله! په دا ووئے دی متفق اهلِ صلاح
چه ګناه له چا صادرشی بهتری ده که مستورئے کړودعفوے په اجناح
ستا په مخکښے څوک یم پورے په نهٔ شے مګر نیک عمل بیرئے کړه هم ملاح
له عفو به څهٔ امید د خیریت وی چه بے غمه حرام خوری لکه مباح
بدٔه دینه به دتن بنهر خراب کا کهٔ ئے رګ دخروج وانهٔ کا جراح
دابلیس خبیث حرص درته تعین دے پښ سپاهی کړهٔ ځان دخیره په صلاح
اے هجری کهٔ وسیله دجنت غواړے
دپرهیز ناوے زوجه کړه په نکاح

(۶۳)

په دینا کښے پیدا نکړو هیڅ ګلزار مخ چه خزان ئے زخمی نکړو دسنګار مخ
کوم وصال کوم دولت چه میسر شهٔ چه ئے خال دجدائے نکړو اظهار مخ
چاسهرا دهوس کښه په سر کښینوه چه فلک ئے نسکور نکړو دستار مخ

چه معیوب په خط وخال دفنا نهٔ وی
ما او نهٔ لید په دُنیا هسے همواره مخ

باقی ګل په باغ ددهر موندهٔ نهٔ شی
څکه تل په وښکیو تروی دهزار مخ

دا ګردش د زمان هسے بازیګر دے
چه هردم کا برهنه دنوی کار مخ

چه ثابت په یوه لوروی جنبش نهٔ کا
هرګز نشته په جهان هسے قرار مخ

دنن کار طمع هرګز له سبا مهٔ کړه
سبا ګوره هویدا شی دکوم کار مخ

راشه زړهٔ دختک اوګوره مینه!
چه هرلورے لری دغم پرهار مخ

هیڅ باور په رفاقت دعمر نشته
هجری هر نفس په خیر ګوره دیار مخ

(۶۴)

په دربار دِے هغه ګرځی ګستاخ
چه له غیر وے خالی وی دزړهٔ کاخ

کړه څانګه ماليار غوټه په آرهٔ کا
پرورش کا همیشه دسیدها ښاخ

تهٔ قابل دیاری نهٔ ئے لاف مهٔ کړه
کهٔ ړد وی په ملک دزړهٔ خیرے دماخ

د واعظ وعظ باران اثر پرے نهٔ کا
دجاهل دزړهٔ پټے دے صمه لاخ

آرویږه لیدهٔ هغهٔ ته نصیحت دے
چه ئے لاړ دزړهٔ په ملک وی دسماخ

دمعنو مغز دانا ته برهنه وی
نهٔ چه سِر پوشیده مومی هر طباخ

تهٔ په څشکله راز مومے دخپل و
بے زبانه تن ولاړ ئے دکله تاخ

که هر چند سرے کودن دزمانے وی
دخپل عقل ملک تر بل ګنړی فراخ

څومره هم راځی دوصل زۀ به نۀ ځم    زړۀ مے سرله سره هجر کړ سوراخ
بلثانی دجواب نۀ وینی په دور
هجری ځکه پخپل شعر کا پتاخ

(۶۵)

څوک چه اووینی دلبره ستا انور مخ    ورته هیڅ شی ستا په سترګو دقمر مخ
ستا دمخ نور به ئے مات په یو نفس کا    دقمر بنا لُست کۀ هم واخلی د نمر مخ
تاچه سیل دباغ کاوۀ مخ دِ ئے اولید    دچاپه همه زیړشۀ دګل نمر مخ
هم هغه ورځ دِ خوبئ د زینت مات کړ    ځکه سپین شۀ دیزدی ګلاب احمر مخ
چه ئے تل برابری کړه ستاله سترګو    دایم زیړ لکه غماز وی د عبهر مخ
څو د مخ بربښنا دِ غوځ دسرې زړۀ کا    هومره کله په چا کار کا دخنجر مخ
ستاجناب زما وطن پرے معتکف یم    دابشکاره مۀ شه هرګز د بل بشر[1] مخ
دوصال ورځ دِ همیش په ماجنت دی    خو هجران دِ راته سم کا دسقر مخ

په حضور دهجری هسے رقیب زیړ شۀ
څو په کنج دلحد زیړشی دکافر مخ

[1] سفر (ق-ن)

## (٦٦)

کهٔ ښکاره کړی له نقابه منور مخ — له انواره به تغیر کا د قمر مخ
قمرخهٔ چه به سیالی کاستا له مخه — تر نسبت ئے مکدر وینم د نمر مخ
صفائی دِ د رخسار هسے ښائست کا — چه له رشکه ئے اصفرشهٔ د گل مر مخ
اوس د زلفو په زیب ملک د هند اخلے — د روه ملک دِ په ښائست کړمسخر مخ
چه خوبی ے ستا د مخ مشاهده کړه — رابښکاره مهٔ شه هرگز دپل د بیر مخ
د رقیب مخ هسے بد راته ښکاریږی — لکه بد وی مسلمان ته د کافر مخ

غماز هسے په حضور د هجری زیږشهٔ
چه به نهٔ وی د ښیچا هسے اصفر مخ

## (٦٧)

غم ښادی د جهان باد گڼړه یا گرد — په دانهٔ لری پرواه آزاده مرد
امد شد ئے تر سبا هم گرځندی دی — تجربه ےکړهٔ د دوی گرم وسرد
شیخ هوس د زمانے و خوان ته مهٔ کړه — یو لقمه بے غمه نهٔ لری د خورد
په څو رنگه نقش پیدا په یوه دم کا — د فلک دوروته طاس گڼړه د ترد
چا چه ناز د زمانے په یارئ ئے اوکړ — په خندا ئے زخم ورکاندی پر درد

ئے دور (ق - ن)

غم بنادي کهٔ يې د هوش په نظر گوري
د بقا عمرې زياد نهٔ دې ترورد
هجري بد عمل تر شا مخ په صفا کړه
چه په ورځ د محشر نهٔ شې ګوته زرد

## (۶۸)

هرګز مهٔ شه ستا له حبه زړهٔ زما سرد
لکه نهٔ شهٔ له جور و نو خاطر ستا سرد
ما په کله څوک رشتينے عاشق بولی
کهٔ مې زړهٔ شی ستا په غم کښے له وفا سرد
نهٔ زما خاطر هرګز له وفا سوړ شهٔ
نهٔ ستا خور شهٔ په دنيا کښے له جفا سرد
تل په هومره جفا شا نکړه د مڼ ته
نن به خشکله له تا شی زړهٔ د چا سرد
څو غوغا پرے هميشه کړه روغ وکړی
عشق هرګز نشهٔ د قيس له ليلیٰ سرد
د سود پند ورته هميش کړی واعظانو
وامق پند د ميچا نکړ له عذرا سرد
نهٔ دنيا هرګز وفا له ستيرو وکړه
نهٔ خاطر شهٔ د حريصو له دنيا سرد
ستا په دين مې سوے زړهٔ هسے تازهٔ شهٔ
څو ريحان کا ندی وهلے دګرما سرد
د وصال اميد مې تاوٗ د هجران سوړ کا
او تبجن هميش خولے کا د شفا سرد

محبت به ستا په مرګ هجري پرے نن دی
لباسی دے کهٔ يې زړهٔ شی په احيا سرد

## (۶۹)

په د زړه سرے وطن کړو د آشنا درد — په دوا به هرګز نهٔ کړم بدل دا درد
دجهان خوشی ے ځکه پسر شا کړه — چه بهتر تر شکر لا ګڼړم دِ ستا درد
هیڅ عاشق دعشق په زخم دارو نهٔ بردی — د واسل ځله فدا تر دا زیبا درد
دهر څیز عشق له دِ له رمیــــد ه کا — په هر چا چه نزول وُکا دا صفا درد
د وآمق درد ے ثانی دالم نهٔ وو — بل حریف به وی زما د درد دچا درد
غوږ به ونیسی مجنون راسته په ګوتو — کهٔ سایه ے په ګور وکاندی زما درد
ما دعشق په تله وزن د درد اولیــد — دمیحا به نه مره نهٔ وی په دنیا درد
یار په سکن راځخه یا تو درد ے نهٔ ځی — تر یاره ډیر ګڼړم بیشکه باوفا درد
دعشق درد تر دوا مالره بهتر دے — هرګز مهٔ شه دهجری له زړهٔ جدا درد

## (۷۰)

یا بیجرز وو دمغهٔ چاه په فم بنــد — یا ے زړهٔ کړیار دزلفو په خم بند
بیجن هم رستم رها کړله زنـدانــه — عشق ے تل زړهٔ ته پیدا کړد غم بند
مغه دم چه ستا دزلفو په خم بند شهٔ — نورے وُشلا وهٔ له پښو دعالم بند
چه په خم د زلفو بند نجات ے نشته — کله چا اولیدهٔ خلاص په ارقم بند
که فریاد په قاضی کړم ګیله دِ نهٔ وی — ستا طرّو کړو زما زړهٔ په ستم بند

---

ٔ یار دِ د تانه دفادار د ے - تهٔ کله کله غم دِ تل راســره وینــه

څو دیار مینه زما په زړهٔ رقم ده        هومره سخت په کاغذ نهٔ وی قلم بند

زهٔ هجری هاله آزاد وُم په جهان کښے
چه مے نهٔ وو زړهٔ په زلفو د صنم بند

(۷۱)

زړهٔ چه وکړ ستا د زلف په خم پیوند        پخپل ځان ئے کړ سور او ردغم پیوند
څو مے زړهٔ شهٔ منتظم دیار په زلفو        په جام نهٔ وو هومره زړهٔ دجم پیوند
دغم بار مے په تن هسے رنګ ثقیل شهٔ        عجب نهٔ که بیل کالوئے وکم پیوند
زهٔ د تیر عمر په یاد خاطر تازه کړم        هجر بیا کاندی په زړهٔ الم پیوند
تیک د ړے د په او ربل هسے جوړه کړهٔ        لکه وی په رباب زیرو بم پیوند
په کوم کار ئے تو رے زلفے بیان کړے کړے        چه بیسرئے کړ په پوزه سم پیوند

دهجری دکار صورت حُبله ویزار شهٔ
کوندے بیائے کا د خدائے کوم پیوند

(۷۲)

لکه هجر کړ زما په زړهٔ بنیاد        هسے داغ به هرګز نهٔ وی دچا یاد
چه لا نهٔ دے او به شوے له نمونو        دزړهٔ سرمے مشد دے ترفولاد
هر ستم چه مښن کا چاره مے نشته        د دلبر له جوره نهٔ کا څوک فریاد

---

لے دا شعر په ج - ن کښے نشته

ما به سل ځله فریاد هم په چا وُکړ     که موندے چا د دوئ له جوره داد
د هجران الم به ما زیر و زبر کا     ستا د وصل څو را وُرسي میعاد
خاصیت د زمانے په خیره گوره     با وجود د نړا د نمر واړه سواد

تا به کله هو مره شندے په هجري کړے
که دے صبر ستا له مینے کړي فواد

(۷۳)

عُمر خشکل کړندے لاړ لکه باد     بلکه نهٔ لرم تیز باد هسے په باد
د شبابٔ عمر پیرئ همه تاراج کړ     له ستمه دے په چا وکړم فریاد
غم د هجر مُبرّا کړم له حیاته     کشکے زهٔ وے په خلقت کښے بو جماد
پس تر څو د عیش راونیوهٔ فلکه     لا به کله خوابدهٔ راکړے د مراد
په هر چا چه زخم بر دے مرهم بر کین ده     جوړ نه په بیا هیر کړے خپل معتاد
کله بخت سپمز هسے کج وکوړ کا     لکه ړوند شي په خطا د کاتب صاد
بے موسمه وُنه کله میوه کاندي     هر مهم هسے موقوف دے په میعاد
گویا ما د نړا هر گز لیدلے نهٔ وُه     درست دکن را باندے هجر کړ سواد

چه لا نهٔ دے د فرقت اندوه خوړلے
هجري زړهٔ د بس متین دے تر فولاد

---

لہ د شباب عمر پیرئ هسے تاراج کا (ق - ن)

# (۴۷)

چه ئې سازکړ په عذاړو تورې معاذ — بې رخصته مې زړهٔ وکړ استناذ

دهٔ هوس دکتو کړو په ټومه ونبښت — دا یُم ځُکه یم په دې دیار ملاذ

مائې خوند دلبو نیا دکړ په نابا تو — دِل وې څهٔ دې دوې کانړی استلاذ

دآرزو اظهار مې کړهٔ عتاب ئې وکړ — بد ویئل ئې یا مزه وو لا تر فاذ

که مې قصد د وژلو کړې پوښتنه څهٔ ده — په عاشق دمعشوق امر دې نفاذ

نهٔ مې بل طرف په کار نهٔ به روان شم — ستاجناب زما وطن دې هم بیاذ

وفا نشته په وعده د ګلرخانو — دادولت بختور مومی ولې شاذ

دختګ مرتبه لویه ده تر بازو — خو وتاته بې وقار شهٔ لکه خاذ

چه پروا دِ په ژړا د هجری نهٔ شی
زړهٔ دِ سخت ګنړم دلبرې تر فولاذ

---

ئه دا لفظ په قلمی نسخه کښې "التذاذ" لیکلې شوې دې. خو "استلذاذ" او "التذاذ" دواړه دعربئ الفاظ دی چه هم معنیٰ دی - یعنی مزه اخستل، خوند اخستل - وړاندې غزل کښې هم "التذاذ" په طور د ردیف پکاروسې شوې دې -

## (۷۵)

نو شفقت لری آشنا ستا التذاذ
هرگز نهٔ لری نبات دا التذاذ

نبات ستا په لبو څه رنګ څوک نبت کا
چه اونهٔ لید هسې شان چا التذاذ

د دوران په شیرنئے به ئې ورنهٔ کړم
چه معلوم کړو ستا د عشق ما التذاذ

وفا هر چا ته عزت ورکا د بنکلیو
له جفا موسم زهٔ ستا له التزاذ

دا لذت ستر کې حاصل له ګله نهٔ کا
لکه ورکا د یار میم خا التذاذ

سوداګر د قند و سرو هی په لاسو
چه پیدا کا د دنیا شا التذاذ

هجري دار د وصال څشکله لذیذ دے
نو هجران ئې آخر سم کا التذاذ

## (۷۶)

لکه زهٔ یم ستا په در کښې تل ملاذ
هیڅ عاشق به هسې نهٔ وی بل ملاذ

وفا هسې د بنده په زړهٔ میشته ده
لکه ستا په ژبه تل زورل ملاذ

د زړهٔ کور به د هغهٔ د غوبنو نهٔ وی
چه به نهٔ وی په بهار د ګل ملاذ

نسیم مخ د مزکې واړه زر کښې کړه
بلبل تل وی نن ساعت د ګل ملاذ

د فرقت په نوک به کله تل زخمی وو
کهٔ د ګل وے همیشه بلبل ملاذ

عاشقی اسانه مهٔ ګڼړه چا هسله!
عاشق تل وی په جانت دال ملاذ

د هجري قدر به څهٔ په هغه پیار وی
چه سئے دهٔ غوښ ے په در وی سل ملاذ

(۷۷)

مکان څکه په جهان کې غـر معاذ
یا ئے دنیوو له چا مـګر[1] معاذ

کمې پټ وی له چا پکښے لیـدهٔ شی
کهٔ تهٔ ور شے دکومې په سـر معاذ

په هغه زمان ئے تېښت وکړله تلقــه
چه ظاهر کې په بنهٔ مخ دلبر معاذ

له عذارو به ئے ګل همسری نهٔ کا
کهٔ خجلت واروی له چا د تر معاذ

تورمعاذ ئے په بنهٔ مخ هسے لیدهٔ شی
چه ئے هیڅ کا په خوبۍ اخضر معاذ

همسری ئے وے کړه دیار له زلفو
چه پریشان کې په هر دربش معاذ

هجری هیڅ وقت پرے مهٔ کړه سزاوار دے
په مستئ کې خپل عزت ابـتر معاذ

(۷۸)

لکه ماته کړهٔ نصیب همه جهان اور
هرګز مهٔ شه په هیچا هسے زمان اور

په هغه جهان کافو په آتش سوزی
هجر یل کې په دنیا زما په ځان اور

بیلتانهٔ هسے آتش راباندے بل کړ
لکه بل کا د بلبل په زړهٔ خزان اور

په انداز زما دسوز کله پوهیږی
چا چه نهٔ دے آزمائیلے دهجران اور

کهٔ دیار دهجرغم راباندے نهٔ وے
داته سهل دے سریو د زندان اور

---

[1] کمر (ق-ن)

بور هومره طغیان ډکې دسرانو
چه ئې وریت کړ ددکن خلق ودان اور

لا تاثیر په ظالم نهٔ کا سبب څهٔ دے
د هجرؔی په هر سحر لونی هجران اور

(۲۷۹)

که پیدا کړے دنقره وُ پیه عرعر نمر
په رضا به دِ غلام شي یا نوکر نمر

ستا له مخه دِ هاله برابری کا
چه له تنه کا پیدا مُشک و عنبر نمر

کهٔ دلاس په زیب دِ ناز کوم روا دے
چه بریښنا ئې مکدّر کا منوّر نمر

تا خورے زلفینې مخ په آئینه کړے
ما دچا په تودو مزیو کړ مُستر نمر

هره ورځ دشپې گیسو په جور برے کا
له مشرقه سحر وکاږی خنجر تمر

کهٔ عاشق دِ په مخ نهٔ دے له گردونه
سکه په مزکه وے گرځي دربه‌در نمر

پرورش دلعلو کا مقصود ئې ته ئې
گنږه څهٔ ئې په معدن چه کا نظر نمر

د مخ رشک دِ زیږ نارنج دغم په تب کړ
دیگر ځکه لرزه کا دغرهٔ په سر تمر

که فلک په ستورو نازلوی دلبره!
ستا زیور رهمه اختر څنې قمر نمر

په تش نور دانگو فخر کاسندی
هرگز نهٔ لری دحُسن بل زیور نمر

په عاشق دمهر اورخصلت سقرشهٔ
جوړه تا څخه تیار وینم سقر نمر

کهٔ په مخ دهجرؔی وار قلندر نشهٔ
تر حضرے ئې وے غوره کړ سفر نمر

## (۸۰)

ما چه اولیدهٔ په مخ دستے شا نور — د مهتاب ئے کړو بیشکه پسے شا نور

د مخ نور ئے زهٔ له څهٔ سره مخے کړم — چه به هسے په ملک نهٔ وی دهیچا نور

شاید شپه به تورهٔ نشی تر آبده — کهٔ دِ مخ کا یو ذره ورته عطا نور

مخ ئے اوګوره زاهده حق بیان کړه — چه لری مهر په مخ هسے والا نور

دختمک غونډے به مست بیهوشه ګرځے — کهٔ دِ څهٔ خو به سر اوبرېښی هم دا نور

تورے څڼږے د شپے غوڅے به زنځیں کا — په مشرق چه صبح نمر کا هویدا نور

څو قائم په دا فانی دُنیا فلک دے — او له نمره نزول کا ندی په دُنیا نور

تورے زلفے دِ دائم شملے شمسے زی — له بنهٔ مخه دِ هرګز مشه جدا نور

د بنائست زوال دِ مه وه له سپهره
چه تازه لری هجری په دوړ ستا نور

## (۸۱)

هرګز مهٔ شړه له دره مشتاقان نور — ستا سګان دِ مسلسل لری سګان نور

ستا د در سپی چه مے اولید دلبره! — په دُنیا به آخر څه رنګ وی شیران نور

کهٔ هر څو دِ سپی شیران دی ګمان مهٔ کړه — چه عشاق دِ شی له کوَیه ګریزان نور

ستا باور کهٔ په دا نشی چه مشکل دے — تجربے لره خرید کړه ز رسګان نور

تورے سترګے دِ داړوال تومن ئے لوټ کړه — له دے هسے جوره بس کړه قزاقان نور

نۀ د یار په مرګ راضی ئے صرفه څۀ ده — په تالښته دعاشق دخون تاوان نور
د زینت اسباب همه تا ته موجود دے — تر دا ډیر دحُسن کله وی سامان نور
د پرستم ئے عاشقان واړه کباب کړهٔ — د جنابه همه دُور کړه رقیبان نور
هرچه ستا د هجران غم ئے په بنده کا — په مسلم به زیا تے څۀ کا کافران نور
د وصال په تیغ ئے سرله تنه بیل کړهٔ — په ما صبے دلبر مۀ لره هجران نور

د پردیس هجری وینا که مسته نغــو ږی
تل د ناست لری له ځنګه عاشقان نور

# (۸۴)

په اقرار ــه د عشق وکړیدل مشه دا اقرار نور — مطلب چه مُیسّر شۀ زۀ به څۀ کوم بل کار نور
که نۀ تۀ تینګ په دا اقرار ئے دامن مۀ پرین ده دمبی — په جور ئے هوس کړه کیله مۀ کوه د یار نور
شاه به شم د دور که مے نوم په غلام یاد کړے — ختک تر دا فِدا هم د ختک غوند ے هزار نور
ډیر دِ بے اتشه اور لړونی د تنور کــــړهٔ — قسم دِ په ځِل مخ وو هرګز مۀ کوه آزار نور
یو ځله د وصال دارو را اوبخښه چه روغ شی — بیل لتا صنمے هرګز نۀ پاتی بیمار نور
ما د هغه مخ بنانُست چه اولیدهٔ په ستــرګو — یاد مشه په ذبه زیړګلونه د بهار نور
د مخ بنانُست ئے ډیر دے نور صفت ئے پیما نشی — تم به دا غزل کړم هم په دا یوهٔ ګفتار نور
نۀ بهار ئے بوږ دے ځکه تل صبے دعا کــړم — د دَهر خزان موه دے حسن په بهار نور

اسرار د محبت نهان بهتر له زمــانـــو
صبر په الم کړه هجری مکوه اظهار نور

## (۸۳)

نن له کبره څکه نهٔ کوی نظر کوږ    چه تر مخ پورے زینت کړی د نمر کوږ

نهٔ کړے ناز کهٔ په بنائست بیحایه نهٔ دے    چه له شرمه ستا د مخ کوری قمر کوږ

ستا د وصل په امید مے عمر تیر شهٔ    ما د بخت له ونے نهٔ کړ هیڅ ثمر کوږ

کهٔ په توره شپه مخ سم کړے په سپهر    محبت به ئے له چرخه کا اختر کوږ

سیا زلفے ئے پریشانے په رخسار کړه    چه له نرخه یے دنیا کښے شی عنبر کوږ

رنګ مے هسے د هجران غمونو زیړ کړ    چه تر رنګ پورے ئے رنګ وینم د زر کوږ

ما د قیاس په تله غم د هجران تول کړ    تر نسبت ئے هویدا شهٔ لوا غر کوږ

چه تاراج ئے ستا دستګو تجربه کړهٔ    پر دا کار کښے هغهٔ اولیدهٔ خیبر کوږ

رقیب هسے کوری کوږ دیار په دره کښے    څو د حق په کار کښے تل کوری کافر کوږ

یار له کبره هسے غوږ په هیڅا نهٔ کا
کهٔ همت د هجری نهٔ کړو چا ته سر کوږ

## (۸۴)

سحرګاه کا اهلِ دل د رب ته نیاز    هغه دم وی دروازه د قبول باز

که خبر شے ته د نیمو شپو له فیضه    او به نهٔ کړے هغه وخت د پښو دراز

د تن شاه د وزیران لری د څنګه    یو ته عقل وائی خلق بل ته آز

د دانا وزیر له وعظه بې بلا شوه　　بیهوده پند ونه اخلې د غمان
د معنو په یافت ئې ځکه غور نکړ　　چه غلط ئې په دا یاد نقش و طراز
د راز فکر به د واچوهٔ له دسته　　کهٔ ته پوهٔ شوے د جرس د وو په راز
مګر نهٔ آروی په غوږ شتاب د عمر　　چه ګړیال ئې ګذر شماری په آواز
هر نفس د خبر وی چه ستا له عمره　　یو ساعت لکه باد تیر شهٔ بل آغاز
نیک عمل مردانه نیسه هسے مهٔ شه　　لکه مرد شی کله ښځه غلیواز
د خټک په ویناغوږ کړه کهٔ عاقل ئے　　روا مهٔ لره جاهل غوښتے اعجاز
مرګ[1] له هیڅا مروت د رخصت نهٔ کا　　په فرصت کوه دانا د توښے ساز

دا غزل چه ئې هجری خټک بیان کړ
سرتر پایه حقیقت دے نهٔ مجاز

## (۸۵)

عشق پیدا کړ په همه عالم زما راز　　وے بنهٔ چه فاش مے نکړ د آشنا راز
د عاشق راز کهٔ پیدا شی عیب ئې نشته　　شکر شکر چه مے نکړ پیدا ستا راز
کهٔ وامق له خامئ راز د عذرا فاش کړ　　زهٔ به نهٔ کړمه پیدا د خپل عذرا راز
هر مئین د خپل دلبر اسرار ښکاره کړو　　خټک نهٔ دے هسے خام چه وائی دا راز
راز به زړهٔ کښے نهان بنهٔ دے د ښتا نو　　هغه اوم دے چه په دهر کا رسوا راز

---

[1] مرګ له هیڅا د رخصت مروت نـکا (ق-ن)

هغه راز چه مې پنهان دے په خاطر کښې    فاش به نشي له بنده هغه خفا راز
دوفا بار به ئې وړمه څو ژوندے یم
زهٔ هجري به د یار نهٔ کړمه پیدا راز

## (۸۶)

تا چه سر کړو د زلفینو په عذار کوڼ    غم د سر کړو د بنا دي په زړهٔ د یار کوڼ
محبت پوېکړے زړهٔ به پرے کښېږمه    کهٔ را اوبخښے د کجو زلفو تار کوڼ
ستا به مخ مې کابه هٔ ماروته وسېنم    چه به نهٔ وي په کنجونو مې مار کوڼ
بیا به دیر روان په لار د آخرت کا    چه ئې جوړ کړو په سینه د دې ومار کوڼ
سم کا ته ئې عین عشق هاله کوز شي    چه نظر د ستر کو وکاندي نګار کوڼ
هومره کبر د خپل مخ په زینت مهٔ کړه    زمانه کا به شتاب د حسن وار کوڼ
خوب به څشکار به قرار کاندے بے یاره
د هجري په زړهٔ کښې مات کړو هجر خار کوڼ

## (۸۷)

څو لذت د جوړه لبو دے د یار خوږ    مې نهٔ دے نیشکر د هندو با خوږ
هیڅ خوان هٔ به ئې پښتان د لبو نهٔ وي    ګوندے وي په مزه مې دا اشعار خوږ
زړه به زړ ئې شیریني هجر کښېږي کا    کهٔ هر څو وي په دُنیا د وصال وار خوږ
زمانه ئې لاس په لاس په ژړا[1] سر کا    که هر څو دي دن دګل وي په هزار خوږ

---

[1] په ژړا بیل کا (ق - ن)

چه دلبر، گل و مل چاته میسّر شي
بل به نهٔ وي په جهان دا مې کار خوښ

غنیمت گڼړه دا وار همیشه نهٔ وي
په چا نهٔ لري فلک ساعت قرار خوښ

هجري ځکه هومره ناز په طبیعت کا
چه په دهر تر دهٔ نشته په گفتار خوښ

(۸۸)

چه په زړهٔ باندې مې عشق جوړ کړو اساس
بیخ نې وکښړ له هغه د بل وسواس

کهٔ په تیغ مې ستا له دره مناهي کا
ستا په سترګو که هرګز او کړم هراس

پس مې او وژنه په توره دیت نشته
یو نفس څنړې اوربل راکړه په لاس

مګر وروځیو دې په وژله کوتاهي کړه
چه دې خال کړو په رتبه تر والړو پاس

هر چه کا د هجران غم په لړما نهٔ کښې
هسې کار نهٔ کا په چا دیږه الماس

د فرقت فوځونه ډېره دلېري کا
ساقي پریکړه تر معتاد د مېو کاس

په دالار به قاصد څهٔ راځي له یاره
چه نې زر کړو ده دوري زر نې مواس

زهٔ دو شش نارې وهمه خال پیدا کا
فلک بیا ئې د چپل زړهٔ په رضا ناس

کار همه را ته مشکل شهٔ گوره څهٔ شي
په وئیل مې گمان مه کړه د نباس

که هزار بلا گردون درسته پیدا کا
هجري مهٔ کړه د مولا له فضله یاس

## (٨٩)

ستا په مينه هرگز مشه مبتلا کس
مبتلا مه کړه مولا په دا بلا کس

چه ئې غم د هجر اوليد هسې وايم
چه هرگز له يارة رب مه کړه جدا کس

په حرام گڼړې زاهده عشق د جونو
وايه کوم يو عيش په ځان کاندې روا کس

زه حيران په دا خبره يم يارانو!
په دنيا ئې يارة څرنگ کا خندا کس

د وقار نهال دِ هسک وينم دلبره!
د وصال ميوه دِ څشکل کا رجا کس

ستا زلفينو زخمي کړي نه رغيږي
که ئې په دېر ضرور ئې وکاندې دوا کس

نور ئې دېر تر ماه د مهر منور دې
ځير ئې څشکله د مخ گورې ضيا کس

د بوسې وعده دايم سبا برات کا
زړه به څو کاندې تازه په داوينا کس

هيڅ باور په عمر نشته بې وفا دې
اُميد څرنگ په وعده کا د فردا کس

ستا د خوئ جفا چه ما مشاهده کړه
په دُنيا کښې نوموړه نه لرې جفا کس

جفا کار تر تا هرگز په جهان نشته
لکه نه لرې هجرى سيال په وفا کس

## (۹۰)

نکه تا ته عاشق سپک دے ترهلک خس — شاید نهٔ وی په دُنیا کښے هسے سپک خس

بلکه تا ته نکه ورک وقار دیار دے — هرګز نهٔ وی په عالم کښے هسے ورک خس

چه مے کیف ستا دسترګو تجربه کړو — ځ همه را ته ظاهر شول د بتک خس

نکه ستا نظر وجود دعقل هیڅ کا — مګر هیڅ هسے ګولۍ کا د توپک خس

ما چه اولید و لذّت د هغو لبو — تر نسبت ئے بنات ونیم دا ټتک خس

رقیب هسے بد خصلت په جهان خس کړو — څو په طیرو کښے وقار د بنا پیرک خس

ستا د مینے لاس مے تن هسے دیزه کړو — نکه خوک په زور دیزه کا د کوتک خس

عاشق خلے مینے تا ته هسے خس کړو — څو په درست خټک کښے ذات د درملک خس

په هر ځائے ئے قدر دیر دے ترپهاره
خو د تا ته کړو خپل ذرهٔ ، هجري خټک خس

## (۹۱)

دسپین مخ نیاره ئے حسن کړو دماه بس — دسنګار په دبدبه ئے دورکهٔ شاه بس

دتیکے دا دوه لړے ئے راشه ګوره — په میدان ئے کړی زینت دفلک راه بس

تورے سترګے ئے په لوپ هسے شوخی کا — چه خیبرئے په دا کار کښے دتیراه بس

هر زینت چه په دادور کښے لیدهٔ شی — تن په تن ئے کهٔ همه دذقن چاه بس

وُ د تړی تهوله په سر کین ده غره کښته — چه زینت ئے کا په دم دشاه کلاه بس

کهٔ خسرو دِ په تواب دجناب کښیني — هغه دَم به هوائی کاندی دګاه بس

هجرؔی مېنکوتل نخوت په خپل قیمت کړو
ښهٔ چه نزخ ئے کړو دیار دخط سیاه بس

## (۹۲)

ستاله مینے به زړهٔ کله شی زما بس — ما غریب سره لتا نه دا بـلا بس
نهٔ شکیب دعاشق شی دیار له کوُیه — نهٔ خاطر دحریص کاندی له دنیا بس
په خلوت چه تهٔ رقیب پوښتے له حاله — مګر مرګ لره مے نهٔ ده دا جفا بس
ما جفا ته ستا له مینے صے شا کړه — لکه ستا خصلت چه وکړله وفا بس
ساقی نن روغ وته ست کوه د میُو — ما خراب ته ازلی دعشق صهبا بس
بے هوده نصیحت وے کړے واعظه! — زما زړهٔ به هرګز نشی له آشنا بس

تهٔ دواعمل کوه چه نوم دِ ښــهٔ شی
ما هجرؔی لره دا زشت او نـاروا بس

## (۹۳)

یار ته څکه ما په مینه کړ خپل سـر پیش — چه ئے وینم نُور دحسن تر قمر پیش
قمرځه چه ئے سیالی کانـدی له مخـه — چه ئے خلق نور دمخ کړی تر نمر پیش
نهایت دعشق دلارے موـندهٔ نهٔ شی — وهیچا ته هرګز مهٔ شه دا سفر پیش
شیرین عمرے قضاکړ په هجران کښے — رنګ مے څکه په زردئ شهٔ تر ګل نمر پیش

دهجران غم به دا هومره شوخي نهٔ کا
کهٔ یو ځل شي په خټک د بخت اختر پیش

هسې درد به هرګز پیش وچا ته نهٔ وی
چهٔ دیار یا دیٔ وماته کا سحر پیش

په ویښو دیدن محال سحر و دهٔ کرم
وایم ګوندې شي په خوب هغه دلبر پیش

ګلرخان په رنګ وذات التفات نهٔ کا
څو په لیسو ورته نهٔ کړې سیم وزر پیش

دا عذاب چه نن هجري ته هجر پیش کړو
په دوزخ کښې مګر هم شي په کافر پیش

(۹۴)

څهٔ خو اوګورئ سړیو دا فاتر کیش
چه رانسی له عالمه په نظر کیش

چه ئې چا سترګې په مخ کړې برابرې
په زمان ئې سترګو راښوهٔ آخر کیش

لطائف ئې د بنائست تر بوله تیر دی
خو په خوی به نهٔ وی بل هسې جابر کیش

په آزار د مؤمنانو حیله نهٔ کا
چه به نهٔ وی په دنیا هسې طاهر کیش

چه آزار د مسلم هیڅ ګنړی سړیو
ورته هیڅ هغه بشر چه وی کافر کیش

د زړهٔ حال ئې څهٔ خو وا روېږي په غوږو
چه ئې کوم منی په دې کښې خاطر کیش

تش بدن په دکن ناست غمونه ژوی
زړهٔ ئې یوړ د هجري هغه ساحر کیش

---

ـه ښو (ق - ن)   ـه ښهٔ (ق - ن)

## (۹۵)

روان مهٔ وے زهٔ د عشق په کوڅه کاش
تل په منع اشارت کا واعظ تاش

عجب زړے ئے پیدا کړو عشق ئے نوم کړ
په صفحه د روزګار بیچون نقاش

بنهٔ عذارے مصفا تو لاله ګل دی
پرے ئے جوړ کړو بنائسته د مشکو ماش

صد جفا راسره کا وفا مے ګوره
ما هرګز نهٔ کړو یو راز د مین فاش

په حیات د له درباره تلونے نهٔ یم
پس له مرګه مے ورمهٔ کړه چاته لاش

کشکے نهٔ وے ما د عشق شهرلیدلے
په بلا مے آلوده کړو خپل معاش

د وصال امید په لاس ئے د عیش راکړ
کهٔ ئے هسے تو ښکلے وُو ته چه باش

نیک و بد په ازل لیک نن ئے ظهور کا
دامن چا د مراد وُنیو په تالاش

کهٔ طلب په کوشش کړے د نعمتو نو
په ډیر آز به حاصل نشی یو خشخاش

د خورشید پایه د حسن کمه نهٔ ده
کهٔ رونق وته ئے نهٔ ګوری خفاش

د مجروح وئیل عزیز په سخن سنجو
د اشعار قدر ئے څهٔ لری اوباش

---

۱ عجب خیز ئے پیدا کړے عشق ئے نوم که (ق - ن)

## (۹۶)

څوزما په زړهٔ نازل شهٔ ستا اخلاص    په دوران به دچا نهٔ وی دا اخلاص
چه ستا مهرپه ما نهٔ وی فائده نشته    کهٔ هر څو ډیر دے لتا زما اخلاص
د رقیب په گفته قهر راته مهٔ کړه    روز افزون لرم لتا رجا اخلاص
کهٔ یو ځل مے د بوسے په عطا خوښ کړے    را معلوم به شی هاله صفا اخلاص
څو دِ لب عینِ شکر خوږ د گنډیر شهٔ    لتا ښکال کړم رجا آشنا اخلاص
د زیست سیاله دِ نشته په دنیا کښے    و لے نشته ستا د زړهٔ وفا اخلاص

دهجری حیات دِ نور په جهان نهٔ وی
کهٔ بدل کاندی هرگز له شا اخلاص

## (۹۷)

په خدمت کښے ستا چه زهٔ لرم اخلاص    په هیڅ رنگ ئے امید مهٔ کړه انتقاص
کهٔ یو چپ په مهر راکړے نور ے وژنه    څوک دِ نهٔ غواړی لتا زما قصاص
دښهٔ مخ خیر دِ غواړم زما څهٔ دی    په سما کهٔ یو لقمه کا تندر ماص
ستا جناب زما وطن کهٔ اور وریږی    طمعه مهٔ کړه چه به زهٔ وکړم مناص
یو نظر په واعظ اوکړه حال ئے گوره    چه په مزکه سیال بړے نړدی یو رقاص
هغه اُوم عاشق ما مه گڼړه گل رنگے    چه کووُم دیار له جوره اغتصاص
نور تلی دیار دِ ښو زما په سر و ے    کهٔ یو ځل شم د هجران له دسته خلاص

هجر هسے ذیرہ نزار کړم تۀ به واے · چا ویښته دبړیتو ورکړۀ د قصاص

د بوسے په عنایت راشه عطا کا
ما هجرّی ته به عالم کښے اختصاص

## (۹۸)

ځوے شوے دے له یاره انقراض · په ژړا ےکښو ونیوه بیاض
زۀ دِ شنۀ فلک په ځان کړمه سره یو · اکش کار ےکا په عکس داغراض
په هنګام دوصال ځائے د رقیب نۀ وو · بیلتا نۀ په مراد ورکړم د غضاض
جدائی سینه رایخ کړه د غما زو · یاره وے په راتلۀ کوے اغماض
چه تۀ تل جفاکوے طمعه دِ داده · چه بنده به لتا اوکا سندی اعراض
کۀ ے توره په سر کیږ دے بباسی یم · کۀ له کویه دِ زۀ اوکړم انتهاض
ډیره مینه ے روباه کا وصنم ته · بیچاره عاشق کۀ ښیں وی دغیاض
لار دیچا په کوځه دکښلیو مشه · روغ بدن ے کاشانه کا دامراض
ستا په رنګ ځهره دګل په چمن نشته · ګل ے واړه مشاهد کړه د ریاض

راشه یو نظر په حال د هجرّی اوکړه
چه بے تا غمو تو ځرنګ کړو مرتاض

## (۹۹)

چه ترګندشی په بنهٔ مخ د شاه بیاض ‏ ‏ د کافورو کا په دم تر شا بیاض
صفائی چه ئے د زړهٔ مشاهده شوه ‏ ‏ په دوران به دچا نهٔ وی دا بیاض
د بنهٔ مخ په زمانه ئے باور اوکړه ‏ ‏ نمره ! سهل شهٔ عالم ته ستا بیاض
چه ئے نور د نمر حریف دحُسن نهٔ دے ‏ ‏ نور به څهٔ وی په دا شان دچا بیاض
څنبے ! نور به کبر نهٔ کړے په خپل حسن ‏ ‏ کهٔ ته ئے اوو ینے دیار صفا بیاض
ثوئے[1] مخ بنده لیدلے وایم ربه ! ‏ ‏ ورک ئے مهٔ کړے د بنهٔ مخ زیبا بیاض
هسے نه چه یوځلک په داوینا دے ‏ ‏ چه ئے مهٔ شه د بنهٔ مخ جدا بیاض
زمانه واړه ګویا په دا دُعا ده ‏ ‏ هر زمان ئے ترقی کړه لا بیاض

د هجری حیات به نور په جهان نهٔ وی
کهٔ دوران ئے کاله مخه لا بیاض

## (۱۰۰)

چه مے اولیدهٔ په مخ باندے دیار خط ‏ ‏ هسے نښته په دوران د بل نګار خط
واڼی مشک دی چا په کاڼړی میده کړی ‏ ‏ بیائے جوړ کړهٔ دیردی ګل په عذار خط
دهالے زیب ئے په مخ دا وژمئ هیڅ کړهٔ ‏ ‏ چه پیدا شهٔ په دا مخ باندے کنار[2] خط
زهٔ دیار په خط میئن یم غیر به څهٔ کړم ‏ ‏ تر عنبرو کهٔ زیبا دے د اغیار خط

---

[1] ثوے (ق-ن) [2] کنار (ق-ن)

خط بنا ئست په هغه مخ کا چه زیبا وی
ګنړه زرګه هم لړی هسې هموار خط

ؤ ے نۀ لید هسې زړۀ په دا دُنیا کښې
چه ئې اونۀ کړې په سر باندے پرهار خط

هوش ئې داړه په ستم له هجری یووړ
ګوره څۀ کا په ستم دَرے عیار خط

(۱۰۱)

چه مې زړۀ وکړ په مخ دیار هبوط
په دا مونو ئې د زلفو شو مضبوط

لۀ جفا به ئې کنار شوم ولې څۀ کړم
په یاری کښې دا طریق نۀ دے مشروط

ارغوان ځکه په وینو کښې لت پت شۀ
تن ئې ستا د مخ له رشکه کړو مخروط

د ګلګشت په ورځ دِ حسن چنار اولید
لاس ئې کل په دُنیا اونیول مسبوط

موانع ئې بې بنادیو فتنه مۀ وَه
مدت اوشو چه را نغلۀ ستا خطوط

تل چه ژاړم ستا د هجر له الَمه
د مخ صحن مې په اوښکو کړے مخطوط

یو زمان ئې جمعیت هر کښ اونۀ لید
څو هجری دیار له عشقه شۀ مربوط

(۱۰۲)

دیار خط مې بیا په زړۀ اوکړو افراط
په هیڅ رنګ له موجه نۀ کا انحطاط

ساقی وقت دِ تلطف دے کرم اوکړه
ګنده مې مئے راعنایت کا د نشاط

---

۱ دا غزل په چاپ نسخه کښې نشته.

د ابرا نامه یې ورکړه له بُتانو
یا رهاله شهٔ معترف په ارتباط

ما په سِرّ د مینې وانهٔ کړ که هوش وې
دنیق تل ارشاد کاوهٔ د انضباط

بې وُسلو راز د مینې برهنه شي
که هر څو په مخکښې سپر کا احتیاط

په اوبو چه سرې کړ شي دا محال دې
چه صورت له تری نهٔ کا اختلاط

چه پرون یې د یار وصل ته هوس کړو
بیلتون ځکه نن پما کاندی اشطاط

د هجران تلخي به هم هسې قضا شي
لکه لاړ د شیرین وصل انبساط

سراسر واړه جفا وفا یې نشته
ما هجری د یار خصال کړه استنباط

## (۱۰۳)

که هر څو راسره یار کاندی اغلاظ
له غلطه یې زهٔ موسم احتفاظ

صد چندان مهر په زړهٔ لری وما ته
څو په خلهٔ راسره تل کا اغتیاظ

خاموشۍ یې سِرّ د عشق پوشیده نهٔ کړهٔ
ما نا حق دخپل زبان که احتفاظ

د عالمو خالق یو شریک یې نشته
په څواسمه یې ذات یادشهٔ په الفاظ

حاجت نشته د هجری په واعظانو
د عالم له حاله اخلی اتعاظ

## (۱۰۴)

چه ئې نوم شي د ژبان په سر ملفوظ — شیریني ئې د ژړهٔ سرکاندي محفوظ
د نظر ته ئې مشک بهتر ترخاوړو نهٔ دي — چا چه زلفې د بُتانو کړې ملحوظ
په ناحق شکوه له عشقه کړې واعظه! — ما به نهٔ کړې په دا باد وعظ متعوظ
پس ئې شاکهٔ جفا کړې عذر ئې نشته — په احضار د غماز مهٔ کوه غیوظ

څوئې مخ هجري لیدلې دا دُعــــا کا
چه د بدو چشمو تل اُوسه محفوظ

## (۱۰۵)

ځکه زهٔ یم ستا دعشق په غم محظوظ — بل به نهٔ وي په غم هسې تم محظوظ
څو دِ زهٔ په دیدن خوبښ یم هسې طور — په موندهٔ به دجام نهٔ وو جم محظوظ
چه دهجر غم مې زور په خاطر اوکړو — په آوازئې کړم د زیر و بم محظوظ
مرتبه ئې دخوبئ هومره والا ده — چه په یادئې د نامه شي فم محظوظ
زړهٔ دعشق په غم کښې هسې خرم وینم — چه په ملک به هسې څوک وي کم محظوظ
باده زلفې ئې خورې کړه په رخسارو — چه ئې بوئ کا کوڅې وکلې چم محظوظ

هجري هر غزل چه تهٔ په وزن جوړ کړې
په لذّت کا د دنیــا عالــــم محظوظ

## (۱۰۶)

اے چه فخر په کثرت کړے د متاع
دنیکونو حال دِ نشکا ا متناع

د نمود عمر مے لږ دے تر ګلونو
باور مهٔ کړه د جهان په اختراع

مخ د مزکے که فراخ دے ستا پرے څهٔ دی
ستا نصیب دے په نس کښے درے ذراع

چه دِ ګور تر مزکے لاندے مقرر دے
بیهوده کړے د ما نړیو انتفاع

خرمی عشرت قسمت د نا خبرو
غم اندوه واړه نصیب دَ اطلاع

طالبان د دنیا واړه جفا ګر دی
له هیچا مے وفا نکړه استماع

لږ حیا د سړیتوب له اسمه نهٔ کا
یو په بل خوله لګوی لکه سباع

که ظاهر سره بیو د محبت کا
زړهٔ د هر سړی ملو دے په نزاع

دا فریب چه تن ابناء د زمانے کا
روباه نهٔ کا هیسے مکر و اختداع

که سختی دینے له دهره ژړا مهٔ کړه
باقی نهٔ وی د فانی دنیا اوجاع

اے هجری محبت بنهٔ دے له یکرنګو
د دو رنګو یاری نهٔ کا انتفاع

## (۱۰۷)

په بساط کښے چه څهٔ شته زما متاع
هغه واړه وه دلبرے ستا متاع

ما چه سر وتا ته درکړ دنیا څهٔ ده
عزیز که وی تر ځان فنا متاع

---

ل داغزل په قلمي نسخه کښې نشته.

دعشق غم دِ لکه میم هسے خالی کړم — غم لرم لکه یو خال دبا متاع
بے دعشق دغمه نهٔ لرم په کور کښے — مګر اوښاڼ هجران جدا متاع
دعشق لاف دِ صفه خام مدعی نهٔ کا — چه سر نهٔ کاندی ګیاه ترشاه متاع

غم او اوښکے ندیمان دی له خته که
تردا نهٔ لری څه کهز سوا متاع

(۱۰۸)

همیشه دِ یار زما وی په دنیا دوغ — چه دَ تل نهٔ وی له درده زړهٔ زما دوغ
پوهه په درد دعشق بدل په دوا نهٔ کا — هرګز مشه له دے غمه زړهٔ دچا دوغ
تهٔ دخوږو زړو له حاله څهٔ خبر ے — زهٔ دعشق له غمه زړهٔ کښم دِ تا دوغ
بل فکار ے تورو زلفو په سر کښیښنه — زړهٔ ے نهٔ وو له یوه غمه صفا دوغ
ښائسته کۀ جفا کا څه ملامت دی — چه خالق ے کور دزړهٔ کړله جفا دوغ
په ازل چه ے جفا وکښلیو ورکا — بیا ے زړهٔ کړو د دردمند وله وفا دوغ

نن ے زړهٔ په عنایت دبوسے خوښ کړو
په وعده به هجری نهٔ شی د فردا دوغ

(۱۰۹)

چه فروغ لری د مخ سکه چراغ | گنجائش دے که په خلق کا دِماغ
ساقی غم د مجر ډیر ه دلیری کا | پیا پے راکړه د ملوځو ایاغ
نور د لبو به ئے قصد دوژلو اوکړ | کهٔ ئے نهٔ وے مصاحب له ځنګه زاغ
دمجوان مخو دِزور راباندے اوکړو | وسیله مے دتسکین کړه راغ وباغ
ددیدن شوق دِ لا راباندے زورشهٔ | له مثاله دِخالی وو باغ وراغ
په دا ذیری به دوه کسی ترے فداکړم | کهٔ دیار د وصل څوک را کا سراغ
نور به مخ په ظهور دداغ وُنهٔ کا | حقیقت کهٔ مے لاله واروی دداغ
حادثه ئے کیف ظاهر کا دیارانو | نیک وبد دزړو اوکاندی سولاغ

دمقصود دناوے زلفے که پهلاس وے
غم به نهٔ نیوهٔ مجرّی ځائے دفراغ

(۱۱۰)

نن بهار دے دقاف کیدهٔ په کف دف | چه د زړهٔ دملکه مات کا دغم صف دُف
بنهٔ ساعت کهٔ په دنیا غواړے هغه دے | چه موجود وی صنمی ګل ولف دُف
یوځیز بل هم یاشه دے په مجلس کښے | چه غم لرے له مجلسه کا سقف دف

---

ئے دا مصرعه په حاشیه کښے داسے هم لیک ده۔
ع ځائے لری کهٔ په عالم کاندی دِماغ

نقاره سرنا کۀ وي خوبهتري ده — ګنړ بس دي څو دلبرے هم جدف دف
که همه سازونه قبول کړے په مجلس کښے — ترڅیل ژغ یورے ئے نۀ ګنړي خذف دف
د ګفتار مضمون ئے تش له مغزه نۀ دے — که لیدۀ شي په ظاهر صورت اجوف دف
توره سر د هیچا هسے کیاه نۀ کا — څو په ژغ داند وه سرکاندي علف دف
په هر زړۀ کښے چه عشق پروت دے د بتانو — لا ئے ډیرکا په آواز مغه شغف دف
په ښهرونو کښے کۀ ښۀ واے کابل دے — چه په هر لوري سُرنا وي هر طرف دف
غم هرګز په کابل نۀ ورځي کۀ ورشي — نورئے زړکا دبلا د تیر هدف دف
مغه ملک دے ځکه ښاد اندوۀ ئے نشته — چه زړۀ نۀ لري هرګز د چا لهف دف
د سُرنا د ژغ خوبي پوشیده نۀ ده — ولے زۀ په دا ترے ښۀ وینم صدف دف
نائے د تیر زمان قصّه کوي خمرنه — په آوز کښے هرګز یاد نۀ کا سلف دف

چه آوز ئے د هجري د زړۀ تسکین کا
مولا مۀ کړه له دنیا هرګز تلف دف

# (۱۱۱)

هسے سُورنۀ کا هرګز حنا د چا کف — لکه وینم سُور همیش د مستے شا کف
تۀ ئے څۀ خو د منګلو په رنګ خبر شه — د چا کله هسے سور کاندي حنا کف
دا ئے رنګ د حنا مۀ ګڼره درویشه — بلکه سُور ئے دے په وینو د اشنا کف
ن فلک مئین ذما په رضا راوست — شیرین دف وهه د قانه په زیبا کف
هنګامه ئے د عیش ګرمه فلک یار دے — ساقي ولے د تش وینم له صهبا کف

اے چه کرم دستک کړے په دا مجلس دے        همیشه دِ په امان دو له بلا کف
ستا جفا به ما جدا کله لښا کا        هسے تینګ مے په دامن دے د وفا کف
هیڅ دلبر په عاشق هسے جفا نهٔ کا        څو په ما باندے کشاد کا ستا جفا کف

هجرى څوک په غم د هجر اختر مهٔ شه
کشاده لره دایم په دا دُعا کف

(۱۱۲)

په دے جوړ کړو چاپیره خط تر عذار صف        غم دے مات کړو د بنادئ په زړهٔ دیار صف
هغه ورځ چه د عشق جیش پرے نازل شهٔ        ګوېزان ئے کړو له زړهٔ د اختیار صف
مخ ئے عین په خوبئ رشک د ګلزار شه        په عارض ئے راشه اوګوره د مار صف
سپین ګوهر ئے په اوربل هسے لید هٔ شی        لکه ستورى په سما وینے هزار صف
ته ئے وروځیو ته عجب مهٔ شه خاطره        تور بانړه ګوره په چشمو د ښکار صف
زهٔ بنادى په جهان ګورم نهٔ ئے وینم        هر طرف کړو راته غم هجر د یار صف

نهایت به ئے بشکر د وصال مات کا
هجرى څو به وى د هجر غم قطار صف

## (١١٣)

که اصفا کاندی په غوږو دا اشعار واف — له حیا به نور اونهٔ کاندی گفتار واف

په وصال د گلزار هومره خرّم نهٔ شے — لکه خار د جدائی کاندی آزار واف

هغه دم چه په ریاض گلزار موجود شی — هر نفس ئے په بهار کاندی چیغار واف

شاید نور به د ریاض مینه ترشا کا — کهٔ زما د بیاض اووینی گلزار واف

چه ئے نهٔ دی دا زیبا اشعار لیدلی — څکه خوش شهٔ د گلو تو په بهار واف

هر دانا چه داویئل په غوږو وار وی — نور به نهٔ بولی هرګز زبان هزار واف

ځان په ځان به ے له علمه مستفید شی
کهٔ سبق له مجرّی اخلی صد هزار واف

## (١١۴)

دزړهٔ سره کړو بیداد مجر شگاف — ساقی دوغ ئے کړه په جام د میُو صاف

نن د عشق خرو په میُو اشارت کا — له فرمانه ئے په څو کړم انحراف

دیار مخ دایمٔ بهار لری د گلو — په یو گل ے د نامی کا په الطاف

نیسان مخ د هزکے داړه رنگینه کړو — یاران تل د روی د گلو په طواف

دهر شاخ په څوکه نن سرود غږیږی — د عشق عیش ئے گرمه وی جیش دواف

دا طامع مطربان څکه گرمی نهٔ کا — چه له ورکړو که زلمیو ځان معاف

د انعام کښوره وا کانږي ذلمیو! چه سرود کا د بلبل په زاغ مضاف
چه د عشق په لاره ځي د سر صرفه کا مدعي دے په دروغ کا واړه لاف
د چا زړه چه موافق په ژبه نه وي د مخ رنګ ئے شه مانا په سر د قاف
د رندانو په مجلس کښے سرنګون دي چه د یار له جوره وکا اختلاف

هجری سپر د همت چوړ لره په لاس کښے
در ته ساز کړه شته ګردون د غم مصاف

(۱۱۵)

بیا قیامت شوے نازل شه په مشتاق چه قامت ئے کړو بلند په زور دساق
مرمت د ځنړیو کا د روغو خه دي بلا ستاسو سرته جوړه شوه عشاق
تن داري د عشق په لارے بے ننګي ده اے د مینے په روش له سیاله طاق
چه مردانو غونډ مرد په ویشا نه وي ګړه توره ئے سیده شه په اعناق
په ځیر ځیر دِ لارے ګورم لیده نشے جوړه چشم مے مانده شوے په رواق
تورو زلفو دِ بازار د مشکو مات کړو زیبا مخ دِ ځونه پټ کړے د ایماق
سر و مال په یو نظر د سړي لوټ کا د واړه سترګے دِ خصلت کا د قزاق
له دیواره دِ سر پورته کا غلغل شو ما وے غوا مندنړو بوتلے د بولاق

هجری! چا په ملک د وصل وطن خوښ کړو
چه هجران ئے آتش مکړي په وشاق

(۱۱۶)

لکه زړۀ یم ستا بېدن وته مشتاق
شاید نۀ به وی مشتاق هسې عشاق

ځو د عشق جیش دِ کوز زما په زړۀ دے
دَم په دَم ئې افزونی کا طمطراق

دا جنون د محبت چه ما ته پېش دے
کښلے نۀ دے د هیڅ دور په اوراق

لکه ستا چشم ئې کا په خسته زړونو
هسې تاخت نۀ کا په چا باد اقزاق

سرۀ یاقوت د ځیګر وسول د ترېو
اوس ئې سېزی د بولاق په اور بُلاق

هغه کی دِ ستا د عشق په کوڅه نۀ ځی
چه ورنۀ کا نورو مینو ته طلاق

له شرفه به ئې سر تر فلک ستېر شی
کۀ منزل کړے د هجری د واړه دواق

(۱۱۷)

کۀ نزول دِ په زړۀ اوکړۀ د مولا عشق
پس شا به کړے غافله د دُنیا عشق

ستا په زړۀ به هغه حب کله قرار کا
تا چه غوړه لکه مچ کړو د حلوا عشق

محبت هغه بهتر چه وفادار وی
په خاطر دِ عبث نال کړو دا فنا عشق

هغه او مړل نهایت ئې نام زنده دے
په حیات چه کړے چادے په رشتیا عشق

اوس هغه واړه اوده دی په لحد کښې
چه ئې نن خپرے کېږی د والا عشق

نور همه سینے باطلے دی په دور
د مولا کنړه بېشکه باوفا عشق

په زړهٔ مهٔ کړه اے هجری بے وفا مینه
په پټی ئے تخم تو ئے کړه د صفا عشق

# (۱۱۸)

هومره نهٔ وو د وامق او د عذرا عشق
څونا ئی شهٔ په دنیا کښے زما ستا عشق

د لیلیٰ مجنون چه ئے اولیدهٔ په سترګو
نو ئے قیس بیچاره کړو مبتلا عشق

د دمن محبت نل بے اوره وریت کړو
سعد لا زیر و زبر کړو د اسما عشق

د شیرین د مینے تیر په فرهاد لګ وو
جلال هم خاکِ سیاه کړو د بوبا عشق

ما ئے مینه په حضور لیدلے نهٔ وه
و لے اوروم په یوسف د زلیخا عشق

خوار قطب ته د نازو مینه آتش وه
د درخو سره آدم کړو بے دیا عشق

د رقه په څهره زیړ لکه نارنج وو
چه په سر ئے سایه و کړه د ګلشا عشق

نور هم ډیر موت اسیر کړهٔ په لحد کښے
و لے نام ئے تل زنده کړو په دُنیا عشق

دا به واړه غوږ په ګُتو راته نیسی
په کورونو کهٔ ئے پیس وُکا زما عشق

د عشق راز به څو نهان لرے خبے کړه!
کوم مئین چه په عالم نهٔ کړو رسوا عشق

مرتبه چه ستا د عشق مشاهده شوه
هجری! نهٔ به وی د چا جسے شیدا عشق

## (۱۱۹)

هغه دم چه هویدا کړو کردګار عشق
په نصیب ئې کړو زما ستا د عذار عشق

که باران د توړو ووری باور مه کړه
چه له دِله ئې خروج وکا دیار عشق

لکه زه چه ستا د مخ په زیب مئین شوم
بلبل هم لری په زړه کښې د ګلزار عشق

بلبل ګوره سر قربان کا یا ئې نه کا
زما سر خو په منت که ترتا ځار عشق

دریغه ګل هم سر طلب کړی له بلبله
خود به خلقو ته ظاهر شی د هزار عشق

ایمان نه راوړم په کفر ستا د زلفو
چه ئې تار زما په غاړه که زنار عشق

ما چه ستا د مخ بهار مشاهده کړو
هغه دم ئې زړه رخصت که د بهار عشق

لیده نشی هسې زړه په زمانه کښې
چه زخمی نه کړو په سر ستا د رفتار عشق

یا ما زده[1] یا هغه چه راخبر دی
څو لرمه په خاطر ستا د ګفتار عشق

که بستر ئې همه صوف وی خوب ئې نشی
چه ئې بند د دِل په سر کا د دودونار عشق

هجری هله د جهان رونق پیدا شه
چه ئې ګرم که قضا په دا بازار عشق

---

[1] یا زما زده یا هغه څوک چه راخبر دی
چه لرمه په خاطر ستا د ګفتار عشق
(ق-ن)

# (۱۲۰)

هرچه اوسی په دا خونه دوسال — وهرچا ته کشال شته په قدر حال
یو طرف دامن غوارم لیده نه شی — جهان هومره لبالب دے په کشال
که هزار عیشه در او بخښی سپهر — په یو غم کا همه واړه پائمال
نهٔ ئے بنه زمان قابل دخوښئ دے — نهٔ ئے بد ساعت لائق د استملال
په اندوه ئے ملال مشه باقی نهٔ دے — په هوس ئے هم هرګز مشه خوشحال
که وصال دګبنلی مخ زمانه درکا — زر دِ زړه په نیش د هجر کا غربال
اقبال نهٔ ورځی هرګز دچا په غولی — څو همراه ورسره نهٔ کاندی زوال
دے پخپله ویل کا چه لابقا[1] یم — که معکوس کړے ته حرفونه د اقبال
د حیات کوتره کوزه کړه له دوره — د قضا شهند چه وا کا جوړه بال
اژدها له غاره اوباسی بے عذره — ماهی اوکاږی له سینه ه بے مجال
په بقا د عمر ځانے دغروره نشته — لکه باد هسے ګذر کا ماه وسال

اے هجری لکه نادان بنده ئے مهٔ شه
غم بنادی دجهان خوب دے لاخیال

---

[1] د "لابقا" توری په اپوټه کړے شی، نو "اقبال" شی۔

(۱۲۱)

هغه څوک چه په فاني نعمت خاربهٔ شول
عاقبت به جمع دخاوړو پرے ماړهٔ شول

هغه تیر غمان چه حال ئے کتاب واقئ
واړه په واړ ذبح دموت په چاړهٔ شول

مال وملک مانړے ئے وسپارل په نورو
ځان په ځان دګور په خونه کښے اودهٔ شول

ددنیا په تش لباس عجب مغرور وو
نهایت ئے ارمان وکهٔ چه په تلهٔ شول

چه له تیرو هیڅ وفا دُنیا اُونهٔ کړه
نن پرے وے پسماندهٔ هسے تاوده‌ٔ شول

دنیا ناوے بے وفاده شوهر وژنی
عاقلان ئے له دوستئ ځکه سارهٔ شول

دهر فصل ګل چه وُزوول په باغ کښے
بیا هم هسے دخزان په وار خوارهٔ شول

اے په تش هوس غره سامان دکوچ کړه
خپل همزولی درته ستړی په کاتهٔ شول

هدیرو ته نظر کړه دیاض به څهٔ کړے
مجلسی یاران دِ اوګوره چه څهٔ شول

ناوے څونه بنهٔ زلمی مشاهده کړه
ګوښی ګوښی په ګوره نوکښے وراستهٔ شول

اے هجری بهشت په بنهٔ عمل مونده شی
هرګز خوی دهغو مهٔ کړه چه کاږهٔ شول

## (۱۲۲)

د ارواح د کوچ نیلي په زړهٔ کښې زین شول
چه په زنې مې وینتهٔ د شباب سپین شول

د ځوانۍ بهار چه وه یې نه له سبد نه
د پیرۍ په خزان تور وینتهٔ زرین شول

نور به تور نشي هرګز که دائم ژاړم
د شباب وینتهٔ چه یو ځله سپین شول

د هجران اس وه چه نهٔ دی سکاره کړی
داهږونه مې د تن مګر رویین شول

لا مې بخت په خوب اوده شهٔ مدد نهٔ کا
یا د دور حاکمان په زړهٔ سنګین شول

چه تو برې ئې هیڅ تاثیر په صورت نهٔ کا
د آه غشي مګر مات په چار آئین شول

هسې وینې مې غم توئې کړې تو سترګو
چه مې نمري د صورت همه رنګین شول

حال مې اوګوره د کسیو له هجرانه
په ګلزار کښې د سرو ګلو په آئین شول

د غم تخم په زړهٔ پروت نو مې زرغون شي
چه په هل ئې د هجران پټي سادین شول

اے هجري! کشکې هجران په دوران نهٔ وے
له تا ختو نو ئې په ځائې اهلِ زمین شول

# (۱۲۳)

هغه تللی یاران نهٔ راغلهٔ لارغندهٔ شـــول
په کاتهٔ مے پے ستړی دوه لـــیمهٔ شول

نام نشان ئے دهستیٔ په دوران نشـــته ... ګویا کانړی د نمک وو چه اوبهٔ شول
څو به سیر د باغ کوے ګوره ونه ګوره ... چه په نس کښے ئے خوبان د انسان څمڅه شول
هغه سترګے ګورهمه دځان په دود کړے ... چه زلمی به ئے بے خوده په کاتهٔ شول
رخساره نو چه ئے رنګ باخبنهٔ و ګل ته ... په بستر د مزکے خشکله سپیرهٔ شـول
چا چه خوب په پالنګ نکه بے اطلسو ... د لحد په خاوړو ګوره چه اودهٔ شول
په پرون ئے په هر لور نوړه و مورچل کړه ... په صورت ئے نن د ګور چمچی ماړهٔ شـول
دیر و لوئے فکر ونه کړل په ډاډ د عمر ... بے رخصته ئے کوچ اوکړ و چه په تلهٔ شول
د فلک قند چه خوړل تیر و غمّا نو ... د کوم دور د غم نوش یا په چارهٔ شول
تر هغه ئے ډیر حرص د مال لاړ نشه ... څو هر ونه ئے د تن په باد خوارهٔ شـول

هجری تهٔ به څهٔ هوس پخپله ژوندون کړے
چه یاران د په دامزکه کښے وراستهٔ شول

هغه تیر چه ئے عمرونه تر زر ډیر وو ... نهایت له دُنیا لاړهٔ چه دارهٔ شول

## (۱۲۴)

د بهار په موسم ږدي په اوربل ګل تل
هرګز نه وي زيب د ګلو په اوربل تل

په اوربل په زلفو هاله ته نازيږه — که پوهيږې چه به وي په دنيا جل[1] تل
د بهار تا تم په هيڅ دائم نه وي — په فليلوئے لره دواړه کاکل تل
لوئے دولت ګنړه باده په خيز د ګلو — موجود کله په دنيا وي ګل و مل تل
په هر چا چه ښکر کوز د محبت شي — له غمونوئے صورت وي په زلزل تل
د عشق غم دِ دير عالم تهه و بالا کړه — خود ته وے بناسته په دور تل تل
که دوران له ياره نه وے جدا کړے — هجره تا به وے ميشي د خټک دِل تل
عالم نوره دُعا کا زه هسے وايم — چه د مخ حريف دِ مه دو هرګز بل تل
بے وصاله دِ خوب خشکل کړم دلبر سے — چه هجران را پسے کړے وي مغل تل
د زيست زکوٰة ديدن دے راکوه ئے — زياتي نه په هره ورځ کښے حُله شل[2] تل

که بلا په بدے لتا حبا روزي
د هجري غوښ د رخاړشه زر وسل تل

[1] بل [2] سل (ق-ن)

# (۱۲۵)

نهٔ په باغ کښې وی موجونه د ګلزار تل
نهٔ د راغ په مخ باقی وی ګل بهار تل

نهٔ نور څتر په جبین وی تل د جونو
نهٔ ئې مار وته مارونه وی پټار تل

نهٔ ئې مخ په مه دور څیو تل زینت کا
نهٔ د حسن بازار جوړ وی په عذار تل

نهٔ زمان د بنادئ تل په چا قائم وی
نهٔ دولت لری په چا باندے قرار تل

نهٔ دائم د شباب وار چا ته موجود وی
نهٔ د چا شونډے په شونډو وی دیار تل

غنیمت ګڼړه دا وار په عیش مست کا
فلک نهٔ پریږی زوکوی د عیش وار تل

څو دا شنهٔ څوخه په مز که دور کاندی
په آرزو ئې هیڅوک نکړهٔ برخوردار تل

په بقا د حسن دومره دِماغ مهٔ کړه
د بنائست په سمند څوک نهٔ وی سوار تل

تل به ستا په مخ بنائست کله د سره وی
چه به وی ذما په زړهٔ د عشق فګار تل

له بنادئ سره غم مے جوړه ګرځی
لکه ګل سره چه مل وی تیرهٔ خار تل

نهٔ به تل هجرؔی د عشق له غمه ژاړی
نهٔ به یار په ملک د زیب وی شهریار تل

---

یادګیرنه:- د دے غزل د څلورم شعر دویمه مصرعه او پنځم شعر دړومبئ مصرعه قلمی نسخه نهٔ لری، هرکله چه د پنځم شعر دویمه مصرعه په قلمی نسخه کښې د څلورم شعر دویمه مصرعه ده ۔

## (۱۲۶)

کهٔ خزان کړ بروں دوں دګلزار سبل ـ له نیسانه مزکے ورووړه ګل بهار بل
په رنګ رنګ دمزکے مخ نسیم نګار کهٔ همے شین خلعت په سرکهٔ دکهسار بل
دکهنه ختو وار تیر نن مهیّا کړه نژدی بل یکتائی بله هم دستار بل
په بنائست مغروره مهٔ وسه بیغمه البته به دور پیښ کا سبا وار بل
نن ایام دګل وملي میش اغوسنده بل زیور بله جوړه ددړو هار بل
دمدت زخمونه نن په زړه وزاړهٔ شول نوے داغ به هرچا کیده هم فګار بل
ستا دزلفو غم خوړلی نهٔ رغیږی ترداسم نهٔ لری دیر به جهان مار بل
په یو تار به نے فګار دزړهٔ درزښتی ستے ورکړه وعاشق دزلفو تار بل

مجرّی نن تماشه ګوره چه فرصت دے
زمانه به دردته پیښې کا سبا کار بل

## (۱۲۷)

په دنیا به ترتانهٔ وی جفا کار بل اوس به یار نشم په دیر وفادار بل
دعشق غم دِ آواره کړم له وطنه له ناکامه به وطن کرمه دیار بل
تا چه پت دیاری پریکړو عیب نشته اوس کهٔ اونیسی بنده په غوره یار بل
ما دګل دشنګه دیر اغزی لیدلی تر رقیب به هرګز نهٔ وی تیرهٔ خار بل
دځوانئی بهار به هیڅا قائم نهٔ وی دهر فصل ګلزار بل وی نوبهار بل

غنیمت ګڼه داوار سبا به نهٔ وي — ذر په زر کاندی دوران دعمر وار بل

څیل بنائست سره کومک لره دلبره — ګهه رنګین کله زری کله سنګار بل

څو اشعار په پښتو ژبه چا بیان کړهٔ — تر ما بهه دهر اونهٔ زو په ګفتار بل

ډیر محال دے چه شاعر وي په پښتو کښے — ما خټک غونډے پیدا کاندی ادوار بل

کهٔ مے سیال دشعر څوک په دور غواړی — بیهوده تر هغهٔ مه ګڼه بسیار بل

هره ورځ په هره شپه په هر ساعت کښے — په دنیا سپهرکار کا نمودار بل

ګل و مل ځواني چه چا ته میسر شي

هجري نهٔ وي بنهٔ تر دا په دور کار بل

## (۱۲۸)

نهٔ به ستا پهٔ مخ قائم وي داجمال تل — نهٔ به مینه وي زما په دا کمال تل

هر دولت چه زمانے چا ته عطا کړ — روزی نهٔ شو دهیچا هغه اقبال تل

دګردون له نیرنګئ بے غمه مهٔ شه — په چا کله یکهمان وي ماه و سال تل

نهٔ به عشق زما دائم زما نه پر یږدی — نهٔ به ستا په مخ جلوه کا زلف و خال تل

بلبل څکه تل په خار دهجر خوږ وي — چه موجود نهٔ وي هرګز دګل وصال تل

---

یادګیرنه :- ددے غزل داتم شعر وړومبئ مصرعه او د اووم شعر دویمه مصرعه په قلمي نسخه کښے نشته - دغه شان په ذکر شوے نسخه کښے د غزل داووم شعر د وړومبئ مصرعه سره داتم شعر دویمه مصرعه یکاروے شوے ده -

زمانه به دِ دَ دوی جواب درې کا — څو به ستر ګے ستا کوی لما قتال تل
دعشق راز به دِ ظاهر په چا نهٔ کړم — دانا نهٔ واځی وچا ته دزړهٔ حال تل
اوس به دا غزل تمام په دا دُعا کړم — هر دولت اګرچه نهٔ وی لازوال تل
دبڼو توکش دِ تل په سترګو جوړ وه — چه سینه مے دِ په غشیو وی غربال تل

دهجری زړهٔ دِ همیش پکښے محبوس وی
څو په مخ دِ وی باقی دزلفو جال تل

## (۱۲۹)

پایشکش کړو درته واړه سرو مال خپل — له نقابه تا ښکاره نهٔ کړو جمال خپل
ستا دمخ انوار غماز ملک ئے خبر کړهٔ — تهٔ که هر څو پټوے دزیب اقبال خپل
یو ځل لاړ له مهره را به خپل خلوت کښے — چه ظاهر کړم په وحدت کښے دزړهٔ حال خپل
په خوارهٔ جال صیاد نهٔ نیسی مرغونه — ضید ه لره په مخ دزړونو جال خپل
دناهید په طالع وُزو وے له موړه — ځکه تا کړه په دُنیا دزیب کمال خپل
ستا باور کهٔ دبنده په وینا نشته — په توریت کا مشخص دزو دکال خپل
ستا بانړه وروځے کمے په وژله نهٔ کا — له مدده ئے نګاه لره شین خال خپل
سپا ندے تل بوګے کوه دمخ په لوری — کهٔ له بدو چشمو نهٔ غواړے زوال خپل

دیر دِ ودیت کړ خوار هجری په اوس د هجر
اوس ئے اونمځه دلبرے په وصال خپل

## (۱۳۰)

چه مې اولیدهٔ دِلبرې ستا جمال — آفتاب نهٔ لري داشان زیبا جمال
داسباب د زیب په مخ د مهر نشته — څو لري سامان د زیب د شا جمال
دخجلت خولې به وزغلي په اوږ ې — کهٔ یو ځل کا د بُرقعې پیدا جمال
خال و خط زلفې ئې صید کاندی د زړونو — شونډې غابن ئې لا لري والا جمال
تورې وروځې ئې لیندهٔ بانړهٔ ئې غشي — زړه وته ولې هغه ډیر صفا جمال
په ښهٔ مخ ئې دغه څو زهٔ ښهٔ جوړېږي — زیب د سترګو دغه رُخ په دا جمال
تر دې مخ لا نهٔ ې هم داقد مناسب وو — غاړه نهٔ لري داشان د چا جمال
په ښنا ئُست که کبر کړې بیځایه نهٔ دې — چه د ر کړې هومره ډیر مولا جمال

هجري مخ ې هرګز چا لیدلې نهٔ دې
تا د سوا کړو په دوران زما جمال

## (۱۳۱)

که بکار زما دیار وي د دنیا مال — سراسر د همه ځیل ګڼړی زما مال
سر مې ورکړ هغه ورځ چه تر مئین شوم — چه تر سر څو عزیز نهٔ دې دا فنا مال
ما یه واړه مال په تار د زلفو ورکړ — ولې نهٔ ارزي یو موئې په بې وفا مال

که جواب ئې څوک د مهر په ما راوړي — په مژده به هغه کس ته کړم عطا مال

د وصال زمان هم هسې جور کاندي — لکه کاندي خلائق سره جفا مال

په کوڅه د د عشق یون هغه سړے کا — چې سر کېږدي په ورغوي، کا ترشا مال

زه هجري ئې د دیدن بها په څه کړم
هرګز نه لري دا قدر دا بها مال

## (۱۳۲)

که د تل په دړولاړ وي جلادان سل — همیشه په توره وژني عاشقان سل

ګوندوه سګان د دېر په دره پراته دي — مقرر کړه په دا سپیو نور سګان سل

عزیزان د تر دا تیس حسد پیدا کا — په رشوت د تن مدد کاندي قاضیان سل

دربانان د هیڅ صرفه په وصل نه کا — په کومک ئې مقرر کړه مست فیلان سل

که درڅخه بدخواه لږ دي د عشا قو — نور جفا لره پیدا کړه رقیبان سل

کوږ و کلا خوئې منع همیشه کا — ته هم وعظ ته پیسے کړه واعظان سل

نوکران د خود له څېر ے ستمګر دي — ز د دېر د لره ئې مله کړه غلامان سل

که په دا همه د واوړي له درباره — هر عاشق ته ز و رل اوکړه په زبان سل

که هجري تر تا فدا په څه حساب دے
تر بدن د یاره ځارشه خسروان سل

له دا شعر په قلمي نسخه کښې نشته۔

## (۱۳۳)

پرون هرغم وینا دی چه پما تیر شول — یاد ئې نن فائده نۀ کا همه هیر شول
په جهان هغو کاروئو چه جلوه کا — د ګردون له کشمکشه په بل پیر شول
دې دوران په باغ چه وز دوک ګلونه — واړه غوځ د آفتونو په شمشیر شول
ډېر زیبا زلمي چه مالیدۀ په ستر ګو — همه وینم د سپیرو خاوړو په خیر شول
د وصال په میو مست بېغمه ناست وُم — د هجران سوارۀ تر ما همه چاپیر شول
هسې زیږ نزار غمو نو د فرقت کړم — په سینه کښې مې ګویا وینبته د شیر شول
د راحت په ملک ئې ځوک په قرار پرېښوۀ — ځو پیدا په دا سپهر ماه و نمیر شول
هر بشر چه د زمان خوارۀ په خلۀ کړۀ — نهایت هغه خوارۀ ورته ګنهیر شول

هجري! ستا له خندا ځۀ دی همیش ژاړه
چه د تخت صاحبان لاړل په زنځیر شول

## (۱۳۴)

چه په هجر کښې زنده تر اوسه پایم — د رشتینو په مذهب کښې بې وفا یم
محبت مې آسان نۀ وو چه پوهېږم — تر مئین پورې خجل په دا وینا یم
په اخلاص کښې مې راستي ظاهره نۀ ده — کۀ مې سر له تنه لرې کا سزا یم
چه فرقت ئې را ته اورکه وصل اوشي — د نا قصې مینې ځۀ ویاړ ته وایم

یو یاړو یه دکن نشته چه مے دم کا
گرفتار په کنجو کاوُ داژدها شوم

دهوسٹی په بنګړ برات دوصل اوشه
چه راپورے په ندئ د نر بدا شوم

دوصال دولت مے کنج پر ے نازید لم
تاړو ماړ همه دهجر په وغاشوم

نن به څله هجره زارګوم وَچا ته
ما بچپله غم خرید کړ چه آشنا شوم

بس غُبار دهجر بخت را څخه کم کا
په بلل بلل ئے سترے په صدا شوم

زهٔ خټک دیار طلب کړم موند ئې نهٔ شي
له ناکامه ئے د غم سره ملیا شوم

## (۱۳۷)

همیشه دیار په مخ پسے رنځور یم
د هجران په اور ئے تود لکه تنور یم

نش صورت مے تقدیر بند که په دکن کښے
تل د زړهٔ په یاد و یار وته حضور یم

زهٔ په هومره ژبے ژاړم له هجرانه
چه امام د نائے وچنګ ودتنبور یم

عشق هزار خفه بلا کړے را خبر سے
صد رحمت مے په همت چه لا مسرور یم

زخمی زړهٔ لره مرهم دوصال بویه
جدائی غوځ کړے پروت په بیچاپور یم

---

۱ برات برشاخ آهو (۱) دروغو وعده - دروغ خبره (۲) مرمحال - برات یعنی برخه یک - تحریر - شعبان څورلسمه ورځ - دهوسٹی په بنګر یعنی په لاس نهٔ را تلل - مشکل

عجب دیدم تماشه شیخ باهو برات عاشقان برشاخ آهو
(سلطان باهو)

دوصال په امید هر ساعت تازه شم
له هر څو له یاره لرے په ضرور یم
نیک وبد ے دتهمت په کانړیو اولی
زهٔ هجری داوسنی دور منصور یم

## (۱۳۸)

چه ژړا ے خلق نهٔ آروی زهٔ څهٔ کړم
راته وایه علاج څه چه صبر نهٔ کړم

واړهٔ صبر شیرینی لری کهٔ تریخ دے
زهٔ څو صبر پائمال په ډیر کا تهٔ کړم

دوران تل دصابرانو میوه ورکا
څو پمانهٔ دود بدل څکه ماڼهٔ کړم

یا دصبر ماند وبود په جهان نور شهٔ
لا راخوئ دصبر نهٔ دے چه ئے زهٔ کړم

شاید صبر نهایت میوه پیدا کا
شکایت ئے بےموجبه دلارغهٔ کړم

نور به ما یاران دوصل تازه نهٔ کا
چه دهجر بنکر مات لکه وابنهٔ کړم

څوک دهجر کور را اوبنئی یارانو!
چه ئے کور لاهو دسترګو په اوبهٔ کړم

شب وروزے کسی هسے ګوهر نولی
ګویا زهٔ دهجر غم دڅوت اورهٔ کړم

چه په زړهٔ ے اور دیار جدائی کیږدی
ولیدو ته ئے له قصدهٔ ځان اودهٔ کړم

هسے نه دهجر غم چه حلق پرے خوږ شی
کهٔ په خلهٔ دزمانے همه خوابهٔ کړم

دیار دید به حاصل نشی بے نصیبه
که په ډیر طلب مینې بیزار زارهٔ کړم

ما هجری په انتظار کښے عمر تیر کړهٔ
ترو به کله لا دیار سره لیدهٔ کړم

## (۱۳۹)

هغه دَم چه د هجران له دُوکه آه کړم
پهٔ ورځ نُور د مهر ورک په شپه دماه کړم

لاړ به نشي لما غم د تورو زلفو
کهٔ په آه ئې تن ترزلفو لا سیاه کړم

دا فغان وآه چه زهٔ کړم عجب نهٔ دے
کهٔ تر تلو پوشیده د فلک راه کړم

زهٔ چه آه مخ په فلک کوم پوهیږے
وائم نه چه ئې په دود دوړ تباه کړم

تل د هجر له غمونو په جنګریز یم
د رضا زغره په ځان صبر سپاه کړم

د یار عشق ئې په یوه نفس تاراج کا
کهٔ همه په صبر ډک د زړهٔ خرګاه کړم

په کوشه د عشق خرام کله آسان دے
زهٔ چه ځم په هغه لار سینځر ګیاه کړم

ضیغم کله په جرأت لما تیرے کا
وے زړهٔ صنم ته خس لکه روباه کړم

زهٔ هجری چه ئې دائم حسن ته ګورم
په دا جرم به زړهٔ بند په زنخ چاه کړم

## (۱۴۰)

چه د زړهٔ له دسته وا د فکر باز کړم
په منګلو کښے ئې بند د معنو قاز کړم

نوے نوے مضمون راکاندی له غیبه
ځکه هومره په ځُلا د فکر ناز کړم

باد به ځان سلامت یونسی کهٔ راشی
په خلوت چه زهٔ د یاره سره راز کړم

هر دلبر چه ئې تعریف د حسن کړمه
د جهان تر ښائسته وُ ئې ممتاز کړم

کوم شاعر به هسے آب و شعر ورکا
لکه زهٔ ئې آرائش د وزن ساز کړم

د معنو اسرار کۀ هر څو سربسته وی
زړ په زړئے په تدبیر د عقل باز کړم
د قبول ګټے به پوئے په لیمۀ کښیږدی
کۀ هجري په دا هنر واقۍ اعجاز کړم

## (۱۴۱)

یو د عشق په کار صادق لکه واثق یم
بل جدا شوم له هغۀ چه پرے عاشق یم
هم د شاه له ډیره عدله مذ اوشۀ
بے ګناهٔ بندیوان لکه سارق یم
عشق او هجر دوه بلا سوم او رنګ شۀ
چارم یاد د وطن او زۀ ئے کاهق یم
یو بلا له دیو نازله په چا مشه
زۀ تقدیر پرے اخته کړے د خالق یم
سخنور د جهان زۀ نادان به څۀ کا
غم به مالره راځی چه ئے لائق یم
هر شاعر په قدر حال سپهر مروړی
ما ته قهر ځکه ډیر کا چه فائق یم

زۀ هجري په پریشانئ ځکه نازیږم
چه په دا دیار له زلفو موافق یم

## (۱۴۲)

زۀ په مخ د مزګے زۀ لوئے ګنهګار یم
همیشه له ځلوبدو شرمسار یم
د نیکئ عمل نه نشته شرمنده یم
په دوه داره دله فضله طمع دار یم
زۀ خطا کوم هیش ته نیکوئ کړے
بارے شکر چه پخپل جرم اقرار یم

ستا کرم به البت بنهٔ راسره وُکا
زهٔ که هر سو په عالم کښې به کردار یم

دا بهشت مې ځل وطن راته عطا کړه
طمع دار د زهٔ له فضله ددیدار یم

د بهشت نعمت مې ځل که ته مولا کا
چه خادم د پاک نبي غونډې سالار یم

قضا کښېښوم امانت په دا قفس کښې
زهٔ طائر د لامکان د مرغزار یم

دا خاکي قفس زما بنه دیخانه شهٔ
ګڼره زهٔ د فرشتو سره په شمار یم

منتظر ته د فرمان ګانده به حمه
نن میلمه د رحمتونو په دیار یم

نیکان دادې په بنهٔ عمل لري یاربه!
زهٔ مجرم د خطاکارو په قطار یم

له عطا د ډیر اُمید لرم غفوره!
زهٔ هجري ځکه دائم په استغفار یم



## (۱۳۳)

یاره ستا په نظر سپک تر بوه کک یم
داخلاص په تله ډیر ترمنه تک یم

د بنا ئست پوله د حیرته ده حیران یم
نهٔ ئې حد یقین مومنه نهٔ پرې شک یم

چه همیش مې ستا د مخ مدحه سبق ده
کهٔ له مینې د مجنون وړ زیرک یم

صد هزار ستمه کړه زهٔ به ئې اوړمه
له جورونو کهٔ د ژاړمه کودک یم

یو زمان مې له کتاله امان نشته
لاس د عشق تله چوګان زهٔ ئې ټنګ یم

ستا ته مینه مې چشم د رندانو
د رقیب په سترګو خار د مردمک یم

سره هجري مې دآه په لوګی پاڅي
له فرقته تود تنور داوره ډک یم

د هجران لمبو زور راباندې اوکړو
منتظر ستا د رخسارو په کمک یم

فرقت سل رنګه وصال دما بعید که — نن دوصل عید قریب یا تو پټک یم
ما خټک ته صفا خله په صله راکړه — ستا دحسن په تعریف له زرویک یم
دانایان دِ روک دشعر پما ګوری — نیک وبد به ئې روښن کاندی محک یم

په پښتو ژبه ے سیال دشعر نشته
دمعنو په جهان شاه اشرف خټک یم

---

## (۱۴۴)

څو دیار د مستو سترګو نه جدا یم
لاهو کړے د حیرت خوفي دریا یم

د ځیګر وینے مے او خوړے غمونو
مرګه جګی جګی راشه اوس رضا یم

که زمانه په خون مین ئے نن د وار دے
دیار غم مے سبا وژنی درته وایم

د کفن حاجت ئے نشته شهیدان دی
چه په تیغ د هجر مړهٔ دی زهٔ ګواه یم

بے دلبره عاشق نهٔ یائی حیا ده
دوی عار لره ساتلے چه لا پا یم

په هغو د هجران څهٔ چه یار ئے نهٔ وی
زهٔ ئے ځکه په اوی اوسوم چه آشنا یم

د وصال خوشی لا تښده ترسبا ده
له فراقه ئے خسته په سا نها یم

د هیچا زړهٔ ئے تر وزنه لاندِ مشته
چه مے بار د هجر اولید په دُعا یم

هر طرف چه نظر کیږی غم لید کهٔ شی
څو را پورے په ندئ د نړیدا یم

زهٔ په بند د اورنګ نهٔ یم چه به خلاص شم
بندی کړے شیخ رحمکار زیږی کاکا یم

په دکن کښے پارونشته چه م دم کا
زهٔ خوړلے اژدها تورے بلا یم

یاد کن دغم وطن بنادی ئے نشته
یا په ما غمونو شپه کړه مبتلا یم

هر نفس په ما عاشور کا یزیدانو
ګویا زهٔ حسینؑ د وقت په کربلا یم

---

یادګیرنه :- قلمی نسخه ۱۰ - ۱۲ - ۱۴ - او ۱۶ نمبر شعرونه نهٔ لری هر کله چه چاپ نسخه ۱۱ او ۱۶ نمبر شعرونه نهٔ لری - دغه وروستی دواړه شعرونه د میاں محمد بادشاه د "تاریخ بدرجهان" د قلمی نسخے نه د بنا علی سیف الرحمن سید په ذریعه لاس ته راغلهٔ -

حضوری له هجره سخته شوه و ماته خلقه څهٔ کړم گرفتار په دوه بلا یم
هسے رنګ جدائی مشه له مراده لکه زهٔ فلک بیل کړے په جفا یم
که فواق همه سورے لکه غلبیل کړم چه لا دم را باندے شته څرګند ریا یم
د دین نن طمع شکی ده په کالونو تش دمه د زړهٔ کوم چه نن سبا یم
یو زمان ئے خالی کله یم له یاده بل په خوب کښے په دغه سودوسودا یم
داو رنګ جور د آسمان چه په صورت دے په فریاد د فرقتونو له غوغا یم

جوړ دا نه صبر مے کله دے په زړهٔ کښے
زهٔ روحی د یار په مخ پسے تالا یم

## (۱۳۵)

دا غزل قلندر مومند ماته را الیږلے وو

---

په نوے ئے د مینے په تاوان یم تینګ تړلے ئے د زلفو په ریسمان یم
چه په سترګو ئے مئین شوم تړے وژنی هسے هم مسلمانی ده مسلمان یم
په غنبتو مے ئے د چپ سترګے کړے کورے ګستاخی مے اوکړه ډیره پریشان یم
مائے لاس نیوهٔ په ویره خله ئے راکړه د ډیلی تر بادشاهی نه یرے شادان یم
په ستم زغمل ئے هسے سترګو شوخ کړم چه خبر په ظلم کله د آسمان یم
هیڅ له مرګه ډیره نهٔ کړم ورته ګودم زهٔ بلا مئین د شوخو په چشمان یم

خود په خود زهٔ هسے نهٔ سوزم دلبره! چه محتاج د دسرو سترګو د دامان یم
نوے طرز مے په پښتو شعر کښے وکه د افغان په شاعرانو کښے سلطان یم
په[1] پښتو کښے چه څوک دم وهی د شعر خوشه چین مے دی د ځیرے زهٔ دهقان یم
په پښتو ژبه مے آب ورکه د شعر د فارسی شعر چه نهٔ وایم افغان یم
چه زما متاع څوک خپله متاع نهٔ کا امیدوار د دے خبرے له یاران یم
ما د عجز سبق هسے د دے ضبط کړے چه رنځور د مهوشانو د کمان یم

ترخپل خوی پورے ناچار یم قلندره!
عاشقی توره بلا زهٔ ئے خواهان یم

## (۱۳۶)

هغه ورځ د هجر غم لره سزا شوم چه له یاره په ژړا ژړا جدا شوم
ما هاله ماتم د ځان اوکړو په وینو چه اتهک وته مے شا کړه په ژړا شوم
اوس به څهٔ د وطن کانړی بوټی ژاړم د رخصت سلام مے کړے ترے بدا شوم
یو ناوک مے په دِل تک را دُړله روهه ځار و جار مے د باغ اونهٔ کړی خطا شوم
په محنت مے یو ریاض جوړکهٔ په دهر لا مے ګل بوئے کړے نا څنے جدا شوم
شینٌ[2] فلک په خندا سور شو له هوسه چه هوړی جبل په مخ زهٔ ورته شا شوم

---

[1] دا شعر په قلمی نسخه کښے نشته.

[2] لوئے فلک په خندا شین شهٔ له هوسه (ج - ن)

دز رۂ سر ے سکه زد په یوه نام دے — کهٔ بُتان دجهان مخ زهٔ ورته شا یم
په گفته ے دبیاس مظنــه[2] مهٔ کړه — په کړو[3] زلفو سوګند کهٔ په دغا یم
کهٔ هر څو دوطن ګانړی بُوقی یا د کړم — په اخلاص به سلام وائم چه جُدا یم

دَم په دَم ے دجان نوم په ژبــه ګرځی
زهٔ مجّوی له بـله ذکـره مُبـرّا یم

# (۱۴۵)

تهٔ له حاله خبر نه هجر دِ زور کړم — په ستم ے دځګر په وینو مور کړم
دژوند ون زراعت اورسیده ریـږی — مزعفر سموم دیادو نکه بو ر کړم
ترهر رنځ هجر بترهمه درو غ دی — کهٔ الم ے دستم نسبت په کور کړم
د وصال سبزه په ترګو لیـدهٔ نهٔ شی — دفرقت غمونو سره په هسے دور کړم
په دهره دفراق دوه دقوت ملاشوه — دحیله غوندے په ځائے له غمه مرور کړم
صیقلیٔ دګردون هسے مالش راکـړ — چه ے لاتر آئینے منور جور کړم
دز رۂ سر ے سکه زد ستا په نامه شو
زهٔ مجّری دِ محبت له هر څهٔ سور کړم

---

۱ ځکه زود
۲ مطمئن
۳ په کړو زلفو سوګند کړم په رشتیا یم

ادبی سوغات

## (۱۴۶)

دګردون له کږو کله په دا غـــم یم　　　　د صنم له هجره سم دغم په یَم یم
ظاهری بدن که ګوری د زړهٔ په یادو　　　　دَم په دَم سم د صنم سره همدم یم
آه فغان مې څکه تل دڅ بې ملهٔ وی　　　　چه همدم دِ هم وغم یار دَالم یم
مرتبه دعشق یار ته برهنـــه ده　　　　په دا فن تر آدم همقدم قدم یم
دیار وصل مې په خوب بداید اولیــد　　　　ما وې سم په دا نعم سهم دجم یم
څهٔ به بله تمناکړم بې وصـــاله　　　　چه خدم دمتاع نه نهٔ دِدرم یم

زهٔ هجری دبیلتانهٔ له دیره غـمه
د زړهٔ سر په اره تم نکه قـــلم یم

## (۱۴۷)

چه بیان په نظم حال دحقیقت کـړم　　　　د جنت بُونه مشتاقې دخدمت کړم
کیفیت چه د مجاز اِمــلا کومه　　　　بس شاګرد ددې جهان اهلِ صورت کړم
په آرسی کښې بناګت حسے جلوه کاندی　　　　نکه زهٔ بیان دحُسن کیفیت کــړم
ګزشته عشاق په ګور کښې آفرین کا　　　　دا صفت چه دګلرنګو په صفت کړم
چه دښو دلبرو دردې په زړهٔ نهٔ وی　　　　ځاې لری که هرڅو ډیرې مذمت کړم
کهٔ هزار ځله جفا کا فِکر مهٔ کړه　　　　چه تر شا به دګلرنګو محبت کړم

یادګیرنه : دا اشعار په چاپ نسخه کښې نشته .

زهٔ هغه یم چه تر خال د کُلرخانو — تصدق د اورنګ شاه همه دولت کړم
کهٔ په ږمنځ ختلے تار د زلفو راکا — تر فدا به همه هند هم ولایت کړم
بے دریغه ے نور هیڅ فائده نهٔ وی — نن چه یاد د ګذشته عمر صحبت کړم
د ارمان آتش اوبهٔ کا د تن و سینے — همیشه باران د چشمو بر لت پت کړم
بے رخصته خرمی د وصال لاړه — غم د هجر کله ځئ کهٔ ئے رخصت کړم
هر طرف چه آب وخوړ قضا ے بیائ — زهٔ کهٔ هرڅو د آشنا په طرفنیت کړم
کهٔ اورنګ د خسروئ په سریر ناز کا — زهٔ خټک په تخت د صبر مسرت کړم

چه دا لعل و دُر لړی بیځایه نهٔ دی
زهٔ حجرۍ کهٔ ناز په زور د طبیعت کړم

(۱۴۸)

هغه ورځ چه دِ په مخ باندے عاشق شوم — ستا کړ و جور و جفا لره لائق شوم
کهٔ حلقه لغمه پروت یم عیب مهٔ کړه — په دا کار کښے ستا د زلفو مطابق شوم
هر ساعت ے شین لوګے له تنه خیژی — د سینهٔ مخ مینه دِ اور زهٔ ئے کاهق شوم
د اورنګ د مال و ملک رخنه کر نهٔ وم — محض ستا په مینه بند لکه سارق شوم
کوم عاشق د عشق په غم هسے صابر وو — لکه زهٔ له درد و غمه موافق شوم
د وامق تر غم ے غم مومره فائق دے — څو فائق په دا هند کښے تر وامق شوم

---

یادګیرنه :- دا غزل چاپ نسخه کښے نشته .

د مجنون درد مې تر درد پورې درد نهٔ وو — د فرهاد مینه هم پسته زهٔ فائق شوم
چه دین د کبنلیو فتو کړې ناصحه — تول د عقل دې رخفیف لرې واثق شوم
کهٔ دین د سنو کارنکو فتو مجور دے — دننه وره په شهر اوکړه زهٔ فاسق شوم

د ناصح منع مے یار ته لا حریص کا
زهٔ هجری په دا هنر هومره صادق شوم

## (۱۷۹)

ماچه اولیدهٔ دلبرے جبین ستا سپین — په دا شان به هر گز نهٔ وی مخ د چا سپین
د بیانو رنګ دِ رنګ دلاله هیڅ کړ — شان د گتو هم لرے تر چنبے لا سپین
ستا د مخ عشق به واعظ پما حلال کا — که دِ اووینی سرشونډے جبین لا سپین
د کمال په شیشه ئے مخ په لوری سم کړه — چه نور مخ په نوُ رنهٔ کاندی بدرا سپین
نمر په دا بنا نُست د مخ کینه پیدا ک — د صورت نمر دِچه اووینی په غبرا سپین
ستا په مخ که ئے خوک یو حُل برابر کا — په زمان به دِ کا فور وکا تر شا سپین
لکه ستا دُرو گوهر د زیوره برلنبی — ستوری نهٔ کا نمود هسے په سما سپین
هسے کبر به نور توره په بریښ نهٔ کا — تر پلو کهٔ هوید اکا مروش شا سپین
چه ئے نوُر د مخ سیالی کا ستا له مخه — هسے مخ په جهان مشه بل پیدا سپین

---

یادګرنه:- دا غزل چاپ نسخه کښے نشته۔

په وصال مې د بښه هم ستر ګې بینا کا
ما هجري کړه کسې دوا له په ړ ې اسپین

## (۱۵۰)

څو لیده شي په ظاهر رنګ د فلک شین
له جفا ئې هومره زړه لرې خټک شین

څو مې زړه د ده غمونو هسې شین کړه
شاید نه به کا هیڅ رنګ هسې پتنګ شین

د څېګر سرخي مې هجر هسې شنه کړه
چه آرزو ئې د سبزي لري سینګ شین

راشه ځه خو مې د زړه نند اره اوکړه
هرګز نه کاندي فګار هسې ټوپک شین

تر فلک به ئې د بدب د حسن تیر وو
که ئې یو پېر په دا روش وې د بوبک شین

څو ځګر ز ما زرغون د هجر غم کړه
په دنیا به ځګر نه وي هسې یک شین

چه همیش د هجري بد وائي ویار سته
د غمازه په سر نازل شه لوئې کوټک شین

## (۱۵۱)

زړونه غواړه البته د عاشقانو
یا عاشق ربه څوک مه کړې د بتانو

که دده جهان دلبرې ورته پرین دې
لاس به اوکاږي ډېر سوي له حورانو

څو خوبان چه آراسته وي په مجلس کښې
حاشیه ئې لا زیبا کا تر ګلانو

ډمان ولې دَم په خود مګر کاږه شول — په هر کنج د ریاض اووې بلبلانو
ډکلونو بهار جوړ باده تیـــــاره — نن قرار کله روا دے سرود یانو
په هوس د بهار ګونګ طیر ګویا شــو — تا سو ولې خلوت خوښ کړو زاهدانو
تر هغه ساعت به سخت په دنیا نهٔ وي — چه زغ وُکا جدائي په دوه یارانو
لیده هٔ نهٔ شي چه په خون د تورو سره شي — هجره کړے ناسازه چارے په شیرانو
بیا به کله ستر ګې وا دیار په مخ کـړم — د دیدن ورونه دې بند کړه رقیبانو
زهٔ بنده په مسله کنے درمانده یم — التماس د جواب کړم له عالمانـــو
چه په دا حُسن د مخ بجونه پیدا کا — بیا ئې ولې تن غذا کا د کرمانو

اوس د مست په عیش کا په پیرئ نهٔ شي
د هجري خټک پیغام دے په ځوانانـــو



# (۱۵۲)

ولید مشه هرګز مخ د کهلرخانو — د کتوتي ازار پُر کا په کیکانـــو
د اسباب خوبه مو اوښلی په خمته — په کوڅه د شوخو مهٔ ګرزئ نادانـــو
په سمن د عشق سورلی نهٔ ده آسانه — ملک ئې نهٔ وي تښتي هرګز له مټ کرانو
تر دا سخت عقوبت هم لري بیشکه — ولدیت ئې مالیدلے دے یارانـــو
ثوک چه دا عذاب همه په سر اخلي — دغه ګوئے، دغه میدان، هله شیرانو
لاف د عشق چه عبث کا نړئ په دروغه — دروغ کله بافروغ وي کاذبانو

نفس الامر بیت وایم ودانا سته	حق تراخهٔ نکی البت په احمقانو
چهٔ دعوی د محبت په دورنکئ کا	دخرهٔ کیرے شه په کس د مادرانو
له ریا میرا حال ختک بیان کړ	وراند ے تاسو زده کنډ ابو عاشقانو

نن په دا ژبه چه زهٔ هجری وئیل کړم
ارواح کله پرے آګاه د شاعرانو

(۱۵۳)

یاره راشه په یوه وطن ما وا کړو	له خاطره مُبرّا اوبه ده رجا کړو
لاس په لاس به سره کرځو غنیمت دے	صلاح نهٔ ده چه دنن طمع سبا کړو
له ازله شین سپهر جفاکار دے	خطاٌ ده کهٔ نن موږ طمع وفا کړو
څو یاران لکه دمه مسے غنچه وو	د هجران لیوهٔ په زور سره جدا کړو
مجلسی یارانو کوچ اوکړ له دهره	موږ به څو حیات آخر په دا فنا کړو
څوک به خشکله اُمید د عیش کا ندی	په دا دارے همه غم لره پیدا کړو

یاره ! تهٔ به هجری پرے نښنوے په روغه
په ستم سره بیل جور د بادشا کړو

---

ا دا شعر چاپ نسخه کنے نشته

## (۱۵۴)

یاره راشه حال دتیر دوره بیان کړو — په ژړا ژړا دایاد تللی یاران کړو
تن دعمرِ لذتّ هیڅ رانشکاره نشهٔ — حکایت سره بیان دتیر زمان کړو
هغه بنهٔ ممزولی څهٔ شول نهٔ ئې وینم — په ماتم ئې تردین وجاری باران کړو
مجلسی مومسافر مونږ ه ئې پریښو — زهٔ او تهٔ ئې په عذاب او په ارمان کړو
یاروے نوربه هغه تیرپیره وُنهٔ کا — په ژړا ژړا کهٔ تور دکیسو وران کړو
تر ژړا بهتره چار مونږ لره داده — چه همه خلق ترشاد دکوچ سامان کړو
چه اُمید نشته دتللیو له بازگشته — د زړهٔ سور به ئې ترکومه په مکان کړو
یاران واړه په نوبت راتخنه لاړهٔ — خو به مونږ حیات په دا فانی جهان کړو

یاره ! خوږ مصلحت تا د هجرّی ورکړی
نور به زهٔ او تهٔ تر شا خلق ودان کړو

## (۱۵۵)

یاره راشه له عالمه تن کناره کړو — په خلوت کښے سره ناست بوس وکنار کړو
په افراط جامونه وا خلو دشرابو — تو رے خاوُرے په سرورک غم دنهار کړو
شین سپهر دغاباز باور پرے مهٔ کړه — په دا کاره مصلحت هسے چه تلوار کړو
دسبا په اُمید دیر په ارمان لاړهٔ — مونږ به ولے په سبا برات دکار کړو

زهٔ او ته چه سره نوښ په مجلس کښېنو
د بدخواه په سر به کانړي د ګهار کړو

یار وې زهٔ او ته یوځي جدائي نشته
په حیات به تل خبرې د اسرار کړو

ولې نن د بهار ګل په ریاض راغله
تر همه چارو لازم چه ئې دیدار کړو

په چمن د ګلزار ځو د ننګه چیغار کا
راشه یو ځل شنیده ژغ د هزار کړو

پس له کاله ملمه شي په ریاض کښې
لا به کله بیا دیدن د نو بهار کړو

په موسم د بهار نور شغل حرام دی
زهٔ هجري او یار به سیر د ګلزار کړو

## (۱۵۶)

بیائې تاو ورکه په قصد د زلفو ځرګو
د رنجو بناسټ ئې هم ورکړو سترګو

په کوڅه ئې د عشق هسې خلق تول شي
چه تمیز د خوردو نه شي له بزرګو

د عشق جیش ئې نازل زما په زړهٔ شه
صبره! تښته چرته تل ګوره د غرګو

تورې سترګې ئې ځه سحر کا حیران یم
چه ګیدړ کا په نظر شیران د درګو

سربازان که د عشق لاف کوي پرې بنائي
ستا سو ځه غرض په دا د بنهر چرګو

یار دائم هجري ته مخ په شانه نشي
که له غمه وارا مري غمازو ګرګو

## (۱۵۷)

ترفناچه ددین کار کانړئ دوروستو — په اخلاص کښې داخصلت وینم دستو
دسبا فکر مو ولې له زړهٔ دوړ کـه — اې ددین په کاړ متهٔ دنیا ته چستو
په عمل دنیکو مخ کړه عیب ئې نشتهٔ — کهٔ پوشاک موهمه زړوی داغستو
دطلب زمان هم دادې بیا به نهٔ شی — کهٔ ینګی مو دوارهٔ غوځ نهٔ دی دچستو
پیړ وی دنیتی کړه کهٔ جنت غواړې — بله لاړ په جهان مُتڼ کړه دوړ وستو
دغفلت له خوبه پاسئ عمر تیر شهٔ — په بقا د لابقا چاړ و بدمستو
دَم ٔ وهه دسریتوب ګار دیوهٔ کړې — داخصلت وی همیشه دنا درستو
مرګ رخصت دفرصت نهٔ کا توبه کانړئ — اې په مهر دفانی دنیـا پا بستو

داسلام دامن هجری په رضا ونـــو
لاس ئې نهٔ دې په دوه داړه دګســتو

## (۱۵۸)

زهٔ او یاړ چه سره لرې په ظاهر یو — دګردون دوړ داغ کړی په ځګر یو
په دا حال کهٔ همیش شکر کړم روا دې — چه هردَم دزړهٔ په یادسره حاضر یو
تهٔ زمونږ په هجرخوښ مشې درقیبه! — هر نفس موسره وصل په خاطر یو
که یو ځل مووصل اوشی بیل به نهٔ شو — په دار کړی هسې شان هجر کافر یو

---

ـلہ دا شعر چاپ نسخه کښې نشته ۔

یاره داسې جدائي مو صلاح نه ده    مونږ په دا فاني کاذبه مسافر یو
ګوره کوم زمان به والوزو وطن ته    د جهان په کښت وارد لکه طائر یو

هجري! صبے وار په وار وګړي لیږدي
لکه راغلي له مغه متواتر یو

## (۱۵۹)

مقیشي خادرې ئے واغوست په جالیو    ارګجه ئے پاس طلا کړه په چولیو
تماشې لره رادرومئ عاشقانو!    هر څوک درد د عشق اخلي په جولیو
په یاقوت ئے همه روه تهه وبالا کړ    اوس په هند د ملک اخلي په لالیو
د قیامت ساعت نازل په زمانه کا    هغه دَم چه ئے ژړنګا شي د والیو
سر تر پایه لکه بدر همه نور ده    هیڅ مکان ئے خالي نه دے تر تلیو
ماچه ملا د مستے شاه مشاهده کړه    ځان ته مه وایئي نرئ د ګل کلیو
که یو خال ئے مخالف کا څه عجب دی    که ګویا شي تصویرونه د قالیو
د څړئ ولینسته ئے ګوزدي تر پنړیو    لاس په لاس ئے لیے وانړئ سهیلیو
چه ئے حسن ته په بد نظر کا ته کا    سر ئے ژدنو غونډے مات شه په مولیو

زه هجري ئے عیش کړم د در په خاوړو
راته مه کانړئ څوک ست د نهالیو

## (۱۶۰)

برایه غمان راغلی د هجران دو د لښکر وحد ئے نهٔ وو بے پایان وو
هیڅ صرفه ئے د تاراج رعایت نهٔ کا د زړهٔ ښهر ئے خراب کړو ظالمان وو
د آه غشے ے ویشتهٔ په قوس د صبر و ے زخم ئے پرے نکه پټ سپایان وو
تو ے کړے وه خوشی دیار په وصل راتعین د صفه عیش په تاوان وو
هیڅ طرف ئے له ابنوهه خالی نهٔ وو هم په مزکه گرزیدل هم په آسمان وو
د فانی دُنیا کار ونه سرسری دی شکر شکر چه تل نه خو یو زمان دو
زهره گوره په لرزه چه په دیره شی کهٔ ے سر له خوبه پورته که روان وو
تو دوړ و نه خټک اولیدل په ستر گو د الیستاد وفا ئے نهٔ کړه گذران وو

هجری واره په ارمان له دنیا لاړهٔ
بادشاهان د مملکت چه په جهان وو

## (۱۶۱)

زیب ئے هسے زړونه غوځ کا د سرو یو آب له دهٔ گویا اخستے دے مصریو
له دوه لبو ئے لذت خبرے و اخلی څکه سوری کا نرخ په هند کښے د مصریو
مخ ئے هم په تماچه د سبا شورشی داوُدی کهٔ ئے تقلید کا د غوټیو
ما چه زیب د مستے شاه مشاهده کړو نور د حسن لا فے مهٔ کاږئ دانړیو
د زینت رتبه ئے ختمه په صورت شوه تنګ کوکس دے په دُنیا د بنا پیریو

بے دربارہ ئے پایاؤ زما غلط دے حیات کله وی بے سینه د ماهیــو
په خوبئ دحسن دومره دماغی ده چه زیور ئے وارہ مات کړی دموتیو
زړه ئے ځکه تل دَدر په خاوړو پروت یم چه پرے خوښ یم دا طلس تر نهالیـو

په مجرّی به غم دا هومره شنه ے نکړے
په دکن کهٔ زغ راتلے دیـار د سپیو

(۱۶۲)

په تیکه کښے دصنم جوړه هــیرا وو لا روشن تر ماه ومهره په ضیا وو
کهٔ هیرا په داخوبئ وو او بیشکه وے مخ ته ئے لا سهل ترکیا وو
انګی ئے ماله سیبو مقابـل کــړهٔ هغه تپوک د ململو دا خامتا وو
بیا ئے لعل چا ولعلو ته نزدے کړهٔ د هغهٔ قیمت خوشته دا بے بها وو
د غاښونو زیب ئے ګده په خجالت کړی هغه دَر چه پاک راغلی له دریـا وو
شاعرانو چه ئے قد چنار نسبت کړ سراسر ئے داوښل وارہ خطا وو
هغه اوچ لړګی ے اولیدل په باغ کښے مثال کله په بالا دمستے شا وو
نهٔ ئے زړونه صبر کا نهٔ مراد مومی عاشقان همه چه غم لره پیدا وو

دمجرّی دعشق نوبت دے ن له یـاره
د اول دور نامی مجنون لیـلیٰ وو

## (۱۶۳)

وخت د نوبهار دے چمن زیب لری په ګلو
پــه مخ د بنائسته وُ زينت بل وُکڼ سُنبلو

مخ د مزکے وارہ مخملی شه سـرله سـره
دلبرو له عشرته نظام نو کڼ د ګا کلو

پټ سبب د عيش ئے جام په کف کړ غمزه ته
لب چه ئے بوسه کا په قهقهه شیشے د ملو

ګُل ئے اشاره باده اخله چه غم قتل شی
غم په غم اخته کړه زلفے نسه په منګلو

تن منزل ئے باغ تــل د تلو لری ګلونه
زاړه ئے په کټو شه کال به اُوکا په راتللو

فرقت له وصله لرے هرګز نۀ ګرځی په دوړ
تـل ګلونه نهٔ وی پرے غوغا کانړئ بلبلو

کهٔ تل په حدیقه وے له بلبلو به ګل وے
لارے لارے خپرے لمن ګرځی تل تر تللو

ارمان د عاشقانو په وصال د نظر نهٔ شی
کهٔ هرو ینبتهٔ بینا کا وښهٔ مخ ته په کتلو

سترګے د مینو چه منظور ے په دیدن شی
ګم هغه بانړهٔ شه چه جرأت کا په ځنبلو

ژغ د جرس خپرى چل چلاؤ دے بے خبرو
مے په رُخصت بویه مکان نه د تغافلو

نَدم په تېرو چارو ثمر نهٔ لری خمکه!
دَم چه کذشته شی پېره نهٔ کا په ژړلو

## (۱۶۴)

چه لذت مے هویدا شهٔ د خبرو
شکری د کان تالا که د شکرو

جوهری مے نظم اولیدهٔ ژړل ئے
وے ئے کم ئے کړو قیمت د مرغلرو

ګوټے په اخذ د معنو کا له بلبله
که صُلصُل مے غزل واؤئ په سندرو

عنادل که مې وښل په غوږو واروي — ګویا ئې به ترنګ وړولي تر زړو
سخنور په مزه پوهه زما د شعر — نۀ چه مغز کښې بې موړي بې شکرو
د لعل قدر هویدا دې جوهري ته — ماهیّت د زړو غواړه له زرګرو
دَر د علم کشاده په فاضلانو — د کتاب مسئله څۀ زده بزرګرو
که نیوشي د ختمک سحر کا د لبر سې — ډُر به واړه ترې فدا کا د بیسرو
کلمه مې د غزل ترې تمینه ده — کۀ نعلونه زر توده وي په تجرو

دوړه اخو په دستم ناوکي ووې
د مجروح صبر سختي لري تر زغرو



## (۱۶۵)

هر نفس آورم په غوږو د مرګ غاؤ — د اُخرلي په لار دائم دې چل چلاؤ
چه د چا په تن نازل شي فرصت نۀ کا — یو نفس چه رخصت غواړي د پایاؤ
لکه راغلۀ له عدمه هسې لاړل — یو زنده په دا فاني نۀ شۀ تیکاؤ
کۀ همه جهان بره کړې څوک به نۀ وي — چه داغ نۀ دې د مرګي داوړ په تاؤ
ځائې د آدم وهلو نه په هغه لفظ — چه الف او یا وړو ستې په سرئې واؤ
کتاب وائي مسافر تۀ توشه آخله — تۀ منصب غواړې دې تاب دېلاؤ
ځان ته وائې متقي ولې دراز کړې — چه دجوړ شي په حرامو دلاس داؤ
دا وښل چه ظاهر کړه کمې به نۀ وو — که ددې وینا د زړۀ ته وې هواؤ

د پندار غرور دِ وزن دځان غر که
په میزان د عقل سپک ئې لا تر پیا وُ

بیهوده فخر رالا فکر دځان کړه
چه وریت نشې په لمبو کښې د آلا وُ

د خرقې صاحب په وقت دِ موت بنهٔ دې
تر هغه چه ئې میراث شي اسپ وکا وُ

هر گز مهٔ وایه عبث خبره کښې شي
حساب شته په محکښې دیر دکنجو کا وُ

دا غزل په شل ویک حرف عدد کړه
دهر یو بیت مصرعه ئې ده جېرا وُ

هجری مخ د هغو توری چه په یارئ کښې
همیش کسی په نظر سیوری سے پیتا وُ

## (۱۶۶)

د سپین مخ جلا دِ مکه تر سما ده
له جلا دِ حاصل کړے نمر ضیا ده

نمر دِ نور له نوره موی دے له کُتے
تر نمر څکه مجلا دشت بریښنا ده

د مرونډ په شعله زړهٔ په زلزله کړے
دا روِش چه تو ره کا شاگرده ستاده

مخ او زنه دِ دخهٔ سره مخې کرم
چه تر گل دیره هغه زیبا صفا ده

چه هیڅ دار له مرګه نهٔ کا عاشقان دی
چه ئې دیر په کوهی دوب زنه دشاه ده

که ئې ستر گے آماده وجنګ ته نهٔ دی
په ترکش ئې لیندہ پاس څهٔ مدعا ده

اژدها ئے نګهبان مخ ئې بهار دے
لاس چه گل لره وروړی زهره دچا ده

چه جفا په وفا کاندی خوئ د شاه دے
چه وفا کا په جفا میشه زما ده

دا وربل نهایت نهٔ وینې ستا نته
په تاراج دزړونو تل څکه رسوا ده

که اوربل دِ بل کړو اور په عاشقانو
ددهٔ هم څکه آخر خونه بیدیا ده

اوربل تو رله اصله کله وه ختکه!
له آمونو ئې حاصله دا سودا ده

ئه دا شعر په چاپ نسخه کښې نشته .

## (۱۶۷)

غم دِ مبسط کا چه په مخ کښې ئې بلا ده
ما تخته غم نشته چه حامله ئې رجا ده

زړ به له رافته شګفته لکه غنچه شي
ن که د فلک راته په سل ګڼړه سیما ده

حق ئې دی وشلی پاس په سر مې دی منلی.
عشق مې لید لے اوس مې طمع د یسرا ده

د صبر په لمن که نوش له نیشته تولد کا
تنګ له غمه مشه چه ترخو پسې حلوا ده

صبر ئې حارس پر تعرض کاندی غمونه
زړه ئې تماشه کړم په محل د زړه وغا ده

سبق په ژړا اخلم د استاد له کشمکشه
طفل د مکتب یم ولعب ته مې رضا ده

ترخه د طبیب بنه چه پکښې خیر د بندې
رب چه عنادرکا بد ئې مه ګڼړه عطا ده

لاس دِ خوف چرې چه به لاړ موړ ومانه
په تن مې سیده کړی د همت لویه رداده

جدل د ګاذر واړه پرکا د بضاعت وی
مالش ئې قدر نه دے ناطفت ئې مدعاده

آدم په وسوسه له خلده لرې په ذلت شه
سل بلا چه ته کړې په نظمه واڼی جفاده

د زړه په مناره صنم ایما په تحمل کا
مخ د بنادئ وینی له قضا سره آشنا ده

کوږ د اندوهونو هجری ورک په خرمئ که
یاس ورکره نشته سراسر همه رجا ده

---

یادګیرنه:- دا تول غزل په چاپ نسخه کښې نشته.

[1] د قرآن حکیم دے آیتونو ته اشاره ده.

فَاِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ○ اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ○ (سورة الانشراح)

بیشکه سره د سختئ نرمی شته. بیشکه سره د سختئ نرمی ده

## (۱۶۸)

په غنچه کښې ئې د لعلو ډېر ناب شته
هسې ډېر کله د شاه کره خوش آب شته

ما ئې مدحه د مخ کره زړهٔ وښل دم شه
کله چا تخنه دې بنائست حساب شته

د بنائست مثال ئې ګورم ليده ئې نهٔ شي
په مانند ئې لړ مائل ګل د ګلاب شته

د خوبئ سياله ئې نهٔ وه باور اوکړه
کهٔ صفت د ليلا هرڅو په کتاب شته

بې نوبته به ديار غمونو مرکړم
و ئې ګوابش ته مهيا ژغ د رباب شته

د هجران غم به ورک نهٔ کا کهٔ ئې وڅښنم
چه په ملک چرته غمونه د شراب شته

بې مبلغه ياري نهٔ کاندي کمله ئې
دم هاله د عشق وهه که زړې طاب[1] شته

زما زړهٔ ئې سره له سره هومره تاؤ که
څو په زلفو کښې د ستې پېچ وتاب شته

وښل مهٔ کړه چه د حال له هجره څهٔ دے
په مثال ئې ورشه اوګوره سيماب شته

کهٔ هجران نشته ما غونډې بل غواړے
هغهٔ تو به کا په جهان هسې خراب شته

داګوهر چه د هجري له فکره خېژي
څوک به واتې چه په نس کښې د درياب شته

---

يادګرنه :- دا ټول غزل په چاپ نسخه کښې نشته .

[1] طاب د عربئ لفظ دے چه د "خوشبو" او "لذيذ" معنى ښندي . کهٔ "تاب" شي يعنى په معنى د چمک ، برق ، توان ، طاقت نو د شعر معنى به صفا شي .

## (۱۶۹)

هر زنده چه په دا خونه د عذاب شته
نهایت ئے تورو خاورو ته مآب شته

نیک و بد عمل چه کړے جزائے حق ده
دیوهٔ بدل عذاب د بل ثواب شته

دلیری په خیانت د فرمان مهٔ کړه
په ادب معاش کوه ځائے د حساب شته

په وسعت د جهان ځائے د غرور نشته
چه په مخکښے تنګه خونه د تراب شته

د راحت ملک به مرکز د چا چل نهٔ شی
چه ئے ضد لره د دهر انقلاب شته

د مراد د عنقا تن کله موندهٔ شی
څو په سیر منیر او دهٔ شهاب شته

په بقا د حیات څهٔ لره امید کړے
چه په تلهٔ د عمر دا همه شتاب شته

زهٔ که حال د جهان وایم فضولی ده
نمونه ئے خیمه ګواهه د حباب شته

په مراد به د وصال میوه او نهٔ خوری
په دُنیا چه د هجران ضد و عتاب شته

دا وئیل به په دیوان د مرزا نهٔ وی
کهٔ باور د د ویونی په خطاب شته

کهٔ انکار په زړهٔ لرے سیر ئے وکړه
که ئے تیر شهٔ مصنف هغه کتاب شته

دا غزل چه هجری اوو ے باور اوکړه
کهٔ ئے نوم شاعر په دور د جواب شته

(۱۷۰)

څه رنګ ډېر د هغه تېر عمر لـذت وه
فغان څکه چې کرم چه لږ مدت وه

چه لیدهٔ میسر نه په زړهٔ مې ګرزی
مګر تش وهم د خوب هغه صحبت وه

دا شیرین عمر همه په غم کښې تېر شهٔ
په مراد مې څو نفسه جوړ نوبت وه

نواله ئې د آزړو راپس نو نهٔ کړه
زما زړهٔ د هر بنهٔ کړې په تش ست وه

ما ئې ناز په بقا ډېر که نن خبر شوم
دا هنګام د وصال لوئې بې مروت وه

په راتلهٔ په تلهٔ ئې لړې لا رغه نهٔ وه
نهٔ ئې ماڅخه قرار نهٔ ئې مهلت وه

که هجران په ما ستم کا سـزاوار یم
د وصال قدر مې نهٔ دې چه فرصت وه

په دنیا ې حال د وارو تجربـه کـړ
د هجران لمبه سقر وصل جنت وه

نن که دم د هجر کړم فائده ې نشته
رائې بل کړ هغه اور چه ئې په نیت وه

ډېر بهتر ساعت هغه وه په دنیا کښې
چه له یاره استغنا زما منت وه

هجری تا چه د یار وصل ته هوس کـړ
دا فساد به هجران کا ددهٔ عادت وه

یادګیرنه :- داغزل په چاپ نسخه کښې نشته .

## (۱۷۱)

مکړهٔ مکړه لما مهٔ د ړومه دلداره | لما مکړه ډارکوه له کردِ کماره
ما سرمد له اوړه مهٔ لره واله ے | ماهٔ ! وړ و کوم کلام همه د ډاره
سر ومال ودِل ماواړه وماه وړکړهٔ | لاهم کله لما صلح کا طراره
ماهٔ ماه له مهره ورک که د مهره | مسک دِهم طرّو کړه سهل له مداره
هر آدم کهٔ دِ له مهره مهر سوری کا | اسم ورک وو د عالمو له قطاره

---

له په دعوٰ بے نقطه غزلو کښے هجری د اکرمؔ تخلص کوی . اکرم یو خو بے نقطه تخلص دے بل د اشرف هم معنیٰ دے . په بے نقطه شاعرئ کښے اکرمؔ هم د اشرف خان هجری د تخلص تصدیق چه د اشرف خان هجری د فارسی دغه بے نقطه قصیدے د الفاظو کیږی . کوم چه د ذکر شو ے قصیدے په سر داسے تحریر دی " قصیده بے نقطه دے ئے په دکن کښے هیچا جواب اونکړ غالباً چه د کابل په صوبه کړے کښے ئے جواب اونهٔ کا ."

بناغلے عقاب خټک په " تاریخ خټک " کښے هم اکرمؔ په بے نقطه شاعرئ کښے د اشرف خان هجری تخلص ګڼړی او د بناغلی حبیب الله رفیع هم دغه خیال دے او لکه چه بناغلی رفیع ته علم وو ، چه زهٔ لګیا یم دوباره په اشرف خان هجری کارکوم ، نو هغوئ هم په دے خیال دا خبره زما له غوږه تیره کړه . چه د دیوان په مقدمه یا چرته حاشیه کښے پرے رڼړا د اچولے شی . ځکه چه د اشرف خان هجری د دیوان په وړومبی اشاعت کښے ماسهواً اکرمؔ پرته د هجری نه کوم بل شاعر شودلے دے . د بناغلی رفیع شکر ګزار یم .

دوه ګوټې دِ هم واصل کړهٔ له احمره
هم دِ وصل کړهٔ له مهره دواړه ماره
دم له دمه صدونک کاره ملاکا
اکرّم کم ۲کهه دَدهر له اسراره

## (۱۷۲)

مکړه مکړه دا ردا له مهره دوی کړه
دا واله دِل دِ ما هم کله مسرور کړه
کله کله دا محسود دمهر واکړه
دُعا ګوماهَ واله دهر سحور کړه
دګل ملک لره هاله دیومه له ګویه
صدونک واله عدم هاله صدور کړه
له ودوده دوی هرګویهٔ هم الم وو
دل ئے اوس دماه له وصله همه سُور کړه
دِما دل دِ اوی دمهر واړه اوسه
اوس له مهره هم واله کاله معمور کړه
صدونک کسه مداح دماه دموی وو
کله مور ملاله ماه سمه لور کړه

ماه کهٔ دَو ملاله مهره کا اکرّمه!
ګوره ګوره له هوسه ماهَ هوی کړه

## (۱۷۳)

مُردهٔ دل دِ حیات مومی له گفتاره  دقالین اودهٔ پرے جل کړی بیداره

بادشاهان په مال وملک متکبر دی  بخیل حُسن تهٔ غره له شهرياره

ځیګر په داغ رنګین ګل لاله شهٔ  تل حسره وۓ ادب ستاله رخساره

ننداره دباغ کوی برقعه په سر کړی  چه ګُل بوئ په دماغ صاف لګی یکباره

شمشاد سروه دِ له قدره نه خجل دی  زرکه لاده شرمنده ستاله رفتاره

مشکی زلفو دِ سونا کړه منفعله  په لکئ ۓ ګجک پتا له ددهٔ ماره

په نخوت طاؤس کړ په اوس دِ وسوهٔ  تش صورت په تېره ناست دمخ له ناره

نسیم ستا دتنه بوئ په چمن تېر کا  غنچه فم په درود وا کا بے اختیاره

حنارنګ دشونډو رنګ سراسیمه کړی  لاس دنسی کله پښے ګوره ددارهٔ

کهٔ مقصود ۓ ستا دپوزنته نهٔ وی  مرغلرے به رانغلے له بنجاره

دخوبئ خبر دِ مرچرے روشن شهٔ  په هوس دِ لعل راغے له کوهساره

مخ دبدر مهر نمر اوربل فلک شهٔ  په شماره دستوری زیب کوی بیشماره

کړن پهول دِ مشابهه له سرو پائۓ دی  دسیس پهول په دیل وردی څو قطاره

دتیکے څلئ دسته نکه میزان دے  له یاقوته دعالم په زړهٔ افګاره

که زینت دمخلوقات همه محضور کړم  واړه ميخ ددلبرانو تر سنګاره

چه عاشق معشوق په داشوق پیدا کړے  خدایه! بیائۓ بیلوے دڅهٔ دپاره؟

دبهشت حورے که لږ ددی په رنګ وے  بناسته به چا بوے له دے دیاره

یوه شپه ختک په خوب لیده په خوابنے
لاتر اوسه ۓ ګل بوئ څی له کناره

## (۱۷۴)

په عاشق دِ سنګینه زړهٔ مهربان شه — په وصال ئې خراب ملک دزړهٔ ودان شه
نه نه مهٔ کړه چه دِ تیغ آلوده نهٔ شي — هجره ته ئې په کشتی یا رته ضمان شه
کهٔ زما په مرګ راضي ئې تاوان نشته — توره اُونسه په لاس کښې راروان شه
چه همیش بوسه دسر په بها پلور ئې — د بنانګشت دبدب دِ دیر لږ دګمان شه
په دا مونو کښې ئې څوزړونه پراته وي — په پنجه دِ دَباد تاوُ دزلفو وران شه
چه په لار دعشق څوک څئ جریده بنهٔ وي — طمطراق درسم ورک هم ئې سامان شه

چه ئې قدر دوصال درته معلوم کړو
هجری خوش په عذابونو دهجران شه

## (۱۷۵)

غشیٔ وُلی دزیبا بنړو له کیشه[1] — بنهٔ سرې په جور وژني کافر کیشه
په خندا ئې راته وې سینه دِ اولم — ما په طوره دتش ست کړه ورته پیشه
جفا خوئ په نګاه هسې رنګ زخمي کړه — چه ئې مثل په غبلبل کړه بلکه بیشه
ما فریاد له درده اوکړو وئې دم شه — عاشقي په دِ اوس ګرمه شي درویشه
ته چه ځان شوې نشې وجفا سته — په دا لار دِ ځهٔ غرض چه راته ایشه

[1] دا ټول غزل په چاپ نسخه کښې نشته

تور دا سختے بلاشته هاله به څهٔ کړے؟
تهٔ چه اوس ژړاکوے له یوه ریشه
ماوے نور هجری لازم که ژړا وُکا
که په سرئے نکوے اره یا تیشه

(۱۷۶)

ن ښایوه دلبره شوه راپیشه
په زینت د څوارلسم ترماښتے بیشه

ماوے یوس به راعطا کړے که سر درکړم
وے ئے سر دِ هومره نهٔ ارزی درویشه

ماوے زړهٔ مے ستاله مینے صبر نهٔ کا
وے ئے ځکه تل خالی نهٔ وی له ریشه

ماوے کله به گل بوئے کړم ستا د وصل
وے ئے مه کړه دا رجا محال اندیشه

ماوے ډیر عمر مے تیر په دا امید کینے
وے ئے عشق هسے آسان کله وی ایشه

ماوے اوس به دِله جوړه شاه خبر کړم
وے ئے کاشکے چیله پنبه وهے په تیشه

ماوے څهٔ دغم ساعت ووچه مئین شوم
مبرّا ئے کړم مطلق له یار وخویشه

وے ئے ته ئے لا دا اندوه کړے خبر نهٔ ئے
عشاق زوړ دمینے اوبا سی له کیشه

په ازل چه ویش کیدهٔ د نیک و بد د
هجری یو وړ خپل نصیب له یوه ویشه

له دا غزل په چاپ نسخه کینے نشته

## (۱۷۷)

د حسرت په اور سره ډک همه ګوګل شهٔ — په لمبه کښې ئې کباب خرګاه د دل شهٔ
ما د راز فکر ونه کړل په ډاډ د عمر — کهٔ مې مخ په آئینه کړو موسم بل شهٔ
نمر د عمر سم له شرقه ظاهر نهٔ وو — بیا د غرهٔ په سر ولاړ په ډوبېدل شهٔ
د شباب سبزه پرون همه تازه وه — د پیرۍ خزان ئې نن په رژېدل شهٔ
د ځوانۍ د حسن ښهر به تاراج کا — چه لښکر ئې د زړوالي په نښتل شهٔ
د فنا خزان برېتونه ورسته مړ وي — چه زرغون د زمانې په ریاض ګل شهٔ
د مراد امید پرون وو حاصل نهٔ شهٔ — نن به څهٔ طمع کوم کاروان په ښنل شهٔ
توجه مې پکار نهٔ کا تل وُده وي — دا زوے مړے بخت بنګی که اصل مل شهٔ
یا د سلام را کړو د یار خروس د عیش — پَر د زړهٔ په سروهي په بانګ ویُل شهٔ
صبره کله به کاکل د مراد دوړ کړے — د رجا دیوار کُهنه په نړېدل شهٔ
نور به څهٔ اوږده آرزو کوے خټکه! — د ځل عمر نهال کوره په ختل شهٔ

سپیدی عینِ کمال پسې زوال دے
هجرؔی عمر وداع کا په جار وتل شهٔ

# (۱۷۸)

هغه زوے د نیسان راغله چمن ته
چه بلبلو ئے بلا کړه ودیدن ته

لکه وُرکے داختر رنګینه پوش دے
د باور په سترګو اوګوره ګلشن ته

دعشق غم ئے نتیجه څنے حاصل کړه
کاش بلبل کتلے نهٔ وے دګل تن ته

کهٔ په خار دهجر غوږ شهٔ سزاوار دے
عندلیب چه لاس کاوه دګل دامن ته

دمراد خوشی بلبل سرکړے نهٔ وی
چه خزان ئے آتش پریباسی خرمن ته

پس له کاله یو ګز ر په ریاض کاندی
بلبل څکه تل په څیس ګوری سوسن ته

زنبق رخت دسفر جوړ کړ روانیږی
وافه! عرض د بدا وکړه یاسمن ته

شیرین عمر به بلبل په مرګ بدل کا
کهٔ دګل ورق ئے څوک راوړی کفن ته

عندلیب دعشق په کار تر قطب تیر دے
پیغور څکه په دافن کاندی کوهکن ته

دمراد نسیم کجا بیړیٔ لاهو شوه
ګوندے ورسی څمک دیار وطن ته

هغه دم بلبل په اوښ دهجران داغ شهٔ
چه پرے نهٔ وته وفا دګلو من ته

دهجری دزړهٔ غنچه په خندا ګل شی
چه قاصد له روهٔ راشی دکن ته

## (١٧٩)

د چمن اولاده عیـــد مو مبارک شـــه
دا عشرت مو یو په زړه بلکه تک شه

رنګا رنګ لباس مو واخست له حمله
تر فدا د بلبلانو مرود ملک شه

د زوال خزان کهٔ بیا په ریاض راشي
تو ئے په مزکه نحس ستوري د فلک شه

د هزار حسن زړهٔ لوټ د هزار ننهٔ کړي
په مدد ګلا به تهٔ شتاب کمک شه

هر چه ئي د باغ په سیر تغافل کا
د غم لاس لئه چوکان زړهٔ ئے پهټک شه

ګرُیه! تهٔ چه د طوطا په ځائے بنیوه کړے
په سینه د برابر غیبي ټوپک شه

غماز یار له روان زمانه قصد شه
مخا مخ ئے په فال بد مرغه شریک شه

رقیب تل په بنو مینو حسد کاندي
په ځیګر ئے د بلا ناوکي لک شه

داوینا په سرود بیا وایه مطربه
چه تر نام د یار فدا هجرّي خټک شه

## (١٨٠)

چمن بیا ځوان شهٔ زلمیو مبارک شــــه
د هرګل ترمخ ئے ځار هجری خټک شــه

نن موسم د نائے وچنګ او د رباب دے
د پیالے دلیو یار نول د سبزک شه

نن که نیت د یلتون کا په دوو میتنو
زر نادم په صے نیت کبود فلک شه

یار مے لاړ دے په سفر خیر ئے غواړم
نګهبان ئے د آسمان واړه ملک شــه

چه حسد په وصال کا د بشو میتنو
په شدید عذاب اخته غماز مردک شه

تل په ګفت د غماز مالـباسی بولی
له خاطره د بیرون بیهوده شک شه

دیار زړهٔ له یاره بد په بد ویل کا
د رقیب قدر لا هیڅ تر ذارهٔ کک شه

ستا خبرے چه ما واوریدے په غوږو
ترے قربان قند و شکرے داټک شه

تریانه پورے ئے زړکه مسخره ده
تر زبان ئے صدقه ګویا شارک شــه

چه په بد نظر څوک یار د هجری ګوری
هزار غشی ئے د غم په ځیګر لک شه

## (۱۸۱)

چه ئې نه مخ له ازله په بهبود وه
د نبیٓ دیدن مخوته کله سود وه

تا تېر کله د نیکانو پند پرے وکړه ... ابوجهل که فرعون او که نمرود وه
کاف ونون ئې د قدرت په ژبه اووے ... نو رهمه خلق ئې امر ته موجود وه
لا ماله ئې بخرے وُکښے په کتاب کښے ... چه نه اسم د آدم نه ئې وجود وه
عنایت واړه د خدائے چه ئې په چا کا ... له ازل د یوشقی صفي مسعود وه
دم چالارے ئې بیلے هغه دم کړے ... چه نه نوم د نضا را نه دجهود وه
که خواهش د قمنا نه وے یقین اوکړه ... یو سرے به نه ترسا نه به یهود وه
چه اولاد د یوه پلار که ئې رضا وے ... مسلمان به د آدم همه جنود وه
زهٔ په څه شکل د احمدؐ مدحه بیان کړم ... چه شرف ته ئې دېرلن چرخ کبود وه
نوم ئې ځکه محمدؐ احمدؐ محمودؐ شه ... چه منصب ئې ازلی مقام محمود وه

چه مجرّی ئې د احمدؐ حلقه بگوش کړو
له ازله پرے ډېر مهر د معبود وه

۱ کُن ۲ دا شعر په قلمي نسخه کښې نشته .

(۱۸۲)

چه سبا پرے حمله اوکړه زما سخ شهٔ
برهنه ئې له نقابه راته مخ شهٔ

همٔې زلفې په بنهٔ مخ باندے خورې شوے | هم پيدا په بنهٔ روش چاه د زنخ شهٔ
زړهٔ په څهٔ د عشق له سيله کناره کړم | چه دلوئې درياب په مخکښې لکه لنخ شهٔ
په خندا خندا ئې يار وصل زما سئے | په رقيب همه توده اور د دوزخ شهٔ
پرون قهر خبرو کړ چه مينه مهٔ کړه | نن ئې مخ غماز کاندی راته سخ شهٔ
ما د شير په غوغا شانهٔ کړه و يار ته | يا تو نن د مسے تورے پيښو يخ شهٔ

هجری د ير شکر کوه په تا لازم دی
چه غماز ئې لکه چې له دره پخ شهٔ

(۱۸۳)

ماوے زړهٔ! د شباب وار مثال په څهٔ وه
و ے ئې لاړ په يوه مخ د سيل اوبهٔ وه

نور به رانشی هرگز اُميد ئې مهٔ کړه | شيرين عمر د هوس کهٔ هر څو بنهٔ وه
دوصال د خوښئ دور هسے تير شهٔ | واړه ناز په صفه مخ د خوب ليدهٔ وه
ژاړه ژاړه زړهٔ! د وصل دور ژاړه | چه ئې د عمر سور نهٔ ئې ورندهٔ وه
ما چه وار د هجر اوليد باور اوکړه | نهٔ ئې حد د طول پيدا نهٔ د سارهٔ وه

د ذړهٔ کورے همے هجر دیاړ اوسو
ما وے اوړ دیړامئ په وُچ وابنهٔ وه

هغه یارکه په ملک غواړم نهٔ ئے مومم
چه مجلس ئے بامزه ترهر خوابهٔ وه

څنے هسے ملوکان موت تراب کړل
چه بدن ئے همه پیښ لکه شودهٔ وه

بناښته عمر هغه نوبت ئے تیرشهٔ
هر نفس چه ئے هوس دلوئے وادهٔ وه

عیش نشته په دنیا همه ارمان دے
بنده نن په حال خبر اول ودهٔ وه

ما کنړه نهال د عمر چه محکم دے
کهٔ مے خُیر نظر پرے اوکړو په خانهٔ وه

هر ساعت چه په هجری ددوړ پیښ شهٔ
ګړندے د باد په مخ سکه اوړهٔ وه

---

یادګیرنه

دا غزل په قلمی نسخه کښے نشته

# (۱۸۴)

ما وے ذرۀ د شباب وار مثال په څـۀ وۀ
وے ئے لاړ په یوه مخ د سیل اوبـۀ وۀ

نور به رانشی هرګز امید ئے مه کړه
شیرین عمر د هوس کۀ هر څو بنۀ وۀ

د وصال د خوښئ دوره هسے تېر شـۀ
واړۀ ناز په هغه مخ د خوب لیدۀ وۀ

ژاړه ژاړه ذرۀ د وصل دوره غواړه
چه ئے نۀ د عمر سور نۀ ئے اوږدۀ وۀ

ما چه وار د هجر اولیـد باور اوکړه
نۀ ئے حد د طول پیدا نۀ ئے سارۀ وۀ

د ذرۀ کورے دیار هجر هسے اوسـۀ
ما وے اوس د بدا مے په اوج واپشۀ وۀ

هغه یار که په ملک غواړم نۀ ئے مومم
چه مجلس ئے بامزه تر هر خوانه وۀ

څنګ هسے ملوکان موت تراب کړۀ
چه بدن ئے همه سپین لکه شودۀ وۀ

بناسته عمر هغه نوبت ئے تېر شـۀ
هر نفس چه ئے هوس د لوئے وادۀ وۀ

عیش نشته په دنیا همه ارمان دے
بنده نن په حال خبر اول اودۀ وۀ

ما کاږه نهال د عمر چه محکم دے
کۀ مے خبر نظر پر وکړ په خاتۀ وۀ

هر ساعت چه په هجری د دور پیښ شـۀ
ګرند ے دباد په مخ سکه اورۀ وۀ

یادګیرنه :- دا غزل چاپ نسخه کښے نشته ۔

## (۱۸۵)

هېڅ خبر نهٔ يم له خپله سر نوشته
چه مې چار په ازل نيکه ده کهٔ زشته

دېر جدل ازل بدل نهٔ کا واعظه
په ناحق مې امتناع کړې له کنشته

بوالبشر چه ئې رب خاوره له اوله
چل صباح ئې د قدرت په لاس آغشته

هر نهان علم چه وه پرې ئې خبر کړو
قضا بيا وئې خارج کړو له بهشته

د هر رنځ دارو ممکن وي په دنيا کښې
بې قضا چه ئې علاج د بدل نشته

هر ملوک چه پوخ محل په هوس جوړ کا
د گردون دور ئې آخر کا خښته خښته

چه ئې ناز په دولت کړو همه بې عذره
مرگ جدا کړل د اطلسو له بالښته

په ارمان حياتي کا څو مسافر شي
هر پسر چه مور پېدا کا په دا دښته

په دوران د جفا تخم دې کرې
د وفا خوشه ئې مهٔ غواړه له کښته

نور همه زخمونه سهل دي هجري سته
هجره ته په جهان مه وې بد سرشته

۱ دا شعر په چاپي نسخه کې نشته .

## (۱۸۶)

ځکې ځکې یو ځل بیا داشـــه اقباله
رامعلوم شهٔ قدر ستا پس له زواله

چا چه ستا په دوړ لاف دیکرنګئ کړ
ستا په منړه منړه ټول راټخه لاړهٔ
هغه لاف ولاف چه تل کوه یاړانو
چه سوګند به ئے له مینے تل پما کړو
التفات مے څهٔ نو بیا په لوړ اوکړ
ما امید دیاریٔ دیر که له یارانو
هر ګز مهٔ غواړه وفا له زمانیـــو
کهٔ وفا غواړے له خلقه اول ورشـه
ځو امید د وفا پرے نکړے له خلقه
فرزندان ئے واړه مورغوږ کاذب دی

نن منکر دی له همه واړه مقاله
هیڅ آشنا آشنا ئی اونهٔ کړه تر کاله
یو قرار ئے خالی نهٔ وو له لحظا لـه
اوس صلاح راسره نهٔ کا بے قتاله
چه لاګرم شی یاران تر هغه حاله
ولے نهٔ وه د هیڅ یار یاری بے ماله
داوینا ده تر محالـو لا محاله
په غوښتلو کړه پیدا دبازو جاله
امان نشته د دے فکر له جنجاله
محفوظ نهٔ لری یو زوئے له انتقاله

هجری لورئے د قرار په جهان نشـــته
عرض وطول ئے واړه ډک وی له کشاله

## (۱۸۷)

لکه ما ته شوه درازه د احـــزان شـــپه
وېجا ته پېښه مه شه هسې شان شـــپه

زړه آخر به نهایت شي همت لوړ کړه
که لېده په سترګو نشي د پایان شپه

که هر څو عالم په توره خیمه ېټ کا
وړې بې سحره نه وي په جهان شپه

البته به نمر د وصل جلوه ګر شي
په چا کله پاينده وي د هجران شپه

هغه ورځ چه دخوشئ وه یا تو نه شوه
تل به هم قائمه نه وي دارمان شپه

برابه مې دیار یاد په زړه غالب شه
نهایت مې کړه د ډېرو په سیلاب شپه

په احوال مې دلسوزي سپهر نه کا
تل روښنه کړم دچشمو په باران شپه

په خوب زړه مې هسې کارکا لکه مانګه
چه رایاده کړم د وصل د زمان شپه

د رنځوړ له درده کله څوک خبر وي
چه په څه عذاب تېرېږي په حیران شپه

په کومک به دبخت هاله باور اوکړم
که مې اوشي یو ځل بیا په کوڅې دجان شپه

نن حیات څه حیات نه، حیات هغه وو
چه به روڼه شوه دروه په ګلستان شپه

بنا دي څوک په وسیله داندوه مومي
په ناحق دا تم په غم کړم ګذران شپه

بیهوده حرص باطل مګر نصیب وي
چه موجوده شي دګلو په دامان شپه

دهجران له تاوه آه که هجري وکا
تور لوګې به ئې کا تل په هندوستان شپه

## (۱۸۸)

زۀ به څرنګ برخوردار شمه له بخته
چه په شا وینم آشنا راته یک لخته

ډېر خرېږ مې د یارۍ په دکان اوکړو
ولې سود ئې څۀ ولاړ نشۀ له رخته

ما به باغ د وصال نۀ کوت کۀ خبر وے
چه ئې ګل د هجران خېژی له درخته

لکه پرې کا هجر زړۀ د پردیسیانو
هسې غوخ نۀ کا چړو رنګ توره آهنخته

د عشق شاه مې د خاطر ولایت خپل کړو
اوس درخت تړی د کوچ صبر د وخته

په سر بر د حسن دومره دماغ مۀ کړه
ډېرې لاړې په ارمان له دغه تخته

څو دار و راځی د وصل کوږه څه شی
په هجری شوه بیماری د هجر سخته

(١٨٩)

د ښۀ مخ ضیاء دِ پس کړۀ مهر و ماه

د عنبر و نرخ دِ خټې یو که تباه

اوږدې زلفې دِ کو تیږې شوې په تاوِکښې
اوس به لوټې عمر دِ یار کانسې کوتاه

سپک نظر عاشق ته مۀ ګوره مزری دی
خو و تا ته ذرۀ عاجز کړو تر روباه

ولایت دِ حُسن ستا دې مبارک شه
ته امیره په بنائست جُونه سپاه

نو به ته متناهي کړې د نوره خۀ دی
چې نصیب دِ په ازل کړو خدائې ګدا ه

ثوبې مخ بنده لیده لې دا دُعا کا
چې دائم اُوسې قائم د زیب په ګاه

د خدمت تجویزې ذۀ په نوره نۀ کړم
مګر لورو وی د قیصر د مستې ذاه

یو نظر آشنا را او بنایه سپهره!
نور مې تن کړه برابر د خس په راه

په روښانه ورځ به نمر په لوګی پټ شی
کۀ ذۀ او کړم د هجران له دُوکه آه

هجري خو به ستا د تن قیصر ولاړ روی
هجران اوسه په آتش د ذړۀ خرګاه

یادګېرنه:- د دوېم شعر نه ترجمه په قلمي نسخه کښې نشته .

(۱۹۰)

چا به ورنهٔ کړو دا زیب په دېر مرسته
په نامی نام ئې نامزد شهٔ له الستهٔ[1]

دقضا کارکن ئې قد هسې موزون کړو — چه ترحده نه لړ هسکه شوه نهٔ پسته
چه شکست ئې تل شکست کوی د زړونو — دا رسې بویه د زلفینو له شکسته
زهٔ د ګل مینې ګشان بوتم چمن ته — تر مالا اول په باغ وه مئې پرسته
له مستئ هسې غلطانه په یا نه تله — چه ئې ګوته تښه پاتو شوه له شسته
بس چه مسته کړه مستئ د مستو مسته — د مستئ باده ئې اولویده له دسته
څار تولې پنجې پرانتې له شوقه — د بلبل په صوت ئې لاس وهل له قسته
ما د ګل تماشه کړه بشر سره اولیده — ګل ئې خن شهٔ د بنهٔ مخ له بند و بسته
ګېې دا هنګامه جوړه په ریاض شی — بلبل مست ګلونه مست صمه مسته
نن دا اړو لره رادړومئ زمانیو — دا بنادی په ریاض تل نهٔ وی پیوسته
زهٔ خټک له یاره بیل دنیا به څهٔ کړم — کهٔ دائم وی په دا روغ وګړی نسته

هجری یو ګذار دیار په کوڅه ورشه
چه پرې اوکړې له هوسه یو څو جسته

---

[1] اَلَستُ بِرَبِّکُمْ ، قَالُو بَلٰی
آیا نهٔ یم رب ستا سو وُ ئې وئیل هو ئې رب زمونږ (سوره الاعراف)

## (۱۹۱)

برابه مخ راپیدا د هغهٔ ګُل شهٔ
له فروغه ئې فروغ د چراغ ګُل شهٔ

دآهوؤ له سترګې چه ئې خبر شوم
بیاسي راته ښکاره سُکر د مل شهٔ

ستا د زلفو خوشبوئ هسې شرمنده کړه
چه وطن د سرو کمرو د سُنبل شهٔ

مخ دِ هومره ګُل په اور د حسن اوُسهٔ
قرار نهٔ کا په ریاض جوګی راول شهٔ

زړه په اور د هجر دومره تنده ورتیږی
د آشنا له درده زړهٔ د ګُل بلبل شهٔ

د اوربل ښکر دِ مات شهٔ له دې یو
له جبینه ځکه لاړ مات په کاکل شهٔ

ګُل که هر څو مُطرا خوشبو بالهٔ شی
یو بس دِ په بینی په ګوش ئې ګُل شهٔ

یاربه کله هومره دور وو له ختکه!
تر دا میان ئې فتنه ګوئ بلا چغل شهٔ

نیرنګی د جهان ګوره ئې زمانیو
د هجری مکان دکن جان په کابل شهٔ

# (۱۹۲)

چه دکښېښول په بنهٔ مخ د زلفو وُلونه
مهیا دِ خوږو زړو ته کړل ځېلونه

په دا دوړ مېره تهٔ ئ د ګلرنګو
په اختر مے واړه اولیدل تېولونه

ماته ماته په لاړ ولے ځ د دلبرے
ګوندِ زور دِ په تن کا د سر شالونه

ستا په رنګ نون د ګُل په ریاض نښته
را معلوم دی یو په یو د باغ ګلونه

سر و مال ئ تر یوه نګاه فدا شه
که راضي دے یار په سر یا په مالونه

هر خاطر قباد د وخت دِ خسروی کا
چه په چاه د ذقن بند دی لکه غلونه

توګے تل د اوړ په سر باندے شمله وی
په رُخسار ئ هغه شان ګڼړه خالونه

د بڼو په تیرئ دړے وړے مات کا
کهٔ هر څو مضبوط د صبر وی ځېلونه

نازکی ئ د قن زیاته تر هغهٔ ده
چه ئ وصف څوک ادا کا په کالونه

یو صفت ئ د خوبئ نمانه وار وه
په څو رنګه ئ عالم کاندی قبولونه

تل قدم د ګل په سر کېږدی له قصده
کوږ ئ نهٔ کا یو ذرۍ د کوشو پلونه

مجروح څو لار غنه دِ اوکړه په دکن کښے
په کاتهٔ جونو زلئ کړهٔ اوربلونه

## (۱۹۳)

کهٔ دُ حسن جونو نهٔ دی ـــ لے ګنجونــه
نهٔ به کیں د رنځنه وو نهٔ قینجونه

نوئے مخ هغه ګنجوږ د صباحت د ـــ ے
پر ے مارانو حُکه کړی دی پیچونه

ما چه زړهٔ ویوهٔ ورکړهٔ دبل څهٔ دی
په یوهٔ ښهر دوه چالیدهٔ راجونه

ن ئے سترګے په رنجوکړے ماربه وُکا
ترکو غم لره په آس اوکړهٔ سرجونه

دبنائست جوړه ئے نهٔ وینم به دور
د غبرا مے څلوږ اوغښتهٔ ګنجونه

بیائے زلفے هسے تاؤکړے په عنادو
لکه جنګ ته مُهیا د زنګ فوځونه

د بنائست په نردئے واړه منقش دی
شش ویک مهر دچرخ دو شش برجونه

ګوره کله به ناظر په هغه مخ شم
چه مے کړے د زړهٔ کاسے کوچونه

اول ورشه مخ ئے اوګوره ناصحه
پس وماته وعظ کړه په مخرجونه

هر چه ګډ دعشق په ډب رهائے نشته
یم ئے بس دسمندر لری موجونه

دریغه نهٔ وے هیڅ بلا د ګلرخانو
به بدل ئے تل د روغو وی رنځونه

په دکن د نیره سینه شوه مهجوره
په ګذشت به ئے هائے کاندی زلمی جونه

## (۱۹۴)

په ښۀ مخ دې خندې نۀ کړې کجکونه
بل پیدا دې کړۀ مینو ته مرګونه

مجالس ښخه مه کا نڼۍ یار انو
د قیامت دلارې آخا نړۍ برګونه

ډ مې و اخستۀ صندل په سر دې کبنل کا
آماده دې کړۀ د موت دستکونه

دبنالست پوله دې چرته ده عالمه
نۀ باور پرې کماني شۀ نۀ شکونه

پیوسته دې د مخ نک رګه پیدا دی
هر یو رګ دې بها کیږي په لکونه

نمرد هاله دعوه کاندي ستاله مخه
کۀ له تنه کا پیدا سیاه رګونه

خو به ډیر سره جدا کا بې خنجره
بیا به سر دکوتو یون کاندي کلکونه

د سالولمبه دې تیره ترسا کړه
نۀ به ښهر سالم پریږدي نۀ ډاګونه

زۀ به ښکل روغ و تم د شاه له کوڅه
چه صدها دې په درمږۀ بلکه زرګونه

چه روښن دکبنلیو جونو په مخ نۀ وي
ویرانه ګنړه هغه ودان ملکونه

هجري آس د شوق تیز د یار په لار که
په ارمان دې هجر اوشلول تانګونه

# (۱۵۱)

چه اُمید په دا د عمر کوے لواړه
ته به څو پاتے زندۀ په دا اوجاړه

په دالار چه ته ولاړ وګرے تېر شهٔ
البته به پسے درومے پاتو واړه

لږ اثر د تېرو غوارم موندهٔ نهٔ شی
قافله ئے په کوم لوُرد ه چرته لاړه

دیار انو په سینو مانړۍ بنا شوے
ستا په څو وی د صورت مانړۍ ولاړه

په عبرت د همساله له مرګه نهٔ کا
هغه ذرهٔ ګودرے بوله بلکه تراړه

هېڅ وفا د دهر شته په کار ئے څېر شه
په لاس ومره د عقل سترګے دواړه

هغه شاه چه ئے سریر باد په هوا وړهٔ
ځان ئے خلاص نهٔ کړو د دهر له لتاړه

کهٔ وفا د دهر غواړے یو ځل ورشه
شو ئے لوټ کړه په لارهٔ د وچه کاړه

په دا یاد عمر به هاله ارمان اوکړے
چه د مرګ هاتی د کبر دی په نس داړه

تل په مزکه مردان وی سین په دزر کا
کهٔ مشتاق د سرېتوبا ئے وئے غواړه

دا فنا مکان دغم بنادی ئے نشته
کهٔ بنادی د بقا غواړے ژاړه ژاړه

په تور زړهٔ به اثر اوکاندی پند ونه
کهٔ باران کاتره نرمه له پهاړه

هر سړے چه په اسرار د کار خبر شهٔ
دا طلسو خوښوی کمبله شاړه

دهجران باد ئے وهی خوبه ئے مات کا
د هجري خاطر باریک د ګل تر ساړه

## (۱۹۶)

کۀ هر څو مې د خاطر مينه پېدا ده
د هستۍ بهره يې نۀ وينم فنا ده

ستا ديدن په زما څشکل روزي شي — نۀ هيش په دور زۀ، نۀ ستا بقا ده
د فرقت خونه پُنبه د باد په مخ شه — له جفائې په عالم کړه غوغا ده
دوه مېن به سره يو ځې نږدې په رب کو — د بقا انديشه مۀ کړه ستا روا ده
چه هوس په يارۍ کا لاهه ئې څۀ ده — يو نفس په ديدن خوښ تل ئې ژړا ده
ځکه غم د يار کوم قرار مې نشته — ما ليدلې د ګردون ډېره جفا ده
ما و يار به نهايت مې جدا کا — لکه زۀ مجنون لګا چېرې ليلى ده
موږ به نشي په ګُشتن د عاشقانو — چه ئې سعد په نس ډوب بله اسما ده
هر ستم چه فلک کا چاره مې نشته — په قيامت لمن د دۀ منګل زما ده
د فرقت له باره تن لکه لېندۀ شوم — لا په څۀ شي د وصال طمع سبا ده
يو ځل سترګې رُوبرو په مخ کړه — چه مې خونه د خاطر پېې تالا ده
صفا بوئ له کومه نن په دګن راغې — سر په سرئې مشک و ناب همه هوا ده
باد د يار د زلفو شم راوړي له دوۀ — کۀ اصلي نامه عطار و کړه وا ده

هجري! تا په شکايت هجر بدنام کړو
آشنائي اوږ لګوي څوره بلا ده

## (۱۹۷)

نن غوغا وینم په دهٔ قیام قیامت شهٔ
کهٔ څرګند ئې په کوڅه د سام قامت شهٔ

سور لباس ئې پوشیده بسرې لونې
کهٔ لمبه له سقفه ځې په بام آفت شهٔ

د شاه حاوسین ونون ئې مشاهد که
هر دو کف ئې په دعا لام ئې قامت شهٔ

واله زړونه پرنده خال ئې دانه دے
په پیښن مخ ئې د طرو دام قباحت شهٔ

بیدلان د غم په ډب کښې سکرات کا
محبوسان ئې شکر کا چه رام راحت شهٔ

حدیقه ئې له قدمه رنګینه شوه
مخلد ئې په ګلزار وام صباغت شهٔ

روے تل کا په ډوډو سترګو بے زلله
په خرام ئې د نیلي قام نزاکت شهٔ

سور پېزوان ئې مسرت کا په لبانو
سمندر غونډے ئې اور مدام راحت شهٔ

دوه حرفې بوسه مې غوښته معایت شوم
په ساري جهان شهره دام اقالت شهٔ

ځکه تل سرونه ډېرنته ئې کښېښوه
مکافې ئې بس نام په نیابت شهٔ

چه د عشق سوروئې تاخت راپاندِ اوکړو
تر شکیب مې اول ننګ و نام غارت شهٔ

د وصال په امل تل هجري تازه دے
کهٔ یو دم د هجر ډېر تر عام طالت شهٔ

## (۱۹۸)

برابه مې په زړهٔ میشت غم د دلبر وه
نهٔ شکی شوم په ماښام نهٔ ئې سحر وه

نهٔ مې ژغ د ښپیلو وارویدهٔ په غوږو
نهٔ پیدا د ځرګ ندا نهٔ ئې اثر وه

لا مې غم په دې غم کړو ژغ ئې هیر شو
بیا ئې تن زما د اّه په وینو تر وه

په شمار ده ئې اسم یو چه غم بالهٔ شي
تعینات ورسره ډیر خوره ښکې وه

دستم لاس ئې دراز کړو په هر لوري
عیش و صبر ئې تالا کړو زور ئې ډېر وه

د شتاب سبق مې واخست له نسیمه
تر قدم مې د عشق لانه ئې سم وغر وه

په طلب مې د غیرا چولونه طې کړل
د فکرت سرنګ مې سر په بحر و بر وه

موافق رفیق مې بل دلاره نهٔ وه
مګر عشق وه مقدم چه مې رهبر وه

چه اثر دیار پیدا په جهان نشهٔ
کیفیت مې د احوال همه بتر وه

نهایت ئې مې خبر کند د زړهٔ په سر کړهٔ
بنده خکه لرې تلهٔ چه بې خبر وه

یار دَ دهٔ ته مقرب تر شهرګ و نو
هجري څرته بیهوده په عالم سر وه

---

ﮯ وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِیْدِ ه

او مونږ نژدے یو دې یو انسان وته له شهرګ نه (سورهٔ قٓ)

## (۱۹۹)

د شفق سرخي په شام ده څونا ګونه
کهٔ کاکل دِ په خیره کړهٔ ولونه ولونه

تاشانه څکه په څنړیو باندے کښېنوه
چه جلاد کړے دواله زړونو ښهرونه

چه دِ لاس په کښته وښکاوهٔ په زلفو
د زنخ په چاه دِ پټ شول همه زړونه

لګه لږ په ناز دې وے فهم بویه
لاندے نهٔ کړے ترقدم د مخ مارونه

په دارو شاهده ته نے د ګلرنګو
نورے ځونه په چا وے کا تینځونه

شکرستاله سترګو مېڅو دروېزه کړهٔ
هر نګاه دِ څکه تل کاندي خونونه

دوه مرجان دِ د هجّري په لبو کښېږدي
په تش ټپ دِ مسته نهٔ کاندي جنګونه

(۲۰۰)

بربر راغې هغه یار چه مې پکار وه
له جهانه مې پکار هم دغه یار وه

که یو دم یې تغافل وې په ما تله کښې — تار پتار مې ورپسې د عمر تار وه
چه مشعل یې سویدا شه د رخسار — په هر لوری ګریزان د هجر نار وه
چه یې لاس زما امیل د ورمیږ کړه — له نشاطه مې د سترګو ډر نثار وه
هلته یاد د ګذشته غمونو هیڅ نه — سر له سره وار د بوس او د کنار وه
نن سحر یې په چمن کښې خوشګوئي کړه — عندلیب په ګلو ناست په سروسار وه
ښه نوید یې پما کړو چه یار د راغې — چه مې دِل مښن په یار تر نوبهار وه
د مه غوږ د رباب تاؤ زخم ترې کیږده — بې له یاره نه سرود همه بیکار وه

له نظره یې هجري هومره کیفي شه
چه تر مستو مفرح وې هوښیار وه

## (۲۰۱)

ښهٔ زمان وه د شباب لکه باد تېر شهٔ
خراب دل مې په افسوس له غمه زېر شهٔ

شباب خوږ حاکم عامل زما په تن وه
په تغير ئې عمل واړه په بل پېر شهٔ

بيا به وقت د کوډکئ پېره ونهٔ کا
بس ارمان مې په خاطر لکه شمشېر شهٔ

غمه ځکه مې ګرېوان د نشاط نسے
چه خبر د مئين نهٔ رادی و مي ډېر شهٔ

دياړ توم مې په زبان غم ئې خفه کړم
لکه وړکے د مکتب سبق مې هېر شهٔ

هجران شهٔ غيبي آفت دے په کوګل کښې
چه اثر ئې په زخمونو وينتهٔ دښن شهٔ

داړه غم راته د وښاړ کړو رقيبانو
نوبهار د وصال لږ هجر ئې ډېر شهٔ

ډېر فراق مې نظر کم کړو له چشمانو
که غبار د فرقتونو دے انډهېر شهٔ

زهٔ خټک په بچا خوږ دے کړم ځلے سترګے
تورګوار پکښې مېښته نوم ئې جبر شهٔ

د طوطا خصال له کړي موندهٔ نهٔ شي
شرشم هم زردي لري د ګل په څېر شهٔ

زندګي ئې تل محنت منزل ئې خاوړے
دُنيا سجن د بلا سرے پرے ګېر شهٔ

هغه خوږ رياض څرګند کړے وخټک ته
چه په لاړ ئې توم د خاوړو شکر ډېر شهٔ

## (۲۰۲)

پہ خاطر ے ستا د هجر بیماری دہ
پہ راتلہ تغافل مہ کوہ زاری دہ

دروغ نہ وایم بیشکہ باور اوکړہ
حیاتي پہ دور بےیارہ خواري دہ

نهایت ئے بهادر د هجران پیٹے کا
چہ پہ آس د وصل کړے چا سواري دہ

د دوزخ عذاب چہ گورم پہ کتاب کښے
نمونہ ئے دیارانو ویزاري دہ

چہ عذاب شتاب ے اولیدل د هجر
پہ دُنیا کښے عبث چار وائي یاري دہ

لما طمع د هوش مہ لرہ عاقلہ!
اندیشہ ے د فرقت پہ زړہ جاري دہ

زما زړہ بہ نور صاحب د عیش نہ شي
چہ د عشق پہ نرد ئے کړے جواري دہ

د ښادئ طمع هرگز لہ دهرہ مہ کړہ
دا آرزو پہ ژبہ الیښي د مزري دہ

ماهرگز ښادي پہ خوب لیدلے نہ دہ
څو د زړہ پہ سر ے کوزہ هوښیاري دہ

گذشتہ عمر ے خیال کہ خوب لیدہ وو
همہ شپہ ے پہ دا فکر بیداري دہ

هغہ دور هغہ وار څہ شہ یاربہ!
پہ دا کار حیراني ډیرہ د هجري دہ

پہ عشوہ ئے غلط مہ شہ شوهر وزوي
دنیا ښځہ روئے ناوے بازاري دہ

دا نازکہ ناز پہ داد د فدک نہ کا
چہ پیشہ ئے همیش مکر و عیاري دہ

اے هجري! نہ چہ لذت د قرار غواړے
پہ دا ورانہ دُنیا چرتہ قراري دہ

## (٢٠٣)

دیار نوم چه تل په ژبه گرځومه
په عزیز نامه ئې داد د زړهٔ کومه

صبوري له هسې یاره ده مشکله
چه یو دم ئې بې دیدنه نهٔ پاتمه

تو به څشکل په دروغ کوم واعظه
چه د زړهٔ روغه له صبره نهٔ وینمه

طبیبا تو لاس په سر کړو له علاجه
چه د رنځ دوا ئې نشته خو به مرمه

واله زړهٔ ئې په دلبرو پسې درومي
خپل ئې نهٔ کا په نوښ بله مهدمه

تورې زلفې په مشکي دانو زنځي کړه
حاجت نشته چه دانې پرې وکړمه

نهایت به دیوانه په دانو راشي
ستا د زلفو په زنځیر به ئې تړمه

د هوس په سینه لاهو اثر ئې نشته
د نشان طلب ئې کړم کهٔ ئې هومه

عشق له شش جهته بت په هوا کرځي
نهٔ د رتق له بنده څشکله دوزمه

هر زمان ئې په همت طلب ته جوړیم
د رفتن طاقت ئې نه چه پسې ځمه

د حیات رمق ئې شته ځکه بیخود ده
لکه پروت زخمي هوسې لتې وهمه

حیات سل ځله فدا له هسې موته
چه د خپل صنم په یاد خپسر شندمه

نور بدن ئې رعیت قلب ئې پادشاه دے
نا صلاح چارې چه کا ځکه ئې وړمه

ماهجري په دا فتوې دے باور کړے
چه خاکي قفس ته شا کړم هست به شمه

(۲۰۸)

چاپېره زلفینې دام مخ دِ گلزار شـــهٔ
ما گلونو ته کتل زړهٔ گرفتار شـــهٔ

کافوري گلونه وزوول د غیبـــه ... تا چه شاخ د مشکو قهرکهٔ بهار شهٔ
ته د ناز رفتار کوې په چمن گرزــــې ... په ادب منگلې وا د رته چنار شهٔ
گل کېنــه د عمر تنگئ وکړه د برے ... چه دِ شم لره اخست په کف دِ خار شهٔ
آئینه دِ دو برو همه گلزار کړه ... مخ دِ گل ثاني د گل تړے نمودار شهٔ
د سرو زرو خوشبوئ له اصــله نهٔ وه ... تر صندلو بُوئ اخلي چند نړ هار شهٔ
سرهٔ لعلونه د حجاب په مرغـلرو ... گوهره مینه د بسېر پرے گهربار شهٔ
نازک وُچولے دِ چین ویـنم ملو کے ... په جبین دِ گونډے وزن د خال بار شهٔ
ستا د مخ په لمبه زړهٔ محبت اُوسوم ... ستگیں دِ بلاق کړهٔ ځکه په نار شهٔ
زما منع ستا له لوریه ده مشکله ... منصور کړه یوه خبره څوپه وار شهٔ

راشه څهٔ خو د ختک له حاله زده کړه
چه بے تاے عمر څرنگه دشوار شـــهٔ

---

ل په قلمي او چاپ دواړو نسخو کښے دا شعر دا سے دے ـ

د سرو زرو خوشبوئ له اصله نهٔ وه ... تر صندل بوی د آخلي چند نړ هار شـــهٔ

(۲۰۵)

دهوس کشت ے سپهر پائمال کهٔ
مسافت ئې د حیات رانته وبال کهٔ

د بنادئ اصل گویا په جهان نهٔ وی — سراسر ئې هسې دک په استملال کهٔ
یو ذره د عیش غواړم مونده نهٔ شی — خس و خاک ے د دنیا همه غربال کهٔ
ذره په کوم سند هوس غواړی چا مله — چه په غم ئې ملک د دوړ مالامال کهٔ
هغه شے چه پرورش مومی له دهره — له وفا ئې مختلف د ځان په حال کهٔ
نهٔ بنائست په گلرخانو مقامی دے — نهٔ لږ په وفا پوهه خوئ د اقبال کهٔ
هیڅ وعده ئې له آشنا تر سره نهٔ وی — د خوبانو دود ئې هم بخیل مثال کهٔ
چه په حال ئې محرم نهٔ دے پسے زغلی — چه له مکره ئې خبر ځائې جبال کهٔ
آزاده چه په دنیا غواړے هغه دے — چه تر شائې جب د جاه میل دمال کهٔ
ما ختک چه شتاب اولیدهٔ د هجر — په ناحق ے مومره مخز په وصال کهٔ

اے هجری په داړ د دهر غره مهٔ شه
هر دولت لره ئې جوړ د غم زوال کهٔ

یادگیرنه :- دا اشعار په چاپ نسخه کښے نشته

## (۲۰۶)

معرّا دله ردا همال دهورکهٔ
کوه وسم دهوی همه دسک داورکهٔ

سردِ ماله شُهاهسک حاسده کوىه
ماه موی دِ له همه دیهه دما کورکهٔ
دما دل داوس واله کهٔ دوّه آهوو
ورلره دمَس معن دطر ۂوی کهٔ
وه وه لعل ودَرخهٔ کم کهٔ دلاله وو
کلالودِکم دِما دِ عمرسورکهٔ
وسمه لا دماه دوه مده مطراکا
لما کم دماه هلالو دمرگ ورورکهٔ
هاها هم لره سما له مَه سوا کهم
مرد ملک دِ دما ۂک دهرله اور کهٔ

دال اول له ماهه دوی دِ دهر دود کهٔ
هاله سم ورلره هم دهمه لوی کهٔ

## (۲۰۷)

سوسنی خادرې په سر قمیص دِ سُورې کهٔ
پر دِ جوړې د زرکشتۍ ګُل و پستورې کهٔ

بل مطلب دِ په زړهٔ نهٔ دے درپوهیږم — زما سوړو لره دِ روغ د غم تنور کهٔ
تورې و چشمو دِ بیا نوے فتنه اوکړه — په نګاه ئے د زړهٔ ملک همه فتور کهٔ
د مخ خال دِ پرتیا زهٔ بل حبشین یم — هر نفس ئے په ما زار کله عاشورې کهٔ
په پلو به نور د مخ نهفته نهٔ کړے — مهر کله په پروفی چا مستورې کهٔ
تورو زلفو دِ داخل کهٔ په جوګیانو — هغه یارې چه په دولت ئے تل غرور کهٔ
لرے مهٔ شه دوشاله ستا له عذارو — زما تن ئے اوس سکارهٔ لکه د طور کهٔ
د بنا ګُست ژغ مے له اصله وه خته کهٔ — لا دِ نظم په ساری جهان مشهور کهٔ
لکه ته ئے مے شمار د حسن کړے په نظم — قیس کله مسے حال دیار مذکور کهٔ
که هر څو په آئینه کښے حُسن ګورم — حال ئے تا په نظم ښهٔ راته ظهور کهٔ
چه دائم ئے زما منع کړه لتا نه — په غضب مے سګ غماز له درهٔ دور کهٔ
دیر صفت چه مے تل تل کوے له مخ — داخله مخ مے په صله درته حضور کهٔ
ستا خاطر به تورې په هیڅ منور نهٔ شی — په انعام مے د بوسے ځکه مسرور کهٔ

هجری دیر دی شاعران په زمانه کښے
سا خو ستا شعر په وارو کښے منظور کهٔ

(۲۰۸)

په جبین د تیرو بیر د غم اوربل کړه
د زینت لمبې ئې هر چرته اوربل کړه

مهر و ماه، زهره، مریخ، مشتري والړه
په کمڅره کښې د موجود تیر د میکل کړه

د مخ ذره د همه زیب پخپل مکان کا
تر مخ پاسه د سیس پهول لکه زحل کړه

کړه په لوټ د واړو زړونو خبر نه ئې
سور یاقوت د له موتیو و لے مل کړه

د خوبئ په ملک هاله شوے مشهوره
چه مے نوم په عاشقئ خلق مثل کړه

د ربنتینو له قطاره د خارج شم
که هیڅ شے مے د جهان تر تا اول کړه

ستا بدل لکه ځان نشته بے بدل ئے
عزیز ځان کله هیڅا په څه بدل کړه

نهایت به ارمان ستا د وصل یوسم
که تر مخ د مخ بخوا بنکاره احسن کړه

عشق به کله ستا زما له زړه بیدرشي
چه خمیر مے د طینت خدائے په ازل کړه

په دربار د ستا هغه ربنتینے کرځي
چه تر شائے سر و مال د ملک زلل کړه

نوي ئې وے له بیانو مخالف شه
هغه خوب ذاتي عسل دائے حنظل کړه

نرګس تل کبر کاوه په زیب دستر کو
بنه چه نم ئې د بڼو په ناوک تل کړه

خوب به څه بے یاره کړم چه هجر غم ئے
په کټ مل سماسره ځان ئې کهمل کړه

په دیدن ئې اولا تر هغه شاد کړه
چه ژغ وشي خهک مرګ له یاره بیل کړه

---

۱- متیرو (ق - ن)

۲- د (شعر په ق - ن کښې نشته -

(۲۰۹)

راز مې هاله هویدا د عشق مذکور کړ
چه مې خوښ د لرګي سر لکه منصور کړ

هاں مژده د دار په سر روغه وکړیه
بل منصور ئې د دهٔ رنګ لره حضور کړ

نهفته راز چه مې واکهٔ جوبه ورشم
په دا جرم منصور سر د لرګي سور کړ

ژبه هاله پوشیده نه کړ پیدا اک
چه د عشق سپاه له داره جیش مقهور کړ

د زړهٔ ذیل مې ئې د غم له دسته اوخوت
د قضا کارکن په هسې شي مسرور کړ

ثو مې شاه د قناعت په سترګو اولید
د آز ګرګ ته مې تجویز د سګ ساجور کړ

د عشق جیش چه قائم د زړهٔ په سرشتهٔ
د غضب په تیغ ئې غوڅ سر د شعور کړ

په کوښه د لا یعقلو ځکه یون کړم
چه ئې سر زما د هوش له تنه دور کړ

هیڅ پروا ئې د ګردش له رنځه نهٔ کا
لوئې همت ځمک په چرخ هسې منصور کړ

فلک تل پس له ترخو د خوږو داد کا
نن ئې روغ په ما هجري نوې دستور کړ

## (۲۱۰)

داوالا دِ له دې ګاهه وَلے دورکۀ
د حاسد دِل دِله ګلو لا مسرور کۀ

هم د دهر والا واړه اوس همُوم کا
ماهه اِمل دِ دَدِل کله دا امور کۀ

کله مهر دِ دماله دِله ورکړ وو
داوالا دِ اوس دمهر لکه طور کۀ

لاهالله الم واله کړم د ماه سهر
ماه ردا له مهره دوس دل مے درهورکۀ

صد ولک واړه واه واه کوم دلدار ه
اوس دمهر له ماکه حاسد مرور کۀ

مهٔ کړه مهٔ کړه له حاسده وداد مهٔ کړه
دِما دِل دِ لکه اوس هسے محرور کۀ

دطروس دِ والا اکرم کس اوکړ
ماهه هاله دکل ملک لړه صدور کۀ

## (۲۱۱)

چه خوږ عمر ئے زما په نامه باد کۀ
هغه مخ راته خاطر په دکن یاد کۀ

نیمے شپے مے هسے ژغ وکه له دره ده
چه ودهٔ خلق مے ویښ هغه فریاد کۀ

هزار لارے مے ژړا کړے په مخ دوے
په دا فن مے تن مجنون غوندِ استاد کۀ

خوٹے زۀ په غم د هجر پائمال کړم
فلک کله هومره جور په فرهاد کۀ

چه لښکر د هجر نهٔ دے لامات کړے
زړهٔ مے ګوره چه قضا لکه فولاد کۀ

---

۱ کله (ق-ن) بے نقطه غزل

دیار تو م به مې په څهٔ وظیفه نهٔ وی — چه عشق داسبق زما د زړهٔ مراد کړهٔ
د وصال مخ به لا کله راپیدا کا — په امید مې همه عمر بې سودا کړهٔ
تر ساعت پخوا څوک نهٔ رسی مطلب ته — دهر کار یې مقرر دخت و میعاد کړهٔ

هجری خشکلا ژړا نهٔ کا ندی واعظه
چه له یاره نصیب لرې په هواد کړهٔ

## (۲۱۲)

په قدرت چه یې پیدا اول قلم کړهٔ
په زبان یې دهر چا نصیب رقم کړهٔ

ن نفقه بخرے نفس په نفس رسی — په قسمت دچا بنادی دچا یې غم کړهٔ
په جدل به ن هرګز دچالوے نشی — په رتبه چه ازلی رقم څوک کم کړهٔ
کوبن به نشی په حسد د حاسدانو — له ازله چه یې کار دهغو سم کړهٔ
مرګ بې وارهٔ لمن کله دچا نسی — و لې نهٔ پاتې یودم چه رزق یې تم کړهٔ
دقضا رضا خارج که له بهشته — په ګناه یې بیا لازم غریب آدم کړهٔ

هجری آه د زمانې له زخمه مهٔ کړه
رب فکار و ته پیرا عجب مرهم کړهٔ

## (۲۱۳)

چه اُمید مے ستا د وصل نن سبا کهٔ
شیرین عمر مے عبث په دا سـودا کهٔ

نن ئے غوارم په زاریو موندهٔ نهٔ شی
وقتِ[۱] د عیش مے د فرقت بشکر قضاکهٔ

د مقصود ثمر د بخت وُنے راسـکړ
په ناحق مے صورت سترے په ژړا کهٔ

په ازل چه دیارئ ونه خلقت شوه
خاصیت ئے د هجران ثمر پیـدا کهٔ

ما به خوړ ثمر د هجر بے گمانه
چه په باغ مے دیارئ نهال بنا کهٔ

هیڅ گناه د هجر نهٔ وینم یارانو
زړهٔ روا که دا فساد چه ئے آشنا کهٔ

نهایتِ[۲] ئے د هجران په توره غوځ کا
د چا زړهٔ چه ئے په بندهٔ څخ مبتلا کهٔ

هغه دم ئے د فرقت توبه توده کړه
چه د عشق بازار ئے گرم په دنیا کهٔ

هجری راز چا ته بیان نـکه د مینے
په کوخه ئے د آشنا خلقو رسوا کهٔ

---

۱ وقت د عیش د فرقت جیش قضا کهٔ
۲ هجرت
} ق-ن

# (۲۱م)

دوارہ شونډے دِ پہ خوند نکہ حلوا دی
نۀ غلط شوم ستا پہ سترګو چہ اولا دی

دوہ عارض دِ شا یہ وینم پہ سیبو
نہ بیشکہ دا دروغ ترے مصفا دی

دوہ آهو دآهو کلہ هومرہ زیب کا
صد هزار ځلہ ترے کینلے سترګے ستا دی

رنګ وبو دمشکو دِ یرکمے ئے نشتہ
وے ستا څنړیو تہ سهل ترګیاہ دی

سپین ګوهر دنمر پہ سرکۀ هرڅو زیب کا
دُر ولعل ستا مولا هغہ لالا دی

دوہ منګلو تہ دِ څرنګ نقرہ وایم
چہ پہ څو مرتبے سپین ترسپینولا دی

پہ کاغذ و بنہ ئے خوشخط مدونہ وینم
ترے دِ وروځے صد هزار ځلہ زیبا دی

دتیکے موتی دِ بل رنګہ زینت کا
بنا ئسته کہ هر څو ستوری دسما دی

ترهر څۀ هجری خوښ ئے کړی دلبرے
لہ ازلہ چہ نازل پہ دادنیا دی

## (۲۱۵)

همیشه فلک لیدهٔ لکه دریاب شی
شبانه قمرنما په ورځ آفتاب شی

په اسرار ئې ته خبر نهٔ ئې دلبره ماه و نمر ولې جلا په شنهٔ اقباب شی
هرصورت چه مخامخ شی ورته وګوره آئینه ئې د شبیهو قعر د آب شی
نهٔ به نوم د مهر وو نهٔ د مهتاب به د مخ شکل د سورج کله مهتاب شی
په سبزه د ریاض مخ هسې جلوه کا لکه مهر مه نما په شنه تالاب شی
په فلک کښې هاله وُکا پریووُنی ګرن پهول چه دِ له غوږو نه په تاب شی
د رستم لیندهٔ ګردون په اُوږه کیږدی غو تیا لې چه دِ برخیره تر نقاب شی
تل عشاق په جور وژنې خود پرستې صف بانړهٔ داوړی چړې چشم قصاب شی
نمر په شاخ د شګو واکا بهارونه چه دِ زلفې په عذارو پیچ و تاب شی

د زیور ډرې چه تاب وُکا مجبوره
شین فلک په شیشه ګلونه د سیماب شی

(۲۱۶)

چه په زړه دې ستا د شوق لمبه تاب شي
له مخه تاوه دې تن همه کباب شي

تل د زړه ښهر لوټي بدن ودګ وي — تعجب ستا د سوارۍ په شتاب شي
سره بناس ته هوس مه کوه دلبر ــ — آشفته به مضطرب لکه سيماب شي
نازک تن دِ همه روغ د ښينو زړو — و آتش ته مجال نهٔ لري سيم آب شي
توره زلفې شکسته کړې په رخسارو — لاله ګل مُستجلي تر مشک ناب شي
ځکه خاورې ستا دَ در په سترګو مږم — په رنځو روشني کله د خراب شي
ستا له تنه شَم سبا په چمن سرکا — دهن وا کا په درود غنچه ګلاب شي
له دوه سترګو د مستی پکښې نازله — بېهوده بد نام په خلقو کښې شراب شي
د وصال وينا هميش کړې په دروغه — بېوفا وعده د يار وته سراب شي
عاشقان دِ په ديدن پسې نوُلين ی — وسيله دې د حيات مل ورباب شي
آئينه فلک رتبه شي ستا له دسته — په خلوت کښې دې تماشائي مهتاب شي

هجري لا دې اوس د حُسن خلق سېزي
چه د ښتې په مقام بېسر نواب شي

## (۲۱۷)

په دُنیا د مغو زړۀ داسم کباب وي
چې اخته د بدخصلت یار په عذاب وي

تر دا سخت عذاب بل مه ګڼړه په دوړ
چې په نخره د چا یار مختلف داب وي

کامراني په دې جهان همغه سړی کا
چې یې یار په رضا جوړ وه په حساب وي

که حلوا کباب موجود وي په مجلس کښې
پیاله هم ورسره جوړه د شراب وي

زړه کلونه په ریاض کښې سلمانه وي
په آواز ورسره ملۀ چنګ ورباب وي

د اهمه به هومره زړۀ د چا خوښ نۀ کا
لکه خوښ د موافق یار په جواب وي

بندیوان یې هجري څوک په جهان مۀ شه
د بد یار صحبت د زړۀ د پښو طناب وي

## (۲۱۸)

د عاشق چه په وصال دیار نوبت وی
هغه دم ئے فراموش باغ د جنت وی

چه دځان په مخ ئے سترگے شی ثابتے
هیر له شوقه د مژگانو حرکت وی

دعشق جیش مے زړهٔ لاندے کړهٔ په جور
صبره تښته لکه غل کهٔ دِ فرصت وی

خماری سترگو ئے بے میو کیفی کړم
په رضا د هوښیارئ لما رخصت وی

دنگاه په تیغ ئے سر د توبے غوڅ کهٔ
تقوی ویر دځان کوه کهٔ دِ مهلت وی

ستا د مخ په بهار هسے بذله گوئے شم
لکه واف گویا دگلو په وصلت وی

یار دحور و هلته مهٔ کوه زاهده
چه آغاز دکښلیو جونو حکایت وی

دوصال خوارهٔ بهتر بدل ئے نشته
بدنا تار پسے فوځونه د فرقت وی

چه لړم د هجران نیش په پته کیږدی
نزدیکی ئے دچشمو خوب لره آفت وی

هجرخهٔ ریزه الماس وی په گوگل کښے
په رنځورئے هر ساعت نوے زحمت وی

چه عذاب ئے دهجران مشاهده کړهٔ
کهٔ ادب له اوره کاندی سلامت وی

دفرقت دداغ په خون هغه خبر دے
چه په وینوئے لاله غوندے لت پت وی

ماته غم همه دوخاره کړهٔ خپلے مینے
په ناحق مے له هجرانه شکایت وی

هجری هاله عدل غواړه له دلبره
کهٔ قصاب له مړونو کړے مروت وی

## (۲۱۹)

په هر ذرهٔ کښې چه کمال د محبت وی
همیشه ورسره مل رشک و غیرت وی

چه نظر په نوړ وکړې خو به هلاک شم | تر دا بل کله میئن وته زحمت وی
وی د تل مې په تل سکر زهٔ رسوا شوې | [illegible] د بل جهان وته رخصت وی
تاوې دل مې لتا مل دې خو به درشم | که حاصل مې له رقیبه لږ فرصت وی
په دا وې دِ مباهی کړم غم دِ مهٔ وه | تر معه دِ له موتا ز ما مهلت وی
په هر خم ئې د لاله پیاله لیدهٔ شی | چه دِ خنړې په رخسار وکت په کت وی
تهٔ قدم په ریاض بږ دې گُل دِ ثنا کا | تن په تن لکه قاریان په حرکت وی
یک نګه به لکه ناز عمر قضا کا | هر دلبر چه دِ له قده په جرأت وی
تهٔ چه یون له دیره کبره کړې په شین شین | غزال گړ په دیره خته د حیرت وی
کهٔ طوطا د بیان وار وی په غوږ ونو | په زبان به ئې بند ایلبنې د لکنت وی
توړ و چشمو د نرگسو یرقانی کړه | ز رغنه عصا په کف زیړې صورت وی
دلیده و خواهش دِ دیر لری ترحده | په ورو وړ و به طلب کاکهٔ ئې قوت وی
دسترنځونه څهٔ د ځان دوری ده | د جنت هوائې څهٔ د یار خلوت وی
بل عذاب به په دور نهٔ وینم یارا نو | مگر دوه میئن ولاړ چه په رحلت وی
له غوغا دِ ادب کا چه په زړهٔ روغ وی | د سر بازو همیش بخره ملامت وی

که خسرو په تاج وتخت لری نازونه — لږ الم د عشق شیدا لره دولت وی
چه[1] د عشق په کوڅه یون کا بے ریښتیه — قیس وار به دائمی یار د محنت وی
په یو دم به ئے قالب همه ذهب شی — چه نازل ئے په خاطر د عشق شوکت وی
تر عقیقو جواب سخت دے د دے شعر — شاعران د جواب کا که ئے قدرت وی

تل به تش له تنه روح په دکن گرځی
چه هجری غوندے ئے یار په ولدیت وی

(۲۲۰)

هغه دم چه یار لماسره قریب وی
که باد راشی په مجلس لکه رقیب وی

هر عاشق چه غوڅ په تیغ د محبت شی — په دا رو ئے حاجت کله د طبیب وی
په ښښتینی عاشق خون وی تر ښاتو — هغه جور چه پرے کړے ځیل حبیب وی
چه بازار په ریاض جوړ شی د گلو نو — د شاخ سر لکه ممبر بلبل خطیب وی
یو قدم هجران له یاره خرابی ده — زار په ځان دے د مغو چه دور جریب وی
د ښځه یار مجلس تر هر دولت بهتر دے — په دا کار هغه پوهیږی چه لبیب وی

هجری ته ځو تل هوس د ولایت کړے
و لے ستا ور ته محال مگر نصیب وی

---

[1] د دا شعر قلمی نسخه کښے نشته ـ

# (۲۲۱)

زړهٔ مې ډیر په دا وینا همیشه ښاد وی
چه ښادی دجهان گرد غم لکه باد وی

تیر ساعت ئې هیڅ تاثیر په خاطر نهٔ کا
لکه تېر وهم دخوب هومره په یاد وی

تهٔ چه هومره ناز د عمر په بقا کړې
گړیال نهٔ وینې هر دم چه په فریاد وی

نازو فخر په یاری د اقبال سهٔ کړه
دایم کله څوک له بخته په مراد وی

څوک به خهٔ په دا فانی ریاض خوشی کا
کهٔ یو گل ئې هویدا اغزی هشتا د وی

د فانی عیشونه هیڅ طفل فریب دی
دهر نوش سره نشتر وینم هفتاد وی

تهٔ هاله ژړا له بخته کړه درویشه
شهریار که همیشه صاحب د باد وی

په اسرار چه دجرس دشور پوهیږی
هغه کس به تل مشغول دکوچ په زاد وی

تر دېر به دهیڅا په کوشش نشی
هغه کار چه رسیدلې په میعاد وی

ې هجری چه ستا وئیل پرې تاثیر نهٔ کا
هغه زړهٔ به ډیر شدید لکه فولاد وی

## (٢٢٢)

دانا ځکه دجهان له کاره سـړد وی
چه الم ئې نکه یاد خوشی ئې ګرد وی

آه وسوزے باطل مهٔ ګڼړه درویشه
ستړګې ساله کړه ژړا چه زړهٔ په دړد وی

تخت وتاج ته په سرکوز دهمت نهٔ کا
چه په داد د دهر پوه آزاده مرد وی

هغه مرد چه په دغل سود وسودا کا
په مجلس چه دحق ورشی مخ ئې زرد وی

په حساب دفرزانه ترکهاؤ بتر دے
هر چه تل په فکر دوب دآب وخورد دی

ګرځنده ګردون چکښ سړے دانه شی
لا په مزکه قرار نه بدن ئې ارد وی

دا محال دی چه شاعر به په پښتو کښې
بل هجرؔی غونډے په فن دشعر فرد وی

## (٢٢٣)

چه دشک له زنګه پاک خاطر د مرد وی
ورته یو بستر دخوب صف د نبرد وی

په هیڅ شی به مزاحم بے امره نهٔ شې
لیابې کهٔ داجهان همه په درد وی

هغه مرد چه په مزاج د دهر پوه شو
په زحمت کښې هوس کاله هاره فرد وی

غم ښادي ښتاب د عمر هسې تېر کا
لکه باد موجونه کا په مخ د گرد وي

په دنیاکښې دا نامرد غوارې هغه دې
چه ئې زړه د بېوفا چار ونه سرد وي

د درم حاصل محال دې بې نصیبه
که وسعت د مزکې واړه سیم و زر وي

نهایت ئې د گردون گردش ابرې کا
زرکش محل د شاه که لاجورد وي

که باریک نظر په کار د جهان او کړې
کش مکش ئې بر جنس بازي د نرد وي

نراد بې عذره کشش د مهرو کاندي
په هر شان چه مهیا د تاس آورد وي

د هر چا په غاړه دور د نصیب وینم
په ستم ئې هورې بیائي چه ئې خورد وي

خوشحال ئې د همت نظر ته هیڅ دي
که هجري ته اماده د زړو جبر دوي

# (۲۲۴)

هر بشر چه سور د عقل په سمند وي
په تو دو سړو نه غم کا نه خورسند وي

هر ساعت د نیکو بد چه په چا ورشي
نه نیوه شي لکه باد نه په څه بند وي

د دنیا په چارو پوهه کله باور کا
مگر کا هغه جاهل چه خود پسند وي

هیڅ باور په حیات نه تو بسه آخله
څوک خبر نه وي هر گز چه عمر چند وي

بېهوده طمع نادان له سوده پس کا
دا نادل ته د همزولیو موت پند وي

سیه دل ته د بنو پند لکه گنهېر شي
بختور ته د بهبود خبرې قند وي

هجري هر چه پېس وي کا د تیکا نسو
په دوه داړه په بیشکه ارجمند وي

## (۲۲۵)

چه په کښلو دِ ازل هغه مردود وی
نصیحت کله د چا ورله سُود وی

نهٔ به نن د چا په بد وئیل کا بزهٔ شی | په قلم چه د ازل کښلی مسعود وی
تهٔ به هاله په دا قول باور اوکړې | کهٔ مذکور دِ آروېدې د نمرود وی
ترنصیب د حرص ډېر غواړې چا هله | تل دِ خکه په غم ګیلا د زړهٔ وجود وی
د خوشئ بنهر په هاله مسخرې کړې | کهٔ قانع په خشک وترشی چه موجود وی
د دنیا خلق دورنګ باور پرې نشته | په هغه لوری مخ سم کا چه مقصود وی
مولا تهٔ ئې د کرم په اوبو وینځې | د خاکی بنده کهٔ ډېر جُرم آلود وی
زهٔ د نفس تمنا ویستم له سوده | ته ئې مخ په هسې مخ کړه چه مې سُود وی

هجری زار د زمانې له زخمه مهٔ کړه
چه صابر شی په زحمت هغه محمود وی

یادګیرنه :- دا غزل په چاپ نسخه کښې نشته .

# (۲۲۶)

د هر چا چه په نصیب د بنا دئ واړ شي
کوس غریب ته بې موجبه ګنهګار شي

ګریبان به د سړی له جوړه بڅره کا
په آخرلی که حال له کوسه استفسار شي

مرګړی د رباب هاله زنده بوله
په صورت چه ئے ګویا دګړ ے تار شي

دم په دم ئے ګوشمالی کا بیګناهه
هرطرف چه د بنا دئ مجلس تیار شي

که له جوړه ئے غاړ وکا دربابونه
هر مطرب به په آخر هیزم د نار شي

هر هوس چه مخ د چا کره بنکاره کا
په بنو جونو ئے انګړ همه ګلزار شي

جونه چل موجونه کاندی په سندرو
په غضب دوه صورتونه ګرفتار شي

یوګړ ئے بیچاره کاندی دلبر سره
خله ئے هر نفس وصلے په بیزار شي

بل نصیب هومره چپیر ے د چا مه شه
نکه جوړ دده په ونو په رخسار شي

دکشت تخم په خله پیته خراره کم کا
د وګړی غل طوطا په تش چیغار شي

یو هزار جرمونه کا سزائے نه شي
په توره ئے بیګناهه بشر خوار شي

هره چار دجهان ګجه ده له عدله
چه لیدلے د چشمانو په انوار شي

دکردار اسرار ئے چا نه دے موندلے
مګر پس له مرګه اولیا دا اسرار شي

عدالت داهسے نه وی چه زاغ خاندی
بې موجبه په ازار هجری هزار شي

## (۲۲۷)

چه کله کله رایاد غـمه عـمر تېر شي
کهٔ د غم وزن دانه په زړهٔ مې سېر شي

شکر شکر په دا حال چه باقي نهٔ دے — هر زحمت د زمانے چه په چا وېر شي
گذشته دوړ کهٔ یاد شي سود ئے څهٔ دے — خو الم ئے د حسرت تر زړهٔ چاپېر شي
د گردون په دور څهٔ لره نازېږے — د هوس مدت ئے لږ الله وله ئے ډېر شي
هېڅ باور ئے په صورت د قرار نشته — دم په دم ئے مخ د چاړ و څېر په څېر شي
د وگړي کاړ په شپه گورمه نوړ وي — په سبا ئے نسق واړه په بل پېر شي
ما به څهٔ لره یاري کړه کهٔ خبر وے — چه عشرت د وصال زړ په هجر زېر شي
د وصال خوان کهٔ مے او لیدل عبث دي — له اوله ئے لذّت وروستو کنډېر شي
کهٔ سختي له د هره وینے ملال مشه — نیک و بد ئے په کاته گڼے تېر و بېر شي
سانگ له د هٔ مکر تعلیم کړه بازیگرو — مخ ئے صبے زرد چاړ و څېر په څېر شي
یو عجیب د گردون څېز هجرے نوم شهٔ — د وصال په دور سگ نړ را ته شېر شي

هجري کله په کاهش د ځان راضي دے
کشکے یاد د قضا عمر د زړهٔ هېر شي

# (۲۲۸)

چه تر زړهٔ مے د کُربت بښکر چا پیر شی
لار د آه کله خالی وی چه تر ے تیر شی

په خاطر مے دیار یاد هسے غالب شهٔ
په هر شی چه نظر کړم ددهٔ په څیر شی

غم د هجر هوش همه راتخله یو ولی
په زبان مے څکه ذکر تیرو بیر شی

د فرقت زهر مے نوش دوائے نشته
مګر سم ئے په تریاق د وصل زیر شی

چه مهجور دولت د وصل په کنار کا
واړه غم ئے د نعمت په شکر هیر شی

د قلزم موجونو اوویستم له روهه
په دا حال به مے کذ رته څرنګ پیر شی

میړے کله په لاسو اُووزی له ډیه
مګر مل مے په همت زیړے کشتیر شی

د سپهر دوړ طوُل د محن شپه کړه
لا به کله هویدا د مراد نمیر شی

نن فلک هسے غصّه کا له مهجوره
کهٔ ډے د نبات اوپری کنډیر شی

څوانئ ! بنهٔ وفا دِ اوکړله تراوسه
نن مے ستا له غدار ته فکر ډیر شی

نور د کوچ خبرے تهه کړه لکه څوک ے
رخت ترل دِ پما سخت لکه کلیر شی

د معنو په ناو ے غوځ د حجاب سیر کا
د هجری خاطر خنجر کله شمشیر شی

---

ئے حضرت کاکا صاحب دی چه څپل نوم ئے کستیر ګل وو ۔

## (۲۲۹)

په دا څودمه حیات کهٔ مې یاړ یاړ وی
په درست ښهر به همه زما کاړ کاړ وی

مهٔ کړه مهٔ کړه یوځل بیا په مراد راشه ستا دا هجر به مې څو په زړهٔ بار بار وی
مهٔ وې مهٔ وې راتعین د عشق غمونه تل د زړهٔ په سرولاړ ژغ ئې مارماروی
راشه راشه لتادړ و می قرار نشته په اطلس کښې ارځ بدم راته خارخار وی
ډېره ډېره بنا نشته ده لا تېرې کا چه ئې زلفې په ښهٔ مخ باندې تار تار وی
ځنې ځنې یاړ مجنون غونډې مجنون کا کهٔ د هر دلبر لیلیٰ غونډې هار هار وی
بیا بیا کله تېر ساعت مراجعت کا د هر کاړ محل ئې کښلي په وار وار وی
دوړ دور د ځوانئ چه وار ئې تېر شی نور کهٔ خوښ د ژړی کا همه عار عار وی
نشته نشته جواب ګوټې ددې وشیلو کهٔ شاعر په ګفتار صد هزار هزار وی
له ښوښو مېښو څوک چه فلک بیل کا په ژړا به د بنده غونډې زار زار وی

د هجری هغه یار ریار دې په دا وُرانه
چه قمیص ئې په سینه باندې لار لار وی

## (۲۳۰)

په اندوه ئې ولایت همیش فتور وی
هغه زړهٔ چه په آشنا پسې رنځور وی

خوب خندا به ئې په څوکېږی یارانو
هغه کس چه په حیات له یاره دور وی

کهٔ له یاره هجر سخت وایم باور کړه
تل واتهٔ د روح له تنه په ضرور وی

د دوزخ عذاب هوره د مردودانو
په دنیا د هغو برخه چه مهجور وی

شاید اوس ئې هجر نوم کړی زمانیو
له ازله به ئې نوم داور تنور وی

کهٔ د عشق له غشی ژاړمه عیب مکړه
تل زخمی آهو په دشتو کښې ترهور وی

زهٔ له یاره صبر څشکل کړم واعظه
قسمت نیک شهٔ په ازل نن ئې ظهور وی

د هغه یار له درباره صبر نهٔ شی
چه د زلفو حب د زړهٔ په ځپ ساجور وی

چه د عشق په لار ئې نهٔ وی رفتار کړے
کهٔ آسان ګڼړی دا کار هغه معذور وی

هجری تش صورت نصیب په دکن بند که
په خدمت ئې د یار زړهٔ دائم حضور وی

## (۲۳۱)

د دنیا خوښه د باد په مخ ایږے دی
پائښده چارے هورے دا مسخرے دی

دا زیبا څېرے چه وینے په دنیا کښے
نن خندا کا لکه ګل سبا خورے دی

زړه پرے مه تړه هرګز که هسک نه ئے
بوډ ئے نشته د فانی حباب دېرے دی

تش هوس یا خام امید یا توهم دے
یا په خوب کښے بے وفا ښکلے څېرے دی

چه بیدار شول په دا دار د مسافرو
د هغو سرته د مرګ توږے تېرے دی

ستا اصلی وطن هورے دے مسافره!
په ناحق د زړه دلے کړے اسرے دی

هغه واړه په ارمان له دنیا لاړه
چه ئے غخنه دلے پاتو منارے دی

ته له مرګه هومره دار په کوم سبب کړے
دا چه لاړه له دنیا همه هورے دی

بو العجب کار ونه هر نفس پیدا کا
د دے شنه سپهر هسے رنګ پیرے دی

چه په مهرے ماڼۍ چاته عطا کړے
له بیداده ئے هغه ماڼۍ پیسرے دی

هجری لورے د بنادئ په جهان نشته
هر طرف چه غوږ کوے د غم سورے دی

یادګېرنه:- دا شعر ونه په قلمی نسخه کښے نشته.

## (۲۳۴)

د فرقت په لوګی تور څکه بلبل وی
چه ګل لرې د چمن یار په سفر تلی وی

یو نفس ئے په دیدن باندے بنادی کا
په ناوک د هجران تل زخمی د ګل وی

لا ئے ځار عندلیب نهٔ وی تر عذاره
بیا په بل طرف روان لکه سائل وی

که بلبل جدا له ګله شواخون کا
له المه ئے طیور همه غافل وی

روغ بشر په حال خبر نهٔ وی د خوږو
له غریقه څهٔ خبر چه په ساحل وی

طراوت د سنبل مهٔ غواړه له نوره
که په رنګ بله ګیاه لکه سنبل وی

هر عاشق به قیس نشی باور اوکړه
نهٔ هر تن چه په ایروجوګی راول وی

نهٔ به کانړی همه زویه د خورشید وی
نهٔ به هر شاعر بنده غوندے کامل وی

هر زیبا بشر چه وینے په دنیا کښے
په ارمان له دهره ځی نوبت د بل وی

نهایت ئے بستر خاوړے د لحد شی
نو عروسه د ختن که د دوه جل وی

نهٔ به ناوے تل دماغ کا په دریو
نهٔ به دور تل د زلفو داوربل وی

دنیا ئ دولت مثال بهار ئے ګل دے
تیر به ژر ئے تر سبا څکه عاجل وی

د اقبال جفا له ګلو مساوی ده
چه اُمید ئے د جفا کاندی جاهل وی

د قبا بود به ئے لږ وی تر حبابه
که عدد د عمر دیر تر کاله سل وی

هر منعم چه سفر کاله دے جهانه
تر فقیر ئے بس داغونه په کوګل وی

هوښیار څکه هوس نهٔ کا واقبال ته
چه مهلت ئے نابقا د ګوټ تر ظل دے

فراغت په جهان کوم وصل د یار دے
بے وصاله عمر څهٔ همه مشکل وی

د حیات میوه دیدن د معشوقو
چه عنبر ئے بنده کړی د کاکل وی

غمزده هجری میګن په مسے سترګو
چه مستی ئے د کتو ډیره تر مل وی

## (۲۳۳)

سرې تل دِ تا په تل لکه حنظل شي
دم چا چه ګزید نه ستا په پل شي

په دربار دِ درمندونه د ګلو دي — لت خوره د جانانو پرې غوبل شي
شمّ به چا د ګلاب ورکه ستا د زلفو — هر سحر ئې پټوي نسیم د غل شي
شاطه چه دِ شانه په زلفو کیږدي — په دریم فلک زهره له غمه جل شي
ستا دستګو نمونه په دهر نشته — مګر لږ هغه شهند چه په سنبل شي
تر مصریٔ دِ غابښ تیرې په تبسم کا — د زړهٔ سر مې له تابشه سره بیل شي
آشفته زړونه روښن کا د یهودو — چه په تن دِ هویدا د سر و هیکل شي
د نوم یاد چه ئې په فکر تصور کړم — په زبان مې مزه تیره تر عسل شي
کهٔ په تن کښې عشق د زړهٔ د الماس نهٔ دې — په نزول ئې د مخ رنګ و لې بدل شي
اول نخښه د رښتیني عشق دغه ده — چه سړې له عقله کم کا مبدل شي

غمزده ختک په عید هغه زمان کا
کهٔ دیار د جوس خاوړې ئې منزل شي

## (۲۳۴)

پہ څوتو مہ باور مۀ کوه تہ ګان دی
قول وبول ئے صادق نۀ دی کاذبان دی

قول وبول دپښتانۀ داوبوځک دے
ځئے لا پہ جرګہ سپک تر کل افغان دی

دوطن مزکہ مثال پہ لویہ دشتہ
پښئے ګرئی ... روباه هم شغالان دی

پہ تقلید دحیانوم پہ ژبہ اخلی
ولے نۀ لری هیڅ شرم بے شرمان دی

حسن خیل لہ شرم وننګه خبر نۀ دی
... نس پہ حرص دوب لکہ ګاوان دی

میرداد خیل پہ کوم مذهب دی خبر نۀ یم
نۀ مسلم نۀ رافضی نۀ کافران دی

چہ امید کاندی وفا لہ غلامانو
هغہ واړه لا یعقل بے شعوران دی

یو دوړان پہ خوئی بتر ګنړه تر چینیو
بل دمان همہ لہ څیں ے قلتبان دی

دمان واړه وفا نۀ لری بیشکہ
دسرائے لاقچبہ مادرکسہ زنان دی

دا ہتوبرکہ غلول کا لکہ تروړے
دپاق زوئے همہ کوہتہ سکاف دی

چہ دائیم پہ وعدہ ثابت مردان ئے بولہ
هر چہ مکر، رایو ورنګ لری زنان دی

ما مجرّی چہ دجهان ننداره اوکړه
تر صادقو یو پہ سل کاذب پیدیان دی

## (۲۳۵)

طالبان د دنیا واړه کوډکان دی
بیهوده په مینه ډوب د این وآن دی

همیشه لکه طفلان هوس پرے کاندی — دنیوی اشیا گویا خاکی فیلان دی
خاکی فیل چه نفع نهٔ بخښی کوډک ته — په دا قول شاهد واړه عاقلان دی
ناگهانه بهٔ سرتوړه موت جدا کا — څنے پا توشی رختونه کهٔ اسپان دی
ژوندون کله وفا کا له زمانیو — په لږ عمر عبث گل غوندے خندان دی
ما چه این وآن د دوړ تجربه کړل — په قرار بهٔ باور مه کړه گذران دی
چه له مکره ئے خبر، ورته بهٔ شا کړه — په عشوه ئے فریفته همه نادان دی
ته چه فخر په مال کړے زمانه خاندی — واڼ تا غوندے تمکی ماچندان دی
راشه ناز د زمانے په یارئ مهٔ کړه — ځوے بهٔ تر تا بیولی په ارمان دی
هیڅ تاثیر د غافلانو په زړو نهٔ شی — عاقلانو ته عبرت سلف مردان دی
په ډول ډول په مزکه ځے شرم رد نشی — چه په نس کښے ئے پراته ستا بزرگان دی

هجری پښه په ادب بره چرے به وینی شی
تر قدم لاندے وُدهٔ همه یاران دی

## (۲۳۶)

پسران د آدم واړه غریبان دي
وارد شوي په دا دشته د فغان دي

نواله یې د آرام تناول نهٔ کړه — سرګشته دائم په دور د آسمان دي
حقیقت یې مشابهه په حال د ګوئې دے — د فلک دوړ ونه تل لکه چوګان دي
د قرار ساعت ونهٔ وینې په سترګو — په هر لور چه یې نصیب پسې روان دي
کیفیت یې د احوال پوشیده نهٔ دے — په دوه ملکه سرګشته مسافران دي
چه په مخ د مزکې شته زنده یې بولې — هغه چې تر مزکې لاندې مړګان دي
پرون راغلهٔ برهنه، برهنه لاړل — نن همه د تورو خاوړو په زندان دي
یوې نهٔ وړخهٔ حاصل د مال و ملکه — د دنیا په غرور واړه پښیمان دي
دا وګړي چه میلمه دي په جهان کښې — تن په تن په لمبو سوزي د هجران دي
هیڅ بشر به همیشه نهٔ وي مور زووئے — چه یې نهٔ په زړهٔ داغونه د ارمان دي
قباحت یې د حال ډیر بیان یې نشي — واړه غم لړه ژوولي آدمیان دي
څهٔ احوال چه دا منوال د زمانیو — هر چه فخر په دنیا کا ناغافلان دي
د جهان چارې سراب وفا یې نشته — په سراب عبث غلط لکه عطشان دي

هجري عمر د دولت باد بقا یې نشته
ناز هغه کاندي په دا چه کوډکان دي

(۲۳۷)

سراسر واړه له خیر مے کا ذبان دي
چه تول شوي د فاني دُنیا په خوان دي

داجهان مثال دکان دے دنیا تو
طالبان ئے بل څه نهٔ شمیره ځان دي

ځان هومره ښه کا په هغه لوري
څو نبات پراته په نس کښے د دُکان دي

هیڅ باور ئے په اظهار د اخلاص مکړه
په دروغ تیتمال کوي دښمے یاران دي

تل په ورځ د بنا دئ لاف د وفا کا ندي
چه یوه ذره سختي شي ګریزان دي

د زړهٔ سترګے په مطلب ظاهر بیاس کا
په سوګند ئے غرور مکوه تهکان دي

کهٔ د ښنهٔ آشنا له درده خبر دار وي
په زبان واقف هۓ هۓ په زړهٔ شادان دي

د صادق آشنا خواهش په جهان مهٔ کړه
پسران د زمان واړه د ورنګان دي

نهٔ یاري نهٔ آشنائي نهٔ محبت شته
په هُنر ئے حصول کا بنده د نان دي

دنیوي سود ئے مقصود لیسے ئے غواړي
نهٔ په لار د دین ثابت نهٔ کافران دي

نکه دوئ کا ځېله قصد دځان په ویو
یو په بل کله اخته هسے لیوان دي

د قیامت ورځ لا په سترګو لیدهٔ نشي
نن ے اولیده هغه همه دځان دي

ما هرګز راستي له چا لیدے نهٔ ده
برادر کهٔ یار و خویش کهٔ عزیزان دي

زهٔ هجري چه په اسرار دکار خبر شوم
په دنیا ارتیتے ډیرے ابر مردان دي

## (۲۳۸)

چه دِ مانګ لړئ دِجوړے په جاده شی
تر زینت ئے د فلک جاده ساده شی

صفا مخ دِ نزدے نهٔ ګورم له تر سه
چرے نهٔ د ښڼو سائے پرے خارهٔ شی

ستا د چشو سکر نهٔ بخښی سئین ته
کهٔ باده همیشه څښله په باده شی

هغه دم پما شیرین وی تر بهشت ته
چه مے خاوړے ستا د غولی وساده شی

کهٔ ساعت دِ له دربا ره کناره شم
راته سل زړه دوزخه آماده شی

د واعظ منع زما له کنبلیو څهٔ ده
لکه اوړ د پش له دمه زیاده شی

هغه زړهٔ چه مبتلا وی په دلبرو
نور ئے هیره د هوښیار و قاعده شی

نام ونګ ئے محبت له سره بیل کا
کهٔ اسیرئے په دامونو شهزاده شی

مشک ئے باد په تبرک چمن ته ور کا
چه یو خم دِ له زلفینو کشاده شی

د هجری شرف تر دا په جهان نشته
کهٔ تر څپ ئے مار د زلفو قلاده شی

# (۲۳۹)

مېږن ځکه ستاله دیده شودیده شي
چه یو ځائے بدرهلال ئے په دیده شي

صف بانړه دِ ناوکي وروځے کمانه
هر ناوک ئے په سینه د یار سیده شي

بے یارئ د آرائش خو نونه کامند ی
هائے توبه که وسمه هم برکشیده شي

د مشام کاسه به کان کا د عنبرو
که یو خم دِ له زلفینو بویده شي

که هر څو په نزاکت سروه نامی ده
په آسیب د باد کږه لکه لینده شي

که سایه د مارغهٔ اوشي ستا په ونه
څهٔ عجب که ئے له وزنه خمیده شي

په سیالئ دِ جرأت نهٔ کا ستاله قده
ګرڼه پینه به ئے په تېښ بریده شي

څوک به مدحه ستا د قد په څهٔ روش کا
په لیده ئے عقل خور د فهمیده شي

دسپین مخ تخته دِ مثے مُصفا ده
چه څهره د هر اشیا پکښے لیده شي

تهٔ مے پښه په سترګو کېږده زهٔ حفیظ کړم
خدائے دِ نهٔ کړه چه بانړه برخلیده شي

زیباۍ دجهان ختمه ستا په مخ ده
د لیلی نسخه نامه ده آرویده شي

په رتبه د عاشقئ ځنے فائق یم
که هر څو مینه د قیس ګوئیده شي

عنا دل که دا غزل په غوږو واروي
بندګان به د بنده زرخریده شي

چه هجري دِ په خامه د مخ صفت کښیني
په بیاض ئے سل بهاره رویده شي

# (۲۴۰)

مئین زړهٔ له هره خیــاله رمیــده شی
ورتــه سپــے د معشوقے پسندیده شی

پـه وفا جفا راضی دعاشق زړهٔ دے — دخپل یار جور ودهٔ ته حمیده شی
زهٔ لا نهٔ یم سرسری هغه مے یار دے — چه په وارو گل اندامو کښے چیده شی
دگلابو خوشبوئ شی بے وقـــاره — فایحه چه بے له تنه بوئیــدهٔ شی
له پرتوه ئے صنوف رنگینی اخــلی — تازه گل چه په چمن کښے روئیده شی
دلے هسے رنگ جنبش مهٔ کوه باده — گوره تار به ئے د زلفو پریــده شی
په تندی ئے دټیکے لړونه زیب کا — لا په تیره چه سندل ئے کشیده شی
تنه اوسوزی په اور دشاه دپاره — جو اهر په تنه جوړ کا خمیده شی
درُخسار واحمری ئے وه له اصله — که سُرخی ئے دیاقوت یکښے لیده شی
له پالنگه ئے گل لرے خــاد ســے — چرے نه چه په بدن ئے خلیده شی
چاپیره ئے په مخ خط دویښتو نشته — دا سایه د ابرویانو ئے دیده شی
کهٔ پټ وهم ئے بوسه د زنخ واخلم — په تنتر فکر ئے اخضره گزیده شی
ددنیا خوابدهٔ همه ترے پورے هیڅ دی — دسرو شونډو په لذّت چه مکیده شی
ده صلاله ئے په بدر کښے بینکاره دی — لکه سینهٔ خوشخط مدونه کشیده شی

چه دلبر دیار په راځي شي ملتفته رقیبان به ئې له ځایه خوږیده شي
که پلوله مخه لرې دیدن ورکا یو نګاه به ئې رقیبې زرخړیده شي

په صورت خټک بندی زړه ئې حورې
په هر لور چه کښلې ځونه شنیده شي

(۲۴۱)

تاؤ د مهر پوشیده هسې په زړه ځي
لکه اور چه د فانوس په لړمانه ځي

په دارو د طبیب کار نشته عاقله چه سرې وینې د ځیګر لکه اوبه ځي
چه بخار ئې عروج وکا و دماغ ته د لوګي ګذر په فم بیم ترلیمه ځي
بس فراق ئې چشمې د ګډ ریشان کا پیوسته ځکه ډُرّ ترهر بانړه ځي
د شکیب[1] طاقت عدم دوائې نشته په ارمان د وصال عمر په کاته ځي
هسې جوش د جدائې سینه ونه وکا چه نظر له تورو کسیو په مانه ځي
هر محنت[2] چه قضا پیښ کا صبر بویه همیشه کله مقام لکه اوره ځي
وله زړه بدن دیار په کوشه بند کړ لکه مست ساقي په هوډشه ځنه ځي

---

[1] شکست } ق - ن
[2] محن

دوه بازوئے په آتش د مینے اوسول  چه وزر د شاهین نهٔ وی ترو په څهٔ ځی
وعده گاه د دین صحن د بهشت دے  نا خبر به هغه باغ لره ساره ځی
د دیرو له یله اوره عذاب نشته  د آتش قهر په چوب لا په سکاره ځی

هجری څکه د معنو افسر په سر کړو
چه په دو د شعر بانده په وینته ځی

(۲۶۲)

د هجران له ویره غمه مے زړهٔ چوی
شکر شکر چه فانی دے تل به نهٔ وی

دردے غم وئیل موقوف بیان نے نشی  مگر هاله چه آشنا سره لیده څوی
نن د تیر ساعت ارمان فائده نشهٔ کا  کهٔ هزار ځله لاس کین دم په ور غوی
په د انیت فالونه گورم په کتاب کښے  چه وعده د وصال زر کهٔ په لار غهٔ وی
په حضور د کاتهٔ نوره ته گناه دے  تیمم هلته روغ نهٔ دے چه اوبهٔ وی
گردون کله مهر وٗ کا پس له یاسه  په دولت د وصال خوښ کا هجر سوی
د مژگانو حرکت کښه خلل دے  هغه دم چه بنو دلبر وته کاتهٔ وی
صفاق د توره زیاته په صیقل شی  کروره د عشق په آس دیار مانهٔ وی

هجری کاره په قضا او سپاره داده شه
بدل نهٔ کا دیر جدل په ازل شوی

# (۲۴۳)

په رخسار[1] دِ جبشی جوړئ جوړئ دی
بنده کړی ئې اصل په ناچارئ دی

په جهان دحُسن ته ئې تخت آرا یه
ترخوبئ پورې دِ ښځهٔ دملک پرئ دی

ستا دشونډو مثال څهٔ کړمه په دوړ
دلاله تر پاڼو ترې هم نرئ دی

د زینت چرې ته برې زما مرئ کړه
په مرئ دِ جوړ قطار خون مرئ دی

په حلقه د زړونو بند زړونه رها کا
عاشقان دِ په ځان شوی له یارئ دی

استغنا، جوړ خصلت دے دبُتانو
دعشاقو بخره آه ډیرې زارئ دی

د زینت سرېر د روه دلبرو چل کړو
پرستارے ئې دهنر همه مهرئ دی

دعنبرو رنګ وبو د زلفو مات کړو
ترسنبلو ډیرې تیرې په ترئ دی

چه ئې سترګې ستا په سترګو روبرو کړې
نور هغه همه برئ له هوښیارئ دی

په زحمت به د هجری هغه پوهېږی
چه دهجرے په سر تیرے خوارئ دی

---

[1] په رخسار دِ جبشی جوړه جوړئ دی (ق-ن)

# (۲۴۴)

تر ټیکه دِ لـــرو بر کـــله لالـــئ دی
نهٔ هغه د دُرو لړ نهٔ دا مچلئ دی

هر طرف ئے وروی په عاشـــقانــو — په لمن ئے اوېزاندے ګول بړ لئ دی
په سیمین ېڅو دِ لس ګټے لېدے شی — نزاکت وته ئے هیڅ د ګل کلئ دی
مشک عنبر دِ قدر نهٔ لری د څنړیو — نهٔ کافور دِ تاله تنه د سپالئ دی
دبېسر موتی دِ لوپ سته حرکت کا — لکه ټول رهزن جرګه دڅهٔ خلئ دی
سور بلاق د سُور مغل دجور ګل شهٔ — عاشقان خسته ګکړ ددان کائ دی
رنګ د بوئے ستاله مخه رعایت کړهٔ — د چمن سوسن ګلاب کهٔ چنبېلئ دی
داوُدی دِ حضور هسے رنګینه کړهٔ — ګویا ټول هنود راغلی د هولئ دی
تورے سترګے دِ زړهٔ ریبی په کتلو — په نظر کښے دِ ذاتی د جنګ ګولئ دی
کهٔ مئین ئے په حیات څنے ګوښه شـهٔ — د بهار په سیل د ه وی روحیلئ دی

هجری حسن په روهی بُتانو زیب کا
تر نسبت ئے د هند جُونه سهیلئ دی

(۲۴۵)

هغه زړهٔ چه په آشنا پسے خوږیږی
که صاحب ئے شهد خوری کاله خوږیږی

پوخ طبیب په هغه زخم دارُونه ږدی
چه ئے ړو د وینو سیل غونډے خوځیږی

دهر چا دحیات ورځے قلمی دی
هر ساعت چه گُذر کا عمر لنډیږی

خوبه ناز په عمر کړے فکر دکوچ کړه
گړیال مهٔ گڼړه یاوړه چه تل غږیږی

که هر څو ئے مخ دعیش په لوری سم کړم
زړهٔ مے ځکه تل غمونو ته کږیږی

پرونی یاران چه ماسره مجلس وو
نن ئے تن په تورو خاورو کښے دړیږی

دمجرّی ځیگر په نیش دهجر غوځ شهٔ
په هر لور ئے وینے موج کاندی بهیږی

## (۲۹۶)

د مجنون د مینې دوړ اوس قضا دے
نن زما له عشقه وایه وار زما دے

وار په وار له تیرو دوړ پیما راغے — ګاڼده نهٔ یم زهٔ خبر چه وار د چا دے
سل داغونه ئے په زړهٔ له دُنیا لاړه — فریدون که منوچهر که کسرا دے
کاروانونه په لارځی دایم ئے وینم — منزل ګاه د دنیا سرائے وطن اخرا دے
اوس صفت د یار له څه کړه مطربه! — زیبا تن په ګور کښے خاوړے دلیلا دے
لکه زهٔ د عشق په کاړ تر وامق تیر یم — یارے هم فائق په حسن تر عذرا دے
دارمان غشے به لګ په ځیګر یوسی — هر ژندهٔ چه پیدا شوے په دنیا دے
څوک چه ناز په وصال کا د بنو یارانو — د هجران عذاب هغهٔ لره پیدا دے
د وصال دوړ کهٔ خوږ د چا پرے څهٔ دی — چه ئے نهٔ پوهیږدی قرار هجر بلا دے
عاقبت به هجر واړه یاران بیل کا — هسے نه چه یو خټک غریب جدا دے

زهٔ هجري دایم هوس د خپل وطن کړم
بیجاپور کهٔ هر څو ښهٔ داورنګ شا دے

## (۲۷۴)

چه ئې سحر بولي څوک شعر زما دے
نوی دوارو شعر شعر سحر دا دے

که باوي دي په دانشي پاسه ګوده — زما غزل شاهد په دا دعوی دے
دا زما سحر حلال دے باور اوکړه — نور همه سحر حرام چه په دنیا دے
هسے نه چه سحر کړم په خپله ژبه — تر پښتو مے د فارسي شعر والا دے
ارزاني شعر مے اولیده په سترګو — دیر مے شعر هم لیدلے د مرزا دے
بو په بوئے حال همه را ته ظاهر شهٔ — هر افغان چه شعر کړے جا بجا دے
که هر څو مے سیال د شعر لیده نشي — ولے زهٔ طفلِ مکتب په در اُستاد دے
دلري د بري کار نشته په میان کښے — د بابا اشعار زما دا د بابا دے
که هزار شاخونه بیل اصل خو یو دے — په دا کار هغه پوهیږي چه دانا دے
پیدا اتش همه درب سبب مے دے دے — که بند که په دا ظاهر صورت جدا دے

زهٔ هجري په ئې د کوم حسن صفت کړم
ژغ ئې خود د خوبئ تیر تر سما دے

## (۲۷۸)

کهٔ په یار کښې تاثیر څهٔ نو د وفا وے
بایده وو چه په دوی لا همتا وے

یو زمان به ئے له دره جُدا نشوم — که قضا ے حمایت کار په رضا وے
فلک کله په مراد د چا گردش کا — گنړه تل زهٔ د مئین ، مئین زما وے
کشکے هومره مروّت سپهر وُکړے — چه د ا خو کاهه حیات په مدّعا وے
غم به هسے خیرگی په هیچا نهٔ کړه — کهٔ الم د یو بشر بل ته پیدا وے
جدائی په حیات مهٔ لیدلے په ستر گو — لا پیدا په دا خرابه نابینا وے

ماهجری به شکایت له هجره نهٔ کړهٔ
مُیسّر که په خواب وصل د آشنا وے

## (۲۴۹)

چه لیدهٔ شی په دیدو کښې عمر دا دے
بیګانه غوندے ګذر کا که آشنا دے

په یاری ئې باور مهٔ کوه تا دا ستــه ‌ ‌ ‌ وفا نهٔ لری په رب ګو لا بقا دے
که هر څو عمر عزیز بدل ئې نشته ‌ ‌ ‌ ولے نهٔ ارزی په جُو چه بے وفا دے
لا پرون مهر د عمر په مشرق وه ‌ ‌ ‌ نن لیدهٔ شی په مغرب په غرغرا دے
دا شتاب چه ماله عمره تجربه کړهٔ ‌ ‌ ‌ هسے تاؤ په تلهٔ کښې کله د سبا دے
نهایت یه جام د هجر تښا ول کا ‌ ‌ ‌ هر بشر چه پیدا شوے په دُنیا دے
په دا څو ګاهے بقا چه بے وفا ده ‌ ‌ ‌ هر چه قدر د یار نهٔ لری خطا دے
چه اول ترګل قدا پسے ئې چپ کا ‌ ‌ ‌ کهٔ په قدر د یار پوه ، واتی بورا دے

هجری فخر په یاریٔ د زمان مهٔ کړه
دا عمل په آخر بینو ناروا دے

## (٢٥٠١)

زړهٔ چه تل په ښکلي مخ پسې بلا کړې
په صورت مې همیشه وګې جفا کړې

محبت سکه چمن ته ئې بلبل شوې
همه تن له اوره ډک په داغونو يې

سمٌ الله وه پياله زهٔ نوشم له هجره
د يارئ په دکان ته سود وسودا کړې

نصيحت د ناصح نهٔ آروې سرکشه
په دلبرو پسې ځې خپله رضا کړې

جواسيس مې د سر سترګې خبر ورکا
په ښهٔ رخ پسې غوغوغمه برپا کړې

د صنم ستم نعم ګڼړې خوشحال شې
په دعائې ژبه پرانزې ثنا کړې

له بتانو که هزار جور وینه وینې
ته ئې لا په طلب کرم شې وفا کړې

کهٔ مذکور د بهشتونو درته کیږي
چه د ښکليو ذکر نهٔ وي ورته شا کړې

که فرقت د زهر وجام درکا په لبو
د وصال په طمع اوخاندې رجا کړې

شکايت په ناحق تل کړم له هجرانه
نا صلاح چارې له تا چه ئې بيا کړې

د هجري خاطره سخت ئې ترفو لاده
چه هميش د يار له غم سره وغا کړې

---

(ق ـ ن)

١ له سراسر مې په صورت داړه جفا کړې
٢ سم الله وده پياله زهٔ نوشم د هجر
٣ خبردار مې د سرسترګې خبر درکه
څوغمونه په ښهٔ مخ پسې برپا کړې
٤ خدمت ـ

## (۲۵۱)

چه آخر د دین کار ونه تر دنیا کړې
په ناپوهو ځان داخل په دا وینا کړې

ستا اصلي خونه هورې دلې دِ ځهٔ دی
چه فاني چارو ته هومره تمنا کړې

ته به څو اوسې ژوندهٔ په دا نابوده
چه دا هسې بیهوده اوږده رجا کړې

د هر څیز په محبت چه نن نازیږې
په ارمان به البته هغه ترشا کړې

راشه مهٔ کړه په فرصت فکر د ځان کړه
په تېروار قافلهٔ نښته که ژړا کړې

شیرین عمر دِ په تش هوس کهٔ تېر کهٔ
د توبې زیرمه به کله دا خرا کړې

د غفلت په خواب اوده یاران دِ لاړهٔ
ته د زاد له فکره پس د نس هوا کړې

ندامت حسرت به هاله در پیدا شي
چه په خط د خپل عمل سترګې بینا کړې

نن میلمه یې په دنیا ګانده به درې وې
هومره څهٔ په دا فاني پسې بلا کړې

دا حرص د دنیا هیڅ طلب د دین کا
ستا د رزق ضامن هغه چه یې پیدا کړې

د همزولو حال دِ اولیدهٔ په سترګو
ته به څو په دا فاني سود وسودا کړې

هجري ناز په عمر مهٔ کړه بې وفا دے
دا اُمید همه باطل چه د فردا کړے

یادګیرنه:- دا غزل په چاپي نسخه کښې نشته.

(۲۵۲)

طلب کا ږئ د نیکئ واړ د طلب دے
کهٔ دولت د پاک جنت د چا مطلب دے

دخاکی داړه میلمه په ادب اوسه — خاصیت د مسلمانهٔ شرم و ادب دے
داجهان خونه دغم هوس پرے مهٔ کړه — په عمل ئے خپل ځان وړاندے وړاندے طرب دے
دمراد بیړے د نهٔ پرینږدی گذر ته — چا پرے ئے کړزوی حرص د ډب دے
دخناس مکر کوے پکښے پرے نهٔ وُزے — ستا د طمعے آس هر کوره به جلب دے
تاثیر څکه په تانهٔ کا دا خبر ے — چه د مهر په زړهٔ کښلے د قصب دے

دهجری له کفر و شرکه بیزاری ده
امتی د پاک نبیٔ بنده د ربٌ دے

## (۲۵۳)

[illegible] ..ه ره عاشقه

په ګستاخ [illegible] ...ې

د [illegible] ..م عنیمت وو — که یې تل په دربار پروت لکه ګلاب وې

.. نه به یې بناګوټ وته مکن وو — کشکې نور یې د مخ مهر یا مهتاب وې

د بازار به یې د نور په جهان نه وو — په اور و که همیش پټ مخ د آفتاب وې

دیار مخ به هاله سره وو له خورشیده — که یې نور د بناګوټ منع په نقاب وې

چا به مشک عنبر هرګز ورته اونه وې — که د خټو بو رنګ یې شین لکه سحاب وې

د هجران غم به د اهو مره شوخي نه کړه — که موجود راته کې چنګ ورباب وې

که ژړا مې په انداز د زړه د سوز وې — بوه ستر که سیند د ګنګ بله چناب وې

د هجري خوبي که کړې د دوران دور

د دنیا کور یې دائم د یار جناب وې

(۲۵۴)

یاوې مهٔ کاڼږئ غلط وتښی سراب دے
نهٔ باقی د جهان عیش نهٔ ئے عذاب دے

هر ساعت چه ئے موجود دنیکو بدو — بود عدم ئے برابر مثل ئے خواب دے
حیرانی دِ په غفلت کړم اے بشره! — ستا د طمع په څهٔ اوبه د فصے طناب دے
سرله خامه یاده برے کړے ز رفتا شے — کیره عمر دِ جوړ قصر د حباب دے
رُخ دِ نهٔ دے مانړی مهٔ شکوه فلک ته — د استوګنے مکان ستا نسی د تراب دے
چه تر تا اول چالوئے قصر بنا کړهٔ — که ئے نن نشانه شته ولے خراب دے
آز هوس دوه مرشدان ته ئے مُریدے — بیهوده لاف کوے پیر مے کتاب دے
د فرمان په خیانت دلیری مهٔ کړه — د عمل پوښتنه کړه وراند ے حساب
د انصاف په سترګو یون د عمر ګوره — چه له یاده ئے ګوئے وړے په شتاب دے
ماتے هیڅ وفا له چا معلومه نهٔ کړه — بنهٔ هنګام دګودکئ کهٔ د شباب وے

دانایان د چا په وعظ محتاج نهٔ دی
په نادانو هجری کړے دا جواب دے

## (۲۵۵)

کۀ بنۀ مخ وته دِ ګورم رشک د یوح دے
نازک تن ئے لطیف هسے لکه روح دے

د مخ زیب ئے هیڅ محتاج د صفت نۀ دے
د جهان په ښائسته وُ کښې ممدوح دے

د ښائست بیان ئے نور مۀ کړه خاطره
څۀ صفت د هغه حال کړے چه وضوح دے

له هیچا مے په دنیا مینه اونۀ کړه
څوځ تاب د عشق زما په مخ مفتوح دے

زۀ به حال د خاطر څۀ وایم وچا ته
چه ئے درد د عشق په دم کښې مشروح دے

بنه چه مینے ئے آهو کړمه له خلقه
په دنیا کښې مئین یار زما فتوح دے

سر تر پایه چه ئے ګورم حیرانی ده
عجب څیز هوښیا کړے پاک سبوح دے

د وصال مرهم د پرین ده چه صفا شی
په ناوک مے د فرقت خاطر مجروح دے

تۀ ئے نیت د وژلو مۀ کوه ګرد ونه
په چاړۀ د هجر خود هجری مذبوح دے

## (۲۵۶)

چه دِ عشق اېښے زما په زړهٔ بنیاد دے
همیشه درته حاضر که په هیواد دے

په سرتا مات کړهٔ له قصهٔ نوے پېرے
په قاضی کړے نمارقیب فریاد دے

په حجاب کښے دِ قدرت دنوری ونښته
چه دِ ستن ماتوی د سبا باد دے

مرصع سیس پهول دِ اېښے په تندی دے
بل افسرئے خجل کړے د قباد دے

په رُخسار دِ خړګه کجه د طرے ده
یا ختلے په کاغذ د کاتب صاد دے

د پېن مخ په خوئ دِ وصله جاریه ده
که هندو د شیرطلب کانِ سراد دے

د رخ قدر د سلیمان تور د خطو نه
یا مینږے په خدمت صف چه ئے معتاد دے

ماتوزلفو دِ د نمر کړلونه اوکړل
په هنر دِ و زینت ورکړے داد دے

د تیکے مچلئ دِ بنوری پرے خبر یم
ذکر خیرئے د کښلی مخ اوراد دے

نصلا لونه د محراب خال د زاهد شهٔ
شنه قبا سجده کوی په دُعا یاد دے

کله کله په باغ ورشی چمن زر کړی
رنګ د ګل وته زر اوبخښی جواد دے

په ناوک د بڼو زړهٔ د روهی وُسے
د ستم سبق دِ لوستے له اُستاد دے

(۲۵۷)

یاره هرګوره لما لرے په هواد دے
فوایځ ئے راکوی قاصد مے باد دے

هیڅ تعلیم ئے دوفا اخستے نهٔ دے
د جفا سبق ورکړے ځیل استاد دے

خونی سترګے ئے دی برنډے له مستئ نه
په نظر کښے عاشقان وژنی جلاد دے

په تکئ مے ئے زړهٔ یووړاوس مے سرووړی
چه دے مست مے ورکا وهٔ دالوئے مداد دے

اُلجه مال له ترکه چا کتلے نهٔ دے
د باغی نه د قاضی ته څهٔ فریاد دے

مئین کله د معشوق له زحیره تښتی
تل شیدا وته دیار جورسواد دے

په خاطر مے لمبه بله د ښهٔ مخ ده
هیزم کښ مے محبت چه ئے معتاد دے

چه تیر د نصیحت ئے باندے مات شی
د عاشق د سینے څهٔ شدید بنیاد دے

چا وئیل چه په دشنام ئے ختمک که
تر رحمت ئے په دا زیری خاطر شاد دے

# (۲۵۸)

دَ مِیَن له زلفو بوئے راوړے باد دے
څو منت ئے پما ایښے تل مے یاد دے

ظاهری تنه مے روغه زړهٔ مے ئے لوټ کړهٔ — دَ مخفی زخمه طبیب ته څهٔ فریاد دے
شب و روز ئے خالی نهٔ یمه له فکره — سوزنده آتش دَ کن یار په هواد دے
تَل[1] جفا کوے په خُوبدو ترس دِ نشی — په سینه کښے دِ زړهٔ کاڼے که فولاد دے
چه جواب دَ وفا نهٔ مومی دیساره — په لمبو مے اچوی دا ئے مراد دے
دَ رقیب له غماز یو ښنهٔ خبر شوم — کهٔ له دره ئے بیرون شی زما یاد دے
دَ دردمنو په آه نهٔ لوړی له بیخه — په وصال کښے دَ هجرت هسے بنیاد دے
هجر تل په ملاقات پسے وصلی دے — تخلص دَ غزل لس چه ئے مُعتاد دے
طبیعت مے ازمیه همسری سنهٔ ده — دا غزل دَ شاگردئی پد ر اُستاد دے

روښی هیر دِ یار له جوره کیله مهٔ کړه
له دغه ستمه چاموش لے داد دے

---

[1] تل جفا کوی بے حده ترس ئے نشته - په سینه کښے ئے زړهٔ کاڼے کهٔ فولاد دے۔ (ق-ن)

## (۲۵۹)

داچه وایم باور اوکړه واړه دړ د دے
ګنړه زړهٔ مے د اشعار له مینے فرد دے

ذړهٔ که غوارم موندهٔ نښتی په سینه کښے
پرتوده هسے دیار د هجران ګرد دے

ماچه جور د هجران په سترګو اولیده
د زړهٔ سرے د همه یاربوسړ د دے

چه د عشق مارغهٔ مے سوړ په سر وکړهٔ
نور مے تن لکه هلال په ګونه زرد دے

آرائش د جهان هیڅ باور پرے مهٔ کړه
چه ئے دا زینت تر شاکړو هغه مرد دے

د دونړے ملنګه خاندهٔ لاړ دغه دهٔ
بیهوده خسړ و غره په تاج وجود دے

ملک په ملک ښهر په ښهر هجری بیائی
په ګردن کښے ئے زنځیر د آب و خور دے

# (٢٦٠)

په ما مکړه ملامت زړه مې فګار دے
جدائي رابانندې کړې پټ ګذار دے

روغو ښځو لره ښکایه پېغور کا سړی
ستړګې ځکه ژړا کا چه زړهٔ بیمار دے

د ناستی مزکه مې هسې وښکیو سره کړه
تهٔ به وائې باغ زوږې لاله زار دے

نو به ما ده راځه نزدې کېنې به ډوب شې
تر چشمانو مې د وښکیو شړهار دے

پښې مې خشکل تر دد یار په لور کا
تر بندونو ئې ولول وینم تورمار دے

ما به لاس پورې په ګل د وصال نکړهٔ
کهٔ مې زده وې چه ئې مل د هجر خار دے

د ګور خاوړې به ئې وران په جدل نهٔ کا
ما د زړهٔ په تخته نوم کښلې د یار دے

راشه حال د پردیس اوګوره په سترګو
چه بې تا نه لا نړئې د موئې تر تار دے

د وصال امیر که وی ماندهٔ به راشي
نن خوځنګ راسره کا د هجر وار دے

خاصیت د جهان هسې رنګ لیدهٔ شي
ګهې وار د خزان جوړکله بهار دے

په دعا ئې یادوئ د روه طوطیانو
بنده هم په دعا یاد لیل و نهار دے

بیجاپور به هجری ښځهٔ کاوهٔ یارانو
د قضا علاج پرې نهٔ کیږی ناچار دے

## (۲۶۱)

څو مې ایښې په خاطر د هجران بار دې
له وصاله مې نصیب تش انتظار دې

د وصال تریاق را اوبخښه مینه
هر نفس مې زړه چیچي هجر د مار دې

چه شراب د وصل څښې بې غمه مه شه
خود به درشي البته هجر خمار دې

جدائي په مرګ له یاره ارمان نه وي
چه ژوندي څښې جدا په ځان یې زار دې

چه هرګز یاري له چا په جهان نه کا
په دُنیا که سړی ډیر ملنګ مې یار دې

څو د اشین فلک دور وته کا په مزکه
په ژړا یې له نیرنګه هر جاندار دې

نه یې یو ساعت قرار په ځان روا کړو
نه عالم د دې له دوره په قرار دې

دُنیا ځکه لبالب ده له افسوسه
چه آخر د خزان وار اول بهار دې

هیڅ باور یې په بقا د بنا دي نشته
سمه غم لره پیدا د ارمان دار دې

زه خټک په بیجاپور آشنا په روه دې
ولایت مو سره آو د هندو بار دې

چه هجري غوندې جدا وي له یارانو
که پادشاه شي په دکن عمر یې خوار دې

## (۲۶۲)

زړهٔ مې بس دیاړ کتو ته انتظاړ دے
د فرقت په د ېن اندوه کښې ګرفتاړ دے

ناصلا کهٔ افضل کا زهٔ به ئې وړمه
کهٔ په زګ د آزار ګل ولی سردار دے

مخه یار که کشش کا چاړه مې نشته
په ستم ئې شګفته یم چه نامدار دے

دشمشیر مخ مې لیدلے دے په ستر ګو
زیبنده د زیړو ګلو تر بهار دے

یارے ته چه تل کشش کړے نوجوانه
کله ما په وطن کړے ستا دیدار دے

یاره ذوق په روه کړه په دکن خوش یم
مه مې تن لره شکوه نهٔ ږدا کاړ دے

دیاو فوځ د تعین په زوړ مې بیا تې
خبر نهٔ ئې چه په پښو مې سیه مار دے

تل غرهٔ کښې مستانه په عیش وُسه
ما ته هم د سجن غم لکه ګلزار دے

تل د جنګ سورے کوه دغرهٔ په څو که
زهٔ مسُین په غریبۍ مل مې اشعار دے

څنګلی چه عادتی په ترخو مئے وی
کهٔ زلال په ذور وی څښے ویزار دے

هرګز یار د ښادی نهٔ وُم په جهان کښې
زهٔ ثانی د سمندر دکن مې ناړ دے

دګلونو ریاض جوړ هجری جدا شهٔ
دَم په دَم څکه نالان لکه هزار دے

---

لے ۲ نامدار او شمشیر دواړه دشاعر زامن دی -

## (۲۶۳)

له وفا بنا ئست په څهٔ هسې آزار دے
چه ئې تل وفا ته شا د جفا يار دے

د نصفت ویش چه کیږهٔ حسن ود ډهٔ وګړه
ن همیش ځکه وقتل ته تیار دے

عجب شے خاوند پیدا کړهٔ په دا دوړ
چه دا ئم ئې محبت د زړهٔ په ښکار دے

د زړهٔ کور مے ځکه تش دے له هوسه
چه د مجرم نفس بانډے نا تار دے

پرهار ونه د زړهٔ مهٔ شماره طبیبه!
له بنړو ئې حال د دِل واړه اظهار دے

یو په یو ئې بانړه او شماره چه څو دی
هر مژره ئې په تخته کړے پرهار دے

په رضا ئې بے رضا وړ پیسے د ړو می
تن بے وسه رعیت زړهٔ شهر یار دے

په دکان د کبنلیو رَوْ د صورت نشته
داړه زړهٔ سودا کوی صاحب مدار دے

د وفا له کسبه سود د هجری نشته
چه ئې دود د جفا تل د مئین کار دے

## (۲۶۴)

چه لیدلے ئې په سترګو زما یار دے
کهٔ وګل ته نظر کا سندی ګنهګار دے

چه خجل ئې د زینت له نقشه نهٔ دے
ولے چا که جامه تل ګلِ هزار دے

ما و عقل ته وئیلی عالی ګوهره!
ن د چا حسن غیرت د نو بهار دے

په سوګند ئې راته وې چه په دا دوړ — د چمن تر ګلو بهبه مخ د نامدار دے

نرګس شنه همسا په کف په خیره ګوری — پس تر تانه وکتو ته انتظار دے

ننداره ئې د مخ کا نړیٔ د لیبرا ننو — د بینهٔ مخ په وقت ئې څهٔ د ګل وقار دے

ګیڼت د وطن رانغی لا رغنه شته — مضطرب مې څکه قلب پاره وار دے

حقه بان فلک جوړه مهر په خلهٔ کړهٔ — په پله د کومی ماته په اظهار دے

نهایت په یوه اوپاسی له فمه — که مې عیش پرے ثابت کهٔ اضطرار دے

هجر څهٔ نجیبی آفت دے مخ ئې ګم شه — نهٔ ئې زهر د حیه نه سور د نار دے

روح مې تل څرنه کا د غوږ په در کښے — عقل کل ئې ګمارلے په اخبار دے

هر زمان تازه کاروان د خبر ونو — د بدن مدن ته څی اذن ئې لار دے

مشتاق روح څکه د غوږ په غرفه ګوری — چه د یار د زیری تل په غوږ ګذار دے

دیر تپاک به زما څهٔ وکا نادانه — د عغه مهر د مل چه زیرمه کار دے

لوئے هلک مې امانت په رب سپار لے — کهٔ مهر څو د فلک دوړ ناهنجار دے

زهٔ دعا په همت کړم فلک آمین کړه — نګهبان مو هغه حق شه چه غفار دے

هجری کار په قضا او سپاره داده شه
تل د عمر باغ خزان کله ګلزار دے

# (۲۶۵)

کهٔ دغم هسې لوګې سکه داور وي
مناسب وو چه په دود ئې دمر تور وې

دبیغه زوروې له ازله سوز د هجر
غم به ولې وو پیما که تن مې سکور وې

که ملبه مې داندوه وې منتشره
باښیدهٔ دو چه دمزکې په سرخور وې

ما به کله د مجبس غمونه زوول[1]
که رشوت د چغتی په دربار پور وې

فلک ماسره جنګې بې غمه خوب کړې
بخته هسې به دِ چیرې کړل که ورور وې

دنشاط لباس مې هجر صن پارهٔ کړو
له بد نه ئې سرلړې کړې که زور وې

دغلیم ولې به غوښه په زمان شوه
که په لاس کښې مې ثابت د صبر لور وې

په بدل ئې همه خوښکې پتې نهٔ وې
په شماره ورځې حیات دهمت نور وې

دستم لاس به دِ مات وو جفا کیشه
که له جوره دِ خبر هجری په کور وې

دکن دِک له پښتنو پکار مې نهٔ دې
تن په دا عرصه دلیر[3] غوښې غمخور وې

تمک سود د منصب اولیدهٔ په سترګو
داوربشو یو کنډک په وطن سپور وې

---

[1] باندهٔ وو چه دمزکې په مخ شور وې
[2] په بدل ئې همه خوښکې پنړې نوې } ق - ن

[3] مقصد اورنګزیب بادشاه دې. چغتی یعنی چغتائی دمغلو هغه خاندان چه دچنګیز د زوئې چغتائی خان له نسله دې. [3] دبهادرخان داؤدزی زوئې دلیرهمت ته اشاره ده - تفصیل دپاره اوګورئ مقدمه.

## (۲۶۶)

له رندۍ مې متقي په زړه زهير دے
واعظ لا زما له غمه تل په وير دے

څو مې سترګې د باور په نصيب واکړے
په اوبو مې ورق وللې د تدبير دے

قيل وقال مې د جهان همه ترشا کړه
۱۰ صيقل په کړ ورت زما ضمير دے

وعاقل ته لار د سود بنا په زاهد ده
ديوانه نظر ګنړلې په تقدير دے

په مستۍ مې جامه څيرې د نشاط کړه
چه دائم په غم بنادي کا زما پير دے

که انکار مې د مستۍ لرے باطله
بينه سند مې په دعوا د سينو زخير دے

بنادي غم په لوحه کښلي د مرچا دي
فکر مکړه چه ممکن ئې نن تغير دے

غايت بينو ته ظاهر خطا به نشي
رسيده چه د قضا له شسته تير دے

توکل مې وسيله بيغمه ناست يم
نه مې عرض په خرو نه مې په مير دے

د انصاف طمع ئې نشته له درباره
که ومه ئې مرتشي غم ئې وزير دے

سروين ئې لهوم پايان ئې نشته
طرفه جور ئې پيشه کړے نن زګير دے

هجري تل په لتا جنګ د فلک نه وي
عيش وغم ئې په دوسر يکه بهير دے

## (۲۶۷)

هومره څه لره عاشقه په آزار یې
چه له چرخه هم ظالمه په دا کار یې

تل به دا خوبی په تا نه وی قائمه — که مغروره د خپل حسن په بازار یې
ته هم چار اوکړه د دهر له نیرنګه — اې چه تل مې په آزار لکه ادوار یې
دا جزا به پیر د ورځو سبا درکا — ته که نن آفت زما لیل و نهار یې
د زمان خزان خوشته غافله مشه — نن هر څو که زیب آوره تر ګلزار یې
کوم بهار په چمن ډیر وی تر زمانه — ته چه مست شان غره په خپل بهار یې
بې زیوره د مخ او رجهان یې وسه — بیا به کوم غرض قاصره د سنګار یې
سیاله نشته ستا د مخ په ولدیت کښې — تر بتانو هم تېرې د هنروبار یې
نور همه خوبی لرې قباحت دا دې — چه په خوئې همه جفا لکه روزګار یې
د وصال د مېو نوش طرب افزا وی — هجره! ته ورپسې به لکه خمار یې

هجری یو ساعت خاطر قرار در نه کړه
څو د یار د عشق په آس باندې سوار یې

## (٢٦٨)

ستا له خطه را معلوم مهر دِ سوړ دے
چه زخمي په وښکیو نه سلامت جوړ دے

مندرج ئې د واړه مخ په لیک نهٔ دی
بل شاهد نه دا کوي چه لتا موړ دے

هیڅ نرمي دِ په احوال دخسته نشي
زړهٔ دِ کانړے په سینه کښې لا اکوړ دے

چه نسبت مے لباسي کړے زهیرین م
په رښتیا وښـل کوه کهٔ همه مروړ دے

که محیط ئې د غضب لا پرے رافت کړي
همیشه در ته عاشق په اخلاص جوړ دے

په بڼها به دیار مخ څرنګ لیده شي
نهٔ ئې بیعه دیر لکونه نهٔ کروړ دے

واړه غم را ته اسان کهٔ هجر نهٔ وے
منعدم شهٔ په رښتیا بتر تر کوړ دے

نادان زړهٔ ئې د خټک په دکن غواړي
د بتانو وطن روه خاصه بتکوړ دے

زهٔ هجري سیر په کومه سبزه اوکړم
نظرګاه مے له فرقته همه روړ دے

## (۲۶۹)

چه یې نن فروغ د مخ رشک د چراغ دے
په آتش یې د عشق سر د زړونو داغ دے

نه یې رنګ و بوئے د مشک په زلفو ګې
نه یې ګل مثال په حسن د هیڅ باغ دے

چه یې سیال په دهر څوک د حسن نشته
تر ګردون یې ځکه تیرسر د دماغ دے

خال یې ځسے په عارض باندے جلوه کا
ګویا چا ایښے په ګل وزر د زاغ دے

امتناع له میو نن مه کړه واعظه
د بهار نسیم زر کړے مخ د راغ دے

زه یې څښکال معطل په لاس کښے پریږدم
چه ساقي راته نیولے ډک ایاغ دے

ګردون نوے مخ په هر نفس پیدا کا
غنیمت ګڼړه دا وار چه د فراغ دے

په ارمان وګرے تیر شه له جهانه
په هیڅ لوري یې اثر نه یې سراغ دے

چه هر دم یې غم د یار په زړه څرخیږي
بیجاپور که همه ګل هجري ته کاغ دے

## (۲۷۰)

چه لیدلے مے دیار د مخ فروغ دے
که څوک کا د ماه صفت وایم دروغ دے

ته چه منع کړے زما دیار له لورسیه ملامت نه ئے واعظه زړهٔ دِ دروغ دے
بنائسته په جهان ډیر کمے ئے نشته ولے نن حسن دیار په جهان توغ دے
د محبت په بازار قدر د پیند نشته قیمت نهٔ لری هرګز د مرینه دوغ دے
د واعظ وعظ سود نهٔ بخښی معفهٔ ته په ګردن کښے چه ئے پروت دمینے یوغ دے
نور له وعظه ژبه ونسه واعظه نصیحت ماته بتر تر بد آروغ دے

چه ئے لاندے د هجران اسندوه خوړلے
هجری زړهٔ دِ دپهاړ تر سنګه شوغ دے

## (۲۷۱)

مخ ئے هسے دخالق په قدرت صاف دے
چه ئے کړے ترقمر دتیری لاف دے
په صفحه ئے دسپین مخ زلفے کړے کړے هر یو خم ئے مشخص دمشکو کاف دے

ئے یعنی کان - درنګ

دقد مثل ئے الف دخلے ئے نون شه — د کاکل رنگ ئے مثال په سر دقاف دے
بنے اوکینړے تورے زلفے په مخ زانګی — هر ساعت ئے په عشاقو اعتساف دے
باد ئے بوئے د زلفو ورهٔ خلقو د ړودو — ما وے چاکره پاره د نافے ناف دے
د کردار جزا به ورکړه عاشقانو — وے جرم ئے دشاه په روئی معاف دے
هرګز تیر د بل دلبر په کوڅه نهٔ یم — څو مے کړے د آشنا د در طواف دے
همیشه ئے د جناب په خاوړو رغړم — هم هغه زما بستر هم مے لحاف دے
څنے څنے راست عاشق لکه وامق وی — د عشق لاف اکثرو کړے په کذاف دے

چه هجری آغاز د شعر ګفتګو ئے کا
زر خرید ئے د ګفتار د چمن واف دے

## (۲۷۲)

د شاعر شعر ئے اور ورته علف دے
څو نیو ئے مے د نظم تیغ په کف دے

دخیرو په ژوبین به ئے سورے کړم — که مے خصم پیټ په ډال لکه کثف دے
روشن فکر مے غواص ګوهر اوکا بڼی — د زړهٔ ګورمے د ذاق د ړ وصدف دے
چاچه نهٔ وی په دنیا ګوهر لیدلے — تر ګوهر ولا بهتر ورته خذف دے
یو نفس ئے د عیش غوارم مونده نشی — ګویا ئے له دنیا وجود تلف دے

ذهٔ طلب د هوس کړم چه هرګز نهٔ وه     څو قائم په دا جهان چرخ خزف دے
هر طرف چه نظر کړم شور و غوغا ده     نهٔ زده چا چه ئے قرار په کوم طرف دے
څو بنګړ د هجر کوز زما په زړهٔ شهٔ     شکسته مے د بنا دئ د جیش صف دے

ما هجری ته دیار هجر جهان اور کـــه
د زړهٔ سود مے څهٔ خوږ غ ذئے و دف لا

## (۲۷۳)

له چشمانو دِ پور ورے سکر مل دے
مخ دِ لا ترو دِیرِ خندان تر نوی ګل دے

په صفحه ئے هرګز شان د شکن نشته     چه لیدهٔ شی په جبه خم د کاکل دے
کهٔ د څنړیو زیب دِ نهٔ دے خجل کړے     په خلوت د کوهی بیټ و لے سُنبل دے
ثمینه زیور د څو کهلوته پسیری     چه کمین د حساب کړے په چار ګل دے
عشق د هسے تل په صندوی له قرار ه     لکه ذات د ښتانهٔ نهٔ د مغل دے
یار دِ هسے په پارس د مینے زړکـــهٔ     ګویا لون له دهٔ ؤرے هریاول دے
په خونړه ژبه دِ زړونه دبوده کـــړل     په دا کار دِ سحر ورستو د بابل دے
ستا ویلشتلے فریاد کله په رضا کا     محبت ئے بیا په زړهٔ ایښے غلغل دے
هر ستم په مینن کړه چار ه ئے نشته     حکایت د غماز فهم کړه چغل دے

کهٔ تمیز د هجری نظم په معنـــو کړے
هر غزل ئے په رښتیا رشک د بلبل دے

(۲۷۴)

چه زلفینې په بنهٔ مخ باندې ول ول کړې
زړه قلوب ئې په سلسل و مسلسل کړې

ستا د حسن سنګارنو په زیور مشه	د میڼې موزه په پا مزګه دلدل کړې
سور لباس دِ پوشیده په کوټه ځيږې	په آتش به ئې اوس دۀ سره جبلبل کړې
زیږ خلخال د فلک غوږ کړی له شو ږده	په پرکیو چه جلاد شرو خلخل کړې
له نقابه دِ مړونو په خیس داووزه	نما تهه و بالا بنهر غلبل کړې
تل دِ څکه تل په وینو لاله زار وی	چه تل تل په تُل سل سل سره تلول کړې
خسته وُبولې په مهر چه نن راشه	په درتلهٔ ئې صدا وکاږې غلغل کړې
وا به نهٔ وړم ستاله دره ګل صنمه	کهٔ هرو نه مې دتن سره بیل بیل کړې
د عسل مزه به واخلی ستاله شونډو	کهٔ په ژبه نامه یاده دګل ګل کړې
صد هزار هزار به پس په ترانو کا	کهٔ د حُسن جلوه باندې په صلصل کړې
بنهٔ ترغاړه دِلا پیسنه ترچوتاره	د صفا ته ئې ختا همه ململ کړې

هجری هاله طمع کړه دیاس د مخه
په جدل کهٔ پس شاه دول تبدول کړې

یادګیرنه :- دا غزل په چاپ نسخه کښې نشته.

## (۲۷۵)

چه په لاس ئے د وحدت اینبے قدم دے
د هغهٔ ته غم ښادی د ه عیش ئے غم دے

څو د شک په مقام ګرزی غم به وینی
دیقین په ولدیت ئے نوم عدم دے

راشه ښه د صبر پاس په حرص کینږ ده
قناعت له عیشه ډک حُزن ئے کم دے

لام الف عوض ے صورت دیقین داکړه
قلب د لام له دله ورته صنم دے

هرچه ملک ئے د مُوتُو په زهد خپل کړو
نور ئے عمر د حیات له ربه سم دے

بیهوده عمل داوړ څنه فرار کا
ستا د عقل کیفیت لکه ضیغم دے

د لاهوت مارغهٔ دِ بند کړلو په زاغو
پخپل ځان دِ عدل کړے کهٔ ستم دے

امن نشته د ناسوت له کیسه برو
مګر کمه شی په لاهوت بے حریم دے

د تجرید کسب کوه شرف ئے محوده
که دِ بلوتے په مشام د خرد شم دے

الف ځکه سرفراز چه جریده شهٔ
په هرتوری چه نقط بدن ئے خم دے

شست وشوئے د همت په زلال بویه
په صفحه د زړهٔ صنم عشق د دِرم دے

قدمونه ئے په لاس دیقین نسه
هغه کس چه ئے تر شا فانی نعم دے

چه عسل د دهر خورے زهر قبول کړه
د حلوا ښاخ ئے پرُ واړه په سم دے

په دا حال مجرّی خبر په اربعین شهٔ
چه په توک شاکر فقیر ثانی د جم دے

## (۲۷۶)

جدائي له یاره یو نفس ماتم دے
چه فرقت شي په کالونو څو ستم دے

د وصال په طمع باد غونډے چلیږي
ګرځه لږ هجر له قرنه سره سم دے

بے وطنه تنها پروت یم په غربت کښے
نن له ما سره همدم د صنم غم دے

د میوا د آشنا په سترګو لیده نه شي
که په خوب را ته حاضر شي ډیر کرم دے

طولاني امل مے ډیر وکه خبر نه وم
چه له یاره سره عمر تر ګل کم دے

هیڅ حاصل مے بے دریغه څنے نشته
ګذشته چه یادوم سودئے الم دے

قاصدان له روه نه راځي مدت شه
سلام یاد رارسوی منت ئے تم دے

که بهشت له بنائسته مخه خالي وے
عاشقانو به یاد کله که قسم دے

ز ړه عجب راځخه ګم شه نه ئے موم
بے ګمانه به هورے وي چه صنم دے

تل په یاد د ګجو زلفو پیښو ته ګورم
تور زړګئ لکه زلفینے خم په خم دے

چه د روه خبرے کله قاصد راوړي
په دا قصد ئے منت ایښے پما تم دے

بے وسئ له غښتو پاتو له میښ کرم
سینه ما رے په دوؤ کښے خم په خم دے

د روځي دا ړو په تا نه شي طبیبه!
د فرقت آس ئے په زړه ږبښے قدم دے

یادګیرنه:- د دے غزل لسم او یوولسم شعر په قلمي نسخه کښے نشته هرکله چه د دولسم شعر چاپي نسخه نه لري۔

## (۲۷۷)

په دنیا کښې عجب ښیز واڼی هجران دے
چه سبب د وصال دے، کړے یزدان دے

کهٔ کا قوله مرګه دار کا مُناسب دی — دار به وړې هغه کا چه مسلمان دے
کهٔ په مرګ ئې له فانی دارهٔ روان کا — په بدل ئې جنت ورکا تل بستان دے
دا فانی دولت ظاهر بقا ئې نشته — کهٔ جنت راکړے مولا چه تل ودان دے
د ناپاکو ځائې مرګز په جنت نشته — په دا قول ګواه همه قرآن دے
بهشت ځائې د هغو پاکو دے بیشکه — چه په دین ئې د نبیؐ ثابت ایمان دے
ورځ وشپه دِ عمر هسې ګذر کاندی — لکه سیند چه قرار نهٔ کا تل روان دے
ته طلب د دین کوه غم د نان مهٔ کړه — په روزئ دِ هغه پر چه دِ ضمان دے
د باقی خو ئې زینت په ښهٔ عمل کا — وفا نهٔ لری دُنیا ځائې د ارمان دے
هر نصفی بیت ئې درے غزل موزون کړو — په شل دوه حرفه د عقل په میزان دے

هجری مهٔ شه نا امید کهٔ ګنهګار ئې
البته به انعام ؤکا مهربان دے

(۲۷۸۱)

غره مهٔ شه په وصال پسے بیلتون دے
چه بنګړ د موت کوزی څهٔ ژوندون دے

زرد وخشک به کانړٔ خورد باد په مخ شی
نن بنادی به د اکشت مکړه کهٔ زرغون دے

کهٔ تابوت دغلیم اُوو یخ خوښ مهٔ شه
نهایت به دغه لار د مړ چا یون دے

هر جاهل چه ستیږه کا له نیسکا نو
وایه خوار به شی آخر بخت ئے نګون دے

کهٔ تهٔ رنګ وشک په زرهٔ لوے نادانه
لوئے شاهد به دا قصه حال د قارون دے

په تور زړهٔ کله تاثیر کاندی پند وته
جاهل زنګ د حبشی وغند صابون دے

نادان څر کا لکه ستوړ فکر ئے نشته
دانا خوارهٔ همه دځګر خون دے

د عشق نام به ئے باقی وی تر قیامته
کهٔ تیر شوے تر دُنیا وارد مجنون دے

زهٔ د یار له عشقه چرته ګوزن اوکړم
چه داغ کړے مے د زړهٔ داس ستون دے

نن د پند ځکه تاثیر نهٔ کا واعظه!
ما د عشق سبق په زړهٔ کښے پرون دے

د هجران غم هسے زوړ په پردیس وکه
چه حلقه همیشه پروت په رنګ دنون دے

په اشعار ئے د پښتو فارسی تیر ے کا
که هجری په ذات خټک د دوه پښتون دے

(۲۷۹)

پـه ظاهر د فلک رنګ ګوره زرغون دے
خو تاثیر ئے د ګردش بوقلمون دے

هیڅ باور ئے په قرار د چارو نشته
نوے مخ په دم پیدا اکا د ګرګون دے

د دارا په وینو سره د شام اوره دی
د صباح شفق هم د سکندر خون دے

د کسرى تاج ئے په زور له سره کوز کړ
پرسیتلے ئے له تخته فریدون دے

ته چه ئن د وفا طمع کړے له دهره
دا فکر ونه د باطل عقل زبون دے

په نهاد کښے ئے تاثیر د وفـا نشته
واړه تخم د جفا پکښے معجون دے

د حرص تیغ دِ ناحق په غاړه کیښنو
پرے غوڅ کړے دِ د صبر د آس ورون دے

نصیحت د ناصح کله پرے تاثیر کا
هغه زړه چه په هوا چارو مفتون دے

په کثرت د دُنیا فخر هرګز مهٔ کړه
که مذکور دِ آرویدلے د قارون دے

تر دنیا وګړی تیر نامه ئے نشته
محبت نام زنده کړے د مجنون دے

هجری رخت د اقامت په جهان مهٔ بنده
نن پیدا شوے په دنیا صبا دِ یون دے

## (۲۸۰)

که نصیب بنده بند کړے په دکن دے
دامن ګیر ئے همیشه عشق د وطن دے

بنادی څهٔ ته عالم واقٔ خبر نهٔ یم
تل ژړا زما ریاض غم مے چمن دے

چه د عشق په توره مړکفن ئے نشته
کله روغ د پاک شهید نوے کفن دے

چه زما ذړهٔ ئے بندی شهٔ په کوهی کښے
همیشه راته په یاد معغه ذقن دے

د رضا په لوری څشکله یو ن اوکړم
چه ترڅټ مے چاپیره د رزق رسن دے

ما به څشکله طبیب د وصال روغ کا
د فرقت داغ مے د زړهٔ په سرکهن دے

د زړهٔ باز ئے تل د دوه په مزکه ګرزی
که هجرئ په دکن ناست خالی بدن دے

## (۲۸۱)

هسې شوره مې محبت کړې په من دے
چه د بدب یې په کور ایلنې د کوه کن دے

سمندر غوندې عیش پر سره تازه کیږم
په دوو مارو کښې آتش زما وطن دے

منقلب لکه هاروت په کښته نه د اسکي
چه مې زړه پکښې بندي چاه د ذقن دے

په سینه مې لارې لارې کړې د اوښکیو
ستا د درخاوړې قمیص زما په تن دے

چه په تیغ د مینې مړه غسل یې نشته
د شهید په وینو سره جامه کفن دے

هسې وګړي له ډېرې مینې ستي کیږي
هغه اور ورته بهشت چه یې مئین دے

سرچه ورکا منت کیږدي په دلبرې
ډیر بتر هغه مئین تر هند وزن دے

د خوبئ مثال د عوام مونږ نشي
مخلوقات مې لهوړې تر خښتن دے

لږ کوته یې ستا د جسم ته مائیله
بهاري ملمه راغلې په چمن دے

بدخشي لعل به کا نړې وو بې قدره
ستا و لعلو ته رنګین څکه ثمن دے

بوالفضولو دې په شونډو نسبت کړې
هغه سور ګیټې د نمر چه په یمن دے

هجري یار د محبت په سترګو وینی
که ظاهر یې بدن لرې په دکن دے

## (۲۸۲)

هغه یار چه ئې مخ رشک د مهر و ماه دے
په ذقن ئې اوس ښکاره د خط سیاه دے

تورې زلفې ئې زندئ زړونه پرې نسي
د هوش بند لره ئې جوړ د ذقن چاه دے

د بیسر گومر ئې تاخت لره ستل ښوری
حال ئې لا په چا زړۀ سوے نۀ کا جان کاه دے

د جهان دلبرې واړه نوکران دی
ن زما په یار قائم د حسن گاه دے

که له جوره ئې فریاد کړم وائې چپ شه
ورځ درازه ده د عشق وائې پگاه دے

په طلب د بوسے کړم وعده سبا کا
زۀ تر کومه پسے ځم عمر کوتاه دے

یاره نوې برات د کاږ په وعده مکړه
ورځ د عمر په آخر شوله بیگاه دے

لکه تۀ په تخت د حسن بداؤ کړے
ستا آشنا هم په جهان د نظم شاه دے

د وصال په توره سر د هجران غوڅ شۀ
همیشه د دے دولت هجري بد خواه دے

راشه راشه د دیدن ارمان به یوسی
د هجري صورت سوار په آس د ساه دے

# (۲۸۳)

تورے سترگے دِ نصیب کا بشیوه کړے
ښائسته ډیره غـره ئے جفا کړے

په یوه نظر ئے زړهٔ نماسته یووړ
دواړه چشم دِ جادو کا مقامرے

د وفا وعده دِ نهٔ دیـنم جانی ئے
نورے مهٔ غواړه پیالورے ژورے

عاشقان دحُسن چالیدره بے غمه
دائم غواړی د ذلت لوئے کمرے

ستا دلبو خواږهٔ خٹهٔ سره مخی کړم
ورته هیچ شیرین عسل تری شکرے

یاد په کوه ښکه غبار له سما دوړ کا
ماه و نمر دِ هویدا ستوری ښکرے

تبسم دِ توره شپه روښانه ورځ کا
په لعلونو کهٔ ښکاره کړے مرغلرے

چه نسیم دِ په شمیم زنده ریاض کا
څهٔ عجب کهٔ مړ ژوندی کړے په خبرے

دبیسړ موتی دِ ښوری اشارت کا
خپسر مهٔ سیزه په اوړ منیته لرے

محبت زما دے پس زهٔ ئے شاگرد یم
مواعظ دِ قیصے نهٔ کا سره وُرے

که له یاره سره دست و گریبان دے
د روحی په زړهٔ به نهٔ کړی غم ئے پرے

# (۲۸۴)

ساقی جام کیږده په کف هنګام د مئے دے
مطرب ساز ځکه په لاس که چه پسر لے دے

چه په ښی لاس ئے نن زلفے په کیڼ جام وی
هم هغه ثانی کسرئ حریف د کے[1] دے

دا زمان همیشه یار د هیچا نه وی
په ارمان ځنے تیرشوے هرسرے دے

چه مے نن په خلوت راشی ځان اوژاړی
کۀ په تن خسرو دهند وی که ئے زوئے دے

زۀ لاله غوندے خام نۀ یم په هجران کښے
چه په لاس کښے مے نیولے د زړۀ کے[2] دے

په دوران د یار دحُسن حریف نشته
ګُل چه لاف دهمسرئ کالیونے دے

په عارض باندے ئے خال دے چه ئے وینم
کۀ په مهر ښاځکے توے دمشکو خوے دے

دخورشید کلونه جوړ پکښے لیده شی
په هر ځائے چه ئے دمشکو ښاخ سوړ دے

واړه زړۀ دعشق په غم کښے مبتلا کړم
ولے هیڅ علاج ئے نشی هسے شے دے

یار ته زړۀ هسے زبون لکه کید کړم
ګنړه مانه ګیاه کله شین مزرے دے

سمرقند[3] وبخارا حافظ عطا کړۀ
ما په خال د یار بخښلے ملک دړے[4] دے

چه هر دم دجدائی له زخمه ژاړی
په دنیا دهجری یار پریس نے دے

---

یادګیرنه :- آخری څلورشعرونه په چاپ نسخه کښے نشته.

[1] مطلب کیخسرو دے [2] داغ [3] اګرآں ترک شیرازی بدست آرد دلے مارا۔ بخالِ هندوش بخشم سمرقند وبخارا را

[4] د عراق عجم دیو مشهور ښهر نوم۔

## (۲۸۵)

چه پیدا په دا فنا هغه ځېرې شوې
د ګردون چړې ئې حلق لره تېرې شوې

ډېرې ښې ځېرې سپهر پرورش کړې
عاقبت د تور لحد خاورې ایرې شوې

دړونډون مدت مثال په نور څهٔ نهٔ دے
نمونه ئې د بادی حباب ډېرې شوې

په انګړ د چا آواز د ښادئ او شهٔ
چه ئې نهٔ په غوږ بیا د غم سورې شوې

چا چه نهٔ کښېښوې ځېرې له کبره سمې
په دا مزکه تا ، پتار هغه ځېرې شوې

راشه اوګوره مانړئ د هغو ستېرو
سر په کښته ځونګ تو ئې آیرې شوې

زهٔ بنده و داقې ښکل په دنیا کړم
ودانئ د ملونو وینم چه خورې شوې

د وصال په مئو مست یغمه ناشت وُم
تر ما پورې د هجران د غم برې شوې

د ښادئ وار به قائم په چا برې نږ دی
چه حسد لره پیدا د چرخ پرې شوې

د هیچا دانش آګاه په اسرار نهٔ شهٔ
د هوښیارو په حیرت اوبهٔ زړهٔ شوې

د خالق آسره پردیس لره کافي ده
که خورې ئې د دنیا فاني آسرې شوې

هجرى نیت د ودانئ په دنیا مهٔ کړه
ګوره خونې د یارانو چه میرې شوې

## (۲۸۶)

بهارې میلمانهٔ راغلهٔ په چمن[1] کښې — دبلبلو زړهٔ ئې یووړ په دیدن کښې
رنګارنګ جامې اغوستې حرکت کا — ګویا ؤړکې دعید ګرځي په برزن کښې
کهٔ مې یار یو ځل ګذر په ریاض ؤ کا — دګلاب قدر به هیڅ شي په ګلشن کښې
دمخ زیب کهٔ ئې تهٔ اوو ینې بلبله! — نور به نهٔ اوسې دګلو په وطن کښې
تهٔ[2] چه دم په دم صفت د ځنې آغاز کړې — کوم رونق دې تالیدلې په سوسن کښې
کهٔ په خوب کښې ئې صورت مشاهده کړې — نور به ماغونډې منګ شې په ژمن کښې
چه خبر ئې د بناګښت له حاله نهٔ ئې — ځکه وینې تهٔ خوبي په یاسمن کښې
دعارض لمبه ئې جوړه په لاله شي — چه سرېټ کاله ځیا په پیرهن کښې
دقرار[3] ځای مې هرګز په دنیا نشته — ځکه ګرځم همیشه ستا په برزن کښې
په هر زړهٔ دعشق لمبې دي چه بلېږي — هسې اوږ دسترګو بل کړې په تومن کښې
یونګاه دې امیران حلقه بګوش کا — څو شرف چه مولا کښېښه په دیدن کښې
چه ئې دوز کاندې اول په تار د زلفو — دعشق مړ د هاله کېږدي په کفن کښې

چه دا هسې بې رستم د آشنا خوئې شهٔ
دهجري ژوندون محال دې په وطن کښې

---

۱ وطن (ق-ن) ۲ دا او دغه نه پس درې شعره په قلمي نسخه کښې نشته.

۳ دغه شعر او دې نه لاندې څلور نور یعني دا پنځه واړه شعرونه د قلمي نسخې د مغه غزل چه مطلع ئې داده.

ستا د مخ په څېر ګل نشته په ګلشن کښې — کهٔ هر څو ئې ځېر ځېر ګورم په چمن کښې

په آخر کښې راغلي دي -

(۲۸۷)

ذات د وصل مرکز نشته په جهان کښې
ځکه ما عمر قضا کړ په هجران کښې

ژړا نور چیرې هم نشته په دا وګړي
که یو زه همیشه ناست یم په فغان کښې

هجر مې په دنیا زه مدعي کړم
ګویا زه یې قرباني وم په زمان کښې

که اوښ د بنادۍ وې په دا نا سوده
ما به وې ځیګر خون کړی په احزان کښې

زه په د اصبر د زړه ګرم له ارمانه
چه هر زړه تړلې ویم په ارمان کښې

مګر ما په خوب لیده د وصال عیش
چه هجران یې را تعین کړ په تاوان کښې

سوما یه د حیات غم پس یې نابو کا
څوک چه راشي مسافر په دا میدان کښې

په شربت د شه سپهر مینه مه کړه
قاتل زهر یې ګډ کړي دي په خوان کښې

چه دایم هجري د غم په غشیو ولې
چرخه کوم ګناه دې اولید په حیران کښې

## (۲۸۸)

ښائسته وفادارۍ نشته په زمن کښې
نۀ ګل اولید وفادار چا په چمن کښې

په وصل به دِ هیچا وفادار نۀ شی
چه پیدا کړه رب جفا په هغه من کښې

دلبران دَ جهان واړه جفاګر دی
ولې یار غوندې یو نشته په تومن کښې

چه زما په دوړ بوئې دَ وفا نشته
پیدا مۀ شه پس لما په دا ګلشن کښې

کۀ په زړۀ دَ ګل له جوره زخمی نۀ وے
عندلیب به ناله ولې کړه په بن کښې

بیهوده څۀ اُمید کوے بلبله!
وفا مۀ غواړه دَ ګلو په وطن کښې

که ظاهر صورت روغ وینے دَ بلبلو
یو نفس ئې زړۀ روغ مګڼړه په تن کښې

چه زارۍ دَ بلبل نۀ آروی روان شی
هر ګوړ ډېره جفا وینم په سوسن کښې

خټک یار ته خشکل نۀ ګوری واعظه!
چه دَ خلا څونه ئې ګوری په روزن کښې

بلبل کله په وفا دومره نامی دے
څو هجری ځان هویدا کړه په دا فن کښې

## (۲۸۹)

ستا د مخ په خیر ګل نښته په ګلشن کښې
که هر څو ئې ځیر ځیر ګورم په چمن کښې

شاید وی په هغه ملک د اهسې ځونه
ګنړه نښته ستا حریفه په زمن کښې

بنا نښته به ئې نور لاف د حسن نهٔ کا
کهٔ د مخ بربنډ را ووشې په ختن کښې

تل به ما غونډې همیش په قرار نهٔ وو
کهٔ مې یار غونډې جمال وې په دمن کښې

د کشډ و زړه به هرګز وریا تو نهٔ وو
که زما په دود آتش وې په کوهکن کښې

د بنړو په تیر د مات کړو د ړې وړې
ګمان مې نغښتې وهٔ د صبر په جوشن کښې

ما چه بوئې د تورو زلفو تجربه کړو
هرګز نښته هسې بوئې په یا سمن کښې

په ګلشن کښې به بنا دی وه تر ابده
که لږ شان ئې د خوبئ وې په سوسن کښې

ما خټک غونډې هزار پکښې پراته دی
خدائې یو هسې ګوهر ساز کړو په ذقن کښې

## (۲۹۰)

ښائسته دا مے نشته په ختن کښے
نهٔ گل تاغوندے لیدهٔ شی په گلشن کښے

یو ځل ورشه خرامان د باغ په سیر
چه گل واړه شرمنده شی په چمن کښے

تل دزړهٔ بنهر لوټی تن خبر نهٔ شی
ځوشتاب د رب پیدا کړه په توسن کښے

ما د یار سره مجلس کړو رقیب راغے
مگس پریوت د چینیلو په روغن کښے

له ستم د تیښته ځرنگ کړم د ښوے!
زړهٔ بندی کړم ستا د زلفو په رسن کښے

له زنځیره په تل یار لکه بنده وو
کهٔ زما غوندے مستی وے په کوهکن کښے

جدائی په هغه زړهٔ بجری توے کا
چه د عشق خوشے ئے وینی په خرمن کښے

د دیدن لاره ئے اوښو سے عمانړو
په غلاځکه یار ته گورم په روزن کښے

کهٔ ئے زیب د گتو اووینے چنبیله!
ځان به ورک کړے د گلونو په تومن کښے

که ئے شان د ذقن اووایم صد برگ ته
بے حیا دے کهٔ بیا راشی په بن کښے

دیار نام ئے میدان واړه لبالب کړو
بنده نهٔ لری بل عشق دیار په تن کښے

غم به هومره دیری په حجری نهٔ کړه
کهٔ یو گل دیار په رنگ وے په دکن کښے

---

ئے دوے غزل آخری ځلور شعرونه په قلمی نسخه کښے د هغه غزل په آخر کښے لیک دی چه مطلع ئے داده ــ

بهاری میلمانه راغله په چمن کښے
د بلبلو زړهٔ ئے یو وړ په دیدن کښے

## (۲۹۱)

دا ګناه بېشکه وینم په خپل من کښې
چه ئې بند کړم ستا د زلفو په رسن کښې

دا سرکش زړهٔ دا پیدا هسې بلا کا
چه به نهٔ وی دا بلا په هیڅ دښمن کښې

زهٔ چه زړهٔ اخته په اور د محبت کړم
لوئې غلیم مې ترډهٔ نشته په زمن کښې

هر باڼړهٔ ئې هسې شور زما په زړهٔ کړه
لکه ګیتو چه نیزه سره کا په پښن کښې

زهٔ اصلي ملنګ پیدا په جهان نهٔ ووم
د یار مینې در په در کړم په تومن کښې

د فرهاد د مجنون دور ګذشته شهٔ
نن امام د عالم زهٔ یم په دا فن کښې

هر زمان په څنې غوا مان طلب وو
که زما په دود ئې اور وې په بدن کښې

چه دا چشم دا ابرو دا ئې باڼړهٔ دی
د خټک روزګار حرام دې په وطن کښې

چه زما د عشق بازار په دهر تود شهٔ
د مجنون بازار ئې سوړ کړ په تومن کښې

---

ئه دا او دغه نه پس درې نور شعر ونه د قلمي نسخې د دغه غزل په آخر کښې دی چه مطلع ئې دا ده :-

بنا ګسته دا هسې نشته په ختن کښې
نهٔ ګل تا غوندې لیدهٔ شي په ګلشن کښې

کهٔ مقصود دې د عشاقو د بند نهٔ وو — قضا چاره خهٔ لره کنه ستا په ذقن کښې
دلربا په جهان ډېر دي ماليدلي — ولې تا غونډې يو نشته په دا فن کښې
ياره يو ځلې په خوب کښې ورحاضر شه — هجري ستا غمونو زوړ کړي په دکن کښې
لاله ګل چه همسري کا ستا له مخه — خجالت ئې کړ اوربل په پيرهن کښې
کله کله ئې په تش سلام تازه کړه — خټک ستا ثنا هميش کا په دکن کښې
ګويائي که د بلبل په غوږو واروي — نور به ژغ له شرمه نهٔ کا په چمن کښې

ګل به هيڅکله لا ړنه شهٔ له رياضه
ئه هجري غونډې بلبل وي په ګلشن کښې

# (۲۹۲)

هسې پروت دې غم د عشق زما په زړهٔ کښې
لکه تاؤ مايه داوړنم په اوبهٔ کښې

نهٔ به عشق هرګز زما د زړهٔ خارج شي — نهٔ مستي د مېو دړ وي په ساتهٔ کښې
محبت هسې نسبت له زړهٔ پيدا کا — لکه بوئ د ګلو مل نور په ليمهٔ کښې

---

ئه دا شعر په چاپ نسخه کښې نشته۔

دعشق اور مے نصیحت مے مرسیدی کا
لکه بوئی چه داوَړی کاندی په منهٔ ګنے

عقل مسے غم دیار راخخه یو وُړ
لکه بُو ئے دبوهے نهٔ وی په اُورهٔ ګنے

ما ته مکړه حکایت دکهلرخانو
خهٔ آتش یُوکے ظالمه! په واښهٔ ګنے

چه خبرٔ دهجران کړے په بنو یارانو
سیخ دِمات شه دسحرچرګه په خلهٔ ګنے

درفتار زیب ئے نسبت په زرکه مشه
هغه هومره خوبی نهٔ لری په تلهٔ ګنے

مُرده ګل ئے په مالش دپښے زنده شی
زیب ئے هومره شرف اینے دے په پلهٔ ګنے

نوش ئے خهٔ سره نسبت کړم دلبانو
نشته مسے لطافت په میخ خوارهٔ ګنے

چه مزه ئے څوک دشونډو تجربه کا
نبات هم ورته پیکه شی په خوارهٔ ګنے

عقله! مهٔ راځه هرګز که خیر ئے غواړے
یاد هجری ته شراب ورکړهٔ په کاسهٔ ګنے

---

یادګیرنه :- په قلمی نسخه کښے دڅلورم شعر دویمه مصرعه دپنځم شعر
دویمه مصرعه پیلے شوے ده - هرکله چه دپنځم شعر وړومبۍ
مصرعه ملته نشته -

ئه چه خبر دهجران ته کړے په یارانو (ق - ن)

## (۲۹۳)

یار مې حسن د مخ کوت په آئینه ګنې
وې ئې نشته هسې بل په زمانه ګنې

ماوې حُسن د دلبر و مژګه داغ کړه
هم ئې اور کړو د مهتاب په سفینه ګنې

ته عاشقه د خپل مخ حسن ئې ګورې
آئینه دِ لا زخمي کړه په سینه ګنې

ما به ستا د زلفو تار په بها خپل کړو
هومره زر که وې د چا په خزینه ګنې

د مخ رشک دِ داغ پرې کېښو ترابده
لاله که سود حاصل کړه په کینه ګنې

ختک څوک چه هر نفس طمع د دیدن کا
یو نګاه د لوئې دولت په مهینه ګنې

دا ستم به ستا د زلفو څوک پریکا
که عُمر څوک هېر مومي په فتنه ګنې

شکایت به ما ماله کړې ستا له خویه
که تا شیر د انصاف وې په نګینه ګنې

له خوږو لبو دِ تلخه ویـنا خېژي
مولا زهر کړل پیدا په لوزینه ګنې

مجرّی نوی یار ته څه لره هوس کړې
ته چه نهٔ وینې وفا په دیرینه ګنې

## (۲۹۴)

عشق د هسې شورش کا زما په زړه کښې
لکه ورږې په جامه ځوت په اوبه کښې

په پېښ مخ د تورې زلفې آشفته دي
ما وې اوژمه هويدا شوه په اوږه کښې

په شورش به ستا یاقوت غونډې نامې وو
هومره تاؤ که مهیا وې په سکاره کښې

زیرلباس د په بدن هسې زینت کا
لکه زیړ ګلونه واشي په راغه کښې

ما خاطر وتا ته دړکړو چه ساته ئې
کوم انصاف د دیانت کړو به ساته کښې

د عشق غم د اثر ډیر تر هغه تېر کا
څوئې برېت د مزري کا په نرمانه کښې

د شکیب غوا مې ئې ما ته کړه په څو کښې
عشق پلنګ غمزې مخفي وو په زاوه کښې

د هجران فکر بیهوش سکه اوده کړم
څوک به څه طمع د هوش کا په اوده کښې

زړه مې طمع د انصاف کاله د رقیبه
خاصیت د بازو غواړي په [illegible] کښې

چه کینه د دوؤ میشنو په وصال کا
څوک به ظن د خیر کاندي [illegible] ده کښې

شراب کله تاثیر هومره په سرې کا
لکه یار چه هجري مست کا په کاته کښې

# (۲۹۵)

کهٔ ئے اوگی په مخ د نسیم څڅتے
د لاله غوندے به تو ئے شي رتے رتے

چه دوزن تاب ئے نهٔ لري ملوکے — نور دِ نهٔ لري مرکز په چوهه ختے
پرشمه ئے د غبار نخښه اُونهٔ کا — تل وگل په کسي ښې کاندے ثابتے
حُرمت د لومو کا زړونه به نسي — بیا ئے څکه وطرو کنړے آرتے
سم کتل د شاه په لوري سهل نهٔ دی — د سري په نور د مخ کا چشم ستے
که مشکی دانے ئے نهٔ وے په عذارو — دم ړدِل مرغے به کله وړ آلوتے
هغه د م میُن په اوړ د ستم اوسه — چه صنم ئے د غماز خبرے نغوتے
محبت د میُن کوړه د لبري کا — زرکلی ئے په دړ پروتے وینے چتے
په سریر د حسن ناسته دارئے نشته — خلقے ئے خوی په جور کړے تربتے

وختمگ ته ئے په خوب تجله وکا
له آرزو ئے په مرئ کښے لاړے نښتے

## (۱)

هسې جوړ په انسان وې سماکا
چه ئې کاږ همه په شپږ د مدعاکا

کیفیت ئې مشابهه له بازیګرو
نوې نوې مخ له غیبو هویدا کا

ماه وغږ جوړه مهره د حقه بازو
په نمابنام یوه په خلهٔ بله پیدا کا

توره شپه ګویا پرده د نیرنګیو
وهړ چا ته روزانه بازی نُماکا

سره مهره په لبو اونیسي تیارهٔ شي
بیا عطسه د شپې مصدره د سپا کا

مزکه سره تکه شهپر شي د موړاتو
چه پیدا له فمه زاغ دزړ وهاکا

د مراد باده خرګنده کا سړی سته
بیا ئې زړ ورځنې بهته په جفاکا

نهٔ به یاړ ویاړ ته اوبخښي قسم دے
نهٔ به څوک ځنې حاصله تمناکا

په راستئ ے حال د ډېر و مُبتړ د ے
کهٔ جاهل د زړهٔ غوړ ونه په ویناکا

د درخانې مخ په خاوړو آلوده شي
دیوانه آدم ګُجا چه ئې صفا کا

مګر روغ تښتک غمونو ییونے کسړ
جواب کله له مرده وُڅوک رجا کا

بیا به کله د رخو ُوکا سنګارونه
چه لیمهٔ د حُسن سترګې بے جلا کا

نه به بیا آدم شمله په څهره کیږدی
چه د رخو ئې سینه یخ په تماشا کا

دګردون هسې روش دے له ازله
دوه مینن په زجر تل سره رسوا کا

ډېرې ډېرې مهرې بیا نۍ حیرانۍ ده        نهٔ رېښت په موت شته نهٔ څوک دعوا کا
کاږوانو ته په دا لاړل لا پېښیږي        غمزده قیصه دیو آدم شیدا کا
تهٔ سودا له سره اوباسه مجبوره        چه ئې عقل تن په تن درته احصا کا
په بدن مې وینهٔ اودري بېشکه        چه قیصه د وامق یاده له عذرا کا
څوک خبر په قطب وکا نړئ یاره اتو        کلنازو دکور بندي چه ئې رها کا
نازو ګله کله خاورے ډمېدان شوه        خوار قطب کله حیات چه ئې هوا کا
نهٔ به نور قطب زنده شي په دا دور        نهٔ به زلفې د نازو په لاسو بیا کا
تر زیبق به مضطرب شي کهٔ ئې واروے        چه رانجا د هیر له هجره څه بلا کا
نهٔ به وصل د رانجا اوشي له هیره        نهٔ به هیر دیرے روښنې په رانجا کا
الفته قیس ئې هسې رنګ جُدا کا        چه دتور قفس بندي غم د لیلا کا
مخامخ به شیرین نهٔ شي له کوهکنه        که پاره د قبر خوښه په غوغا کا
دحیات خواهش به نور د جلال نهٔ وي        کهٔ نسیم ئې خاورې ګډه له بوسا کا
ورقه په جرته لاړ خبر دِ واخلي        به خاورے ئې څهٔ شنډې په کلثا کا
اننګی د رعد کور په خُلهٔ کښې ژوي        رباب ګو چه دغضب توره تر ملا کا
چه دا تور قیس مجنس دګل څېرے دے        ځانئ لري که ئې اورنګ ته وبالا کا
نازک تن ئې د دمن یو لقمه کړ        تروبد کله تل دِ خاک سره وغا کا
هر عاشق چه تن شتي لري له دوره        په عذاب به ئې ښوں غونډے جدا کا
برمته دلحد نهٔ راځي په بیا رسته        نهٔ به څوک له مرګه اخذ خون بها کا
هسې نه چه تیغ ئې پخ شو به وژلیو        لکه څهٔ ئې کړه مهرئ هسې به تا کا

هر زمان چه خنجر اولاړی د قهر — له ګدایه برابر لوی امرا کا
چه خرم ئے په زړا له تاجه بیل کړ — تخت یه کله تل زینت په اورنګ شاکا
د فاضل په فضیلت ئے رقت نشته — نهٔ ئے توره لړ ادب د اولیاء کا
داوتیل به ارمان کیږدی په وکړی — کهٔ قرأت ئے په ممبر باندے ملا کا
چه آخر وفا له دوره موندہ نشی — مرد هغه چه په حیات همه تر شاکا

هجری دړ دپیوسته د حقیقت کړهٔ
کیفیت ئے کا نړی زړهٔ کره ژړا کا

# قصائد (۲)

## (۲)

زړهٔ مې ځکه د شادۍ په سینه سنا کا
چه قاصد راته خبر د آشنا کا

جم آسائے د رغبت په غوږ و آرؤم — فرخنده هدهد چه ذکر د سبا کا
وې مې حال د وطن وایه آهو ترږه — بلکه یون دِ په سرعت نسیم ته شا کا
غم وژلے زړهٔ مې تا په دم ژوندَه کړو — له عیسیٰ د مساوات هره وینا کا
لکه زهٔ دِ په نوید د خیر شاد کړم — خدائے دِ اجر د نیکئ تا ته عطا کا
غدارت له منځه او باسه صادقه — کاذبان په تفاوت ژبه ګویا کا
مسافت د روه ظاهر دے له دکنه — مګر باد ئې پس له تاخیر ئې راکا
وے ئې ته ترهغه جور و سے پردیسه — څو په توره زلفو کیل لاس د سبا کا
دمقصود غنچه دِ هسې شګفته شه — لکه باد چه د ګلو غنچو کنډے وا کا
روشن فکر دِ موتی پئي په مزی — دانائی دِ بناشته نظم انشا کا
که هزار ارتیتے کښینی په وطن کښے — څوک به تا غونده قابل زوئے پیدا کا
په کرم ئې ملهم او سپاره د اړه شه — ګردون تل دا هسے چارے په دا ښا کا
حقیقت به یک بیک درته بیان کړم — کهٔ ستا زړهٔ ئې د باور په غوږ اصغا کا
عاقلان ئې د هغو ته حیرانیږی — هر زمان هسے فتنه ګړه سما کا
غم الم همه همدم شهٔ د یارانو — د نعم په صنم کیل همه اعدا کا

یو مضحک[1] داکوړی په مسند ناست دے — له کرتوته ئے په کوړ شرم یحیا[2] کا
بیهوده عمل ئے نخښه د قیامت دے — له احواله ئے حیرت مرد و نسا کا
چه صورت سیرت ئے کورم عجب نهٔ دے — کهٔ په مخ ئے لعن سل ځله خُنثا کا
هغه ښهر چه محسود د پیښوړ وه — نن کو ترے پکښے چاله دبیدیا کا
نهایت هغه ودان ښهرکنډر شی — چه بومان ئے په کوټو بانډے صدا کا
نحوست ئے هومره اوړ په وطن نکړ — چه دانا ئے مصلحت د انتطفا کا
دا آتش به آخر اوسیزی مدکونه — مګر مړ ئے په کرم زوړ د مولا کا
ناقابل په قبیله کښے پیدا مهٔ شه — نادانی ئے په اولس ګړه وبا کا
په[3] هر قوم چه غضب دخدائے نازل شی — دجاهل حاکم په ظلم ئے سزا کا
برکت له هغه کوړه سفر کاندی — چه صغیر د بزرګانو ادب لا کا
یاران دوه فریقه وینم په وطن کښے — ډیر وشاګړه په جفا ځنو وفا کا
ثو سړی په دفا جوړ کمی ئے نښته — نور همه له ننګه اوواته جفا کا
هر چه لاف دیارئ کاندی په دا دوړ — ځان دِ هسے پروانه نکه ملا کا
ځنو هسے یکباره شرم ته شا کړه — چه وسله دِ په اولاد پسے ترملا کا
اخلاصی یاران ئے غواړی په زاویو — هر زمان لاسونه اونیسی دُعا کا
چه کښے دِ په باغ درئیتی په سیر — په ارمان د تیر ساعت قصّه بنا کا

---

۱ یعنے خند نے مطلب بهرام خان دے — ۲ دشاعر غور نیکهٔ۔
۳ اَعمالکُم عُمّالکُم — یعنے ښنګه عمل هسے عامل — (صحیح بخاری)

د افسوس شونډې په غاښ د قهره نیسي — ګهې لاس له درده مږي کله هــا کا

قصر و باغ د پېسې او غوړي تهٔ نهٔ وې — د واړه لاس په لېمو اونیسي ژړا کا

مجلس یاران دِ ګل ښتي چه څهٔ شهٔ — ګل له یاره په ژړا پوښتنه ستا کا

ترصد نرګس اخته ئې په یرقان دے — څکه تل په اقامت تکیه عصا کا

دېره و خلق دِ هسې په غم ډوب دے — چه ظاهر باطن دِ ذکر په ثنا کا

که زحمت په عوض حئ د چا له تنه — ستا بلا به په سر باندې غربا کا

ماوې لاف د یارئ ډېرو کړې ومانه — وې ئې کوم سړے پخپل قول رښتیا کا

د راحت په زمان مله په سخته تښتي — رب دِ سازه په دا هسې خوئ بلا کا

قسم قسم ذکر ډېر دے وایه نهٔ شي — تم احوال په وړاندې بېت هویدا کا

پس له تا هسې ساعت اولس ته پېښ شهٔ — چه په کار ئې مرد و زن همه خندا کا

اوس صورت د مهم تهٔ را ته بیان کا — غم خواري د پس فقیر کهٔ امرا کا

وې مې څو خبرې اونغوږه قاصده — طولاني حکایت تل کله بینا کا

نهٔ مې سړهٔ په غم شریک نهٔ لښتا نهٔ دی — نهٔ خټک د چا محتاج نهٔ ئې پروا کا

---

ـه یعني مُغل

دماهی په نس کښې پروت لکه یونس یم مګر خلاص به په کرم حق تعالیٰ کا

---

۱ وذالنّون اذ ذّهب مغاضباً فظنّ ان لّن نّقدر علیه فنادی فی الظّلمٰت ان لّا اله الّا انت سبحٰنک انّی کنت من الظّٰلمین ۝ (سورة الانبیاء)

او یاد کړه ذوالنون (حضرت یونسؑ) لره هر کله چه لاړ غصه یې خیال ئے اوکړو چه مونږ به هغه په تنګئ (آزمائش) کښې نه اچوو - بیا (چه هغه په آزمائش کښې ګیرشونو) هغهٔ (دکب په خیټه کښې او سمندر د ډوروالی) په تیرو کښې آواز اوکړو - خدایا! هیڅ معبود برحق نشته بې لتانه - پاکی ده تا لره په تحقیق چه زهٔ وم د ظالمانو نه.

هم په دغه حقله په قرآن پاک کښې یو بل ځائے ارشاد دے - وانّ یونس لمن المرسلین ۝ اذ ابق الی الفلک المشحون ۝ فساهم فکان من المدحضین ۝ فالتقمه الحوت وهو ملیم ۝ فلولا انّه کان من المسبّحین ۝ للبث فی بطنه الٰی یوم یبعثون ۝ فنبذنٰه بالعرآء وهو سقیم ۝ (الصّافات)

او بیشکه یونس په پیغمبرانو کښې وو (او هغه واقعه یاد کړئ) چه هغهٔ ډکے کشتئ ته منډه کړه (او چه د کشتئ خلقو د غرقید وله ویرے) قرعه واچوله نو (په سمندر کښې) د غورزولو دپاره د هغو نامه راووته بیا تیر کړو هغه کب او هغه د الله په نیز د قوم نه په تیښته د ملامتے قابل وو - پس که چرے داخبره نهٔ وے چه هغه د الله تعالیٰ د پاکی بیانولو نه وو، نو بیا به تر قیامته دکب په خیټه کښې وو - بیا هغه واچولو مونږ به ... او هغه ناتوانه او بے حاله وو -

هم په دغه ضمن کښې د صحیفه یوناه اقتباس (یوناه باب ۱،۲ آیات ۱۰۰)

" د خدائے پاک کلام په یوناه بن امتی نازل شو - چه پاسه هغه لوئے ښهر نینوا ته لاړشه او د هغهٔ خلاف د نیوره اوکړه ځکه چه د هغهٔ شرارت زما تر حضوره را رسیدلے دے - و لے یوناه د خدائے د حضور نه ترسیس ته لاړو او یافا ته اورسید و او هلته هغه ته ترسیس ته تلونکے جهاز په لاس ورغے او هغهٔ کرایه ورکړه او په جهاز کښې سور شو چه د خدائے پاک د حضور نه اصل جهاز سره ترسیس ته لاړ شي - و لے خدائے تعالیٰ په سمندر کښې طوفان ... وستو او خطره وه چه جهاز تباه شي - مانړګیان ویرے واخستل او هر یو خپل خپل خدائے یاد کړو او هغه غله

توکل ے د زړهٔ مدبغمه ناست یم ‌‌‌‌‌‌ هر چه کښلی ے په باب هغه په راکا

پاتے حاشیه .

چه په جهاز کښے وو په سمندر کښے گوزار کړه چه جهاز سپک شي . وے یوناه په جهاز کښے اوده وو . بیا ماڼو هغه له ورغلو او ورته ئے اوویل . ته وے اوده ئے ؟ پاسه خپل معبود یاد کړه . شاید چه موږ د هغه یاد شو او موږ هلاک نهٔ شو او هغو نخپلو کښے اووے . راځئ چه خپلو کښے پسک واچوو چه دا آفت په موږ د چا په وجه راغلے دے ؟ ته د کوم وطن ئے ؟ او ته د کوم قوم نه ئے ؟ هغه ورته اوویل زه عبرانے یم او د آسمانونو او بحرو بر د خالق نه ویریږم ... بیا هغو هغه نه پښتنه اوکړه . موږ څهٔ اوکړو چه سمندر قرارشي . ځکه چه سمندر ہم دا سے لګیا دے طوفاني کیږي . بیا هغه هغو ته اووے . ما په سمندر کښے اوغورزوئ نو تاسو د پاره به سمندر اودریږي . ځکه چه زهٔ پوهیږم چه په تاسو دا لوئے طوفان زما په وجه راغلے دے . ماڼو ګیانو بیا هم ډیر کوشش اوکړو چه جهاز ساحل ته اورسي . وے اونهٔ شوه ... بیا هغو خدائے ته زاري اوکړه چه اے خدایا ! موږ منت کوو چه د دے سړي په وجه موږ ه مه هلاکوه او ته ناحقه خون زموږ په غاړه کوه مه . ځکه چه اے خدایا څهٔ چه تا غوښتل موږ هم هغے اوکړهٔ او بیا هغوئ یوناه په سمندر کښے واچولو او د سمندر چپے موقوفے شوے . بیا هغوئ له خدایا ډیر اوویریدل او هغوئ د هغه په حضور کښے قرباني او نذرانے اومنلے . لیکن خدائے پاک یو غټ کب مقرر کړے وو چه یوناه تیر کړي او یوناه درے شپے ورځے د کب په خیټه کښے وو . بیا یوناه د کب په خیټه کښے د خپل خدائے نه دا دعا اوغوښته ....... ..

او خدائے تعالے کب ته حکم اوکړو .

او هغه یوناه په خشکئ اوغورزولو ."

دے ئے تا چه په همت کړه دا قبول له ۔۔۔ تر دا زیات به په تا څهٔ جور دچا کا

ولے غم دوا لیسته وُ لازمی دے ۔۔۔ هر بنده د خپلو فکر په دنیا کا

ماوے څوک چه د ازل په یک راسخ دے ۔۔۔ نهٔ ئے غم د زویو شته نهٔ د بابا کا

لا نطفه داخله نه وی په زهدان کښے ۔۔۔ چه نصیب په تخته نقش د سیما کا

چه زما په باب ئے کړی نور به نشی ۔۔۔ چه د دوئ په ناصیه وربه نُما کا

دا زیبا وَدانے څونے چه لیدے شی ۔۔۔ نهایت به ئے فلک سکه صحرا کا

نهٔ به زوئے دیدر په مُراد پرین دی ۔۔۔ نهٔ به پلار د پسرانو په رضا کا

په وصال غره مێن چه نن لیدهٔ شی ۔۔۔ په ارمان به ئے آخر موت جدا کا

نهٔ دچا غمونه کړم نهٔ مے پکار دی ۔۔۔ نهٔ د زوئے ورونړه لرفکر زما کا

په هغو ے دیر سلام وایه قاصده ۔۔۔ چه دائم په یک رنګئ سود و سودا کا

اوس ورځه په خپل اورسے تر کوره

پردیس هجرّی به غم سره وفا کا

—..—

(۳)

بهاري نسيم چه ګل د بهار وا کا — عنادل ئې په ديدن سترګې جلا کا
د خزان ستې څونه با نوا شي — برمنه وته حل جامې عطا کا
هلته څو توکه لازم دي په رياض کښې — سر له سره کهنه عشق برنا کا
ټکوره د نقارې چه شادي پا څي — داريه هم له مجلسه غم سو کا
زړې زاغ ملهم د ذړونو لازمي دې — شوخ و شنګ کړې په تې سرنا کا
دلربا ئې لولئ بويه په مجلس کښې — چه محفل همه رنګين تر ګلو لا کا
عجب تار پتار خورې په کرشمه شي — حرکت ئې د قامت قيامت برپا کا
هرا عضا ئې په رتبه خړه بنيوه شي — بل ادا ئې د کتو زړونو تالا کا
د طاوس بنيوه په څه رسي دو دئې ته — يو هنر ئې د بازي کو ترې لا کا
چه په خرخ کښې ملا دهره کا غم شکنې — فلک هم له څرخه صبر تماشا کا
تماشې ته ئې حيران له ډيره غمه — بازيګر سپهر غوښې د لاس شا کا
هسې شور ئې محبت په دهر کښې دي — چه برجيس زهره عاجزه په نخا کا
عطارد ګټه په خُله کا و زُحل ته — چه ئې ماه صفت و نمر ته په سما کا

---

يادګېرنه :- دا قيصده چاپ نسخه کښې نشته ـ

د قامې کا خمیده کا کل ئے زانګی
هر وینبتهٔ وګرته کښې اژدها کا

انجمن هسې رنګین کا له حضوره
چه چمن له قدره کم لګه صحرا کا

د سخي اموال به څهٔ وي تمیز اوکړه
چه بخیل ئے په هوس خونه بیدیا کا

سر با زانو ته سرلړ شي تر خسړی
د نامردو په خلهٔ مح دے چه بڼړا کا

که په زیری عقل غواړی مونږهٔ نشی
عشق ئے هسې له زړه ولړے په وغا کا

دیر حیرت په هره ژبه مهر کښېن دی
بے زنګونو ژبه تهٔ وی چه وینا کا

دی حیات نقش دیوار شی بے زبانه
مګر دوئ له خیاله تهیه کله تا کا

د بدئ بدله بنهٔ کښي له رندانو
فرښتې له خرمی قلم خطا کا

کهٔ د غم علیل لری طبیبان غواړی
الله وهی بنکرے تار پتار هبا کا

دا مجلس چه ئے عیان مشاهده کړه
بل جنت په دوړ کوم چه ئے رجا کا

سر با زانو طواف نن د جنت وکړه
زاهد ګوره چه عبث طمع سبا کا

تر خاطر به د هجری نادان څوک تهٔ وی
چه همیش په تیر ساعت پسے ژړا کا

# (۸)

چه آغاز په سحرګاه د شاه نوبت کا
را په یاد د هغه تیر عمر نوبت کا

کوس جفا د اقبال وائی له اکبره
بیا قصّه د جهانګیر دسلطنت کا

قرناخاندی په قهقهه د حال په ژبه
التماس له عاقلانو د نصفت کا

په ګفتار کښے ئے نقصان د کذب نشته
مُعتبر شاهدان تیر د شریعت کا

یعنی دار د زوے ئے تن پرون پد روځ
ګوره ټوک په سبا شاه د مملکت کا

چه دبدب د اقبال چا ترسره سنکړ
اورنګ[1] وے په اورنګ[2] هسے نخوت کا

کوس قرنا اګرچه یاد کا دوړانو سنه
وے نائے[3] هم ګوره سوز په حکایت کا

دیر مُدت بنده له نایه مقرب شه
شپ وروزئے دا آواز معاحبت کا

بل کلام له نایه ما شنیده نکړه
سر په سرواړه له هجره شکایت کا

ګاه خوبی د سکندر له دوره وائی
کله یاد د فریدون شان وشوکت کا

ګهه نسبت د ضحاک نوم کا په جورونو
ګهه رحمت دا د نوشیر په عدالت کا

---

[1] اورنګ زیب بادشاه [2] تخت وتاج
[3] شپلئ

گهه دجم حسرت دجام له هجره واڼ
گهے یاد دبخت نصر شقاوت کا

گهه شکوه له شیطانی نمروده کاندی
گهے کوږ فرعون یاد په حقارت کا

گهه گیله کاندی دوصل له بهاره
واڼ نهٔ لری بقا په تلهٔ سُرعت کا

یعنیٔ غم واړه مثال دے په دنیا کښے
بیهوده شکوه وکړے د فرقت کا

زهٔ یاریٔ دبیلتانهٔ په اوږ کښے اوسوم
رب ږد ورک بیهوده کار د محبت کا

زهٔ بنده په ځائے ولاړ هنکو بکوشم
چه سرنا بیان د وصل مذمت کا

په هوزړهٔ ئے وئیل ځکه تاثیر کاندی
چه ئے ژغ اسرار پیدا دحقیقت کا

دختک بنده سوګند دیار په سترګو
کهٔ هرګز سرنا بے ځایه نصیحت کا

کهٔ دحال په نظر اوګوری ختک ته
ورته یاد د هغه تیر عمر لذت کا

په څو رنګه ناله وکا له دوړاسته
یو په یو خوږ بیان د ولایت کا

باغ وراغ راته حساب کاله اوله
بیا پسے دوطن یاد کوُئے محلت کا

دهر مخ هجر چه داغ زما په زړهٔ دے
دَم په دَم راته مثال هغه صورت کا

په اظهار ددے مذکور دسُرنا څهٔ دے
خو زما په ناله خوښ شهٔ اشارت کا

څپل نصیب له هسے یاره مصاحب کړم
چه مے کسی بےادبو وی ملامت کا

تهٔ به څرنګ فغان نکړے اے ختکه!
چه آشنا ستا په ژړلو بشاشت کا

کانړی هم په نوحه نرم د هجری شی
چه په زړهٔ دګزشته دور صحبت کا

# (۵)

چه نسیم ئې شم د زلفو په صعود کا
په هدیه ئې هر پسر د باغ مسعود کا

چه دا بوټي چه ئې غنچه شي معطره
تو له خله سره کشاده په درود کا

ربه لاړ ئې په ریاض کړه برابره
چه هر ګل ئې له عذارو لون سود کا

هغه دم چه قدم کیږدي په ریاض کښې
په خدمت ئې چنار وا منګل ئې زود کا

د سروو په جنبش هسې ګماني یم
چه د قد سیالي ئې نه لري جمود کا

په رتبه د حسن تیره تر لیلی ده
مجنون ځکه سرنګون ورته سجود کا

په لیدو ئې د عذارو زړه ملبه شي
لاندې باندې ځیګر شین خال ئې کبود کا

تورې څڼې چه وُل وُل کا په هر لوري
ګویا جنګ لره په دا د زنګ جنود کا

همسري که ئې آهو کا له رفتاره
په ناوک به ئې زخمي نازک وجود کا

بیا په شین شین ځي سنګار ئې وکړ
مړه غمونه به هر چا وته موجود کا

سم کتل ئې زیبا مخ ته سهل نه دي
د هستئ له بوده لرې تار و بود کا

کوم بشر ئې حسن اولیده په سترګو
چه ئې نه په زړه کښې یاد نوم د معبود کا

د زلفینو وُل ئې واګړ شانه کاندي
اس به مخ د زمکې واړه ګله عود کا

ذړونه هسې په نګاه له تنه یو سی — لکه تن د کهرباچه کاه ربود کا
خوار عاشق ئې په لمبه د هجر اوسوځ — لا به کله ور بنکاره مخ د بهبود کا
سهرګان په هغه مژکه نوبهار شی — هر طرف چه ئې د ناز جیش ورود کا
محتسب قاضی ګدام خبر دِ واخلی — په سُنی شیدائې جور تور هنود کا
خاصیت ئې د ذړه سنګ نرم به نشی — که ځ عاشق د وره غبار د آه په دود کا
سُور سالو به ئې څوک لرې کا له مخه — مګر باد مُباهی به دا مقصود کا
د سپند غونډې ئې تن په اور لوګې شُه — که ئې به نظر و مخ وته خسود کا

چه ئې تن هجر دیار په مجرّی کاندی
نه ئې ګبر په مسلم نه ئې جهود کا

## (۶)

چمن شنے جامے پہ بر دھر پسر کا
لون لون دستار ونه ورپسر کا

داودی زنبق پہ سر کا ململونه
دسوسن پہ کله جوړ اودی مغفر کا

دلاله پہ لاس پیاله ورکړه دمیو
دهوس دار به پہ کف دنیلوفر کا

مُکلّل افسر دتاج پہ هامه کیږدی
کرّو فرئے شرمنده شانه پہ سر کا

لوئے ملک دچمن وارہ رنګینه دی
لا بنیوئے پہ زرو کا شمله کلمر کا

صد زبان ګل دګلو بنهٔ طغان دے
چه قبائے مرمری خمره د زر کا

پہ جلوه دګلو مړه مزکه تازه شی
کل عالم ئے له نوروزه کرّوفر کا

بضاعت ئے صبے برلینبی له زینته
چه رونق ئے دلباس خیره اختر کا

دضیا تیغه ئے سر پہ فلک کیږدی
دهر ګل روشنی ګل شعله دنمر کا

همه شاخ دونو پسین پہ شګوفه شی
وله هر ورق تیرهٔ سکه خنجر کا

دقدرت عطار ئے تن هسے مخمور کړ
چه پرتوئے دچمن خاورے عنبر کا

پہ دیدن ئے دهر چا کره نشاط وی
مګر غم شی پہ سپهر چه اختر کا

له عنار وئے ګونه دریاض خهٔ شی
لکه شین مینا پہ نس د زر دختر کا

له ازله د جمال زیور قسمت شـهٔ
د خپل مخ په حسن کبر هر دلبر کا

د میرے غاړه نازېږی په اوبږیو
بېره خان فخر په ګل د پیغمبر کا

راسلی چنبه ګهنه د دیا ضو نو
مستے ځونه خیال د ذرو په زیور کا

کړه مار غره په حسن د کهدرنګو
نو نکی ایلم د ماغ په صنوبر کا

میر کلان د خان په اسم مفتخر شـهٔ
د بنهٔ مخ غونډے په لوټ کبر خیبر کا

سرے ځکه مسا وا کا له فلکه
د رنډانو ځانے په توره لواغر کا

که دا شعر عنادل واروی په غوږو
په یقین به ے اُستاد بلکه پدر کا

د ځیګر وینو ئے جوش وکړ له غـمه
د هجری ستر ګے سپیرے په موج ئے تر کا

—…—

لے د خوږے په قبله د ختکو دیو کلی او غر نوم ۔
ئے په کرک ضلع کښے دیو غر نوم ۔

# (۷)

چه له تا نه سلام راغے په باربار
په زړګی ئے ملهم کیښی د فـــګار

له سلامه دِ پس دا چه څټ مے خوږ دے — دُعا کړه که زړ مے روغ کاندی ستار
له دُعا مے کله هیره یو ساعت شے — کهٔ په ژبه ملامت کړم صد هزار
په دومیر که دِ دانه خټلے نهٔ ده — دا آشنا بیلتانهٔ کړے دے پرهار
سیه مار لکه زما په پښو اُوده شهٔ — غم ئے ستا په څټ که کړے وی ګذار
چه د زړهٔ اور دِ وَس وَته روان شهٔ — له هغه تاوه ګردن دِ شهٔ بیمار
چه دَ زړهٔ په سر مے ستا نامه ده لیکه — ګمان مهٔ کړه چه به ځائے وی دبل یار
ښائسته په جهان ډیر ګلے ګلے دی — زما زړهٔ شهٔ ستا په مینه ګرفتار
په ماه زمان اختر دے چه تاوینم — بے دیدنه دِ دکن شهٔ راته خار
په راحت کښے دروغژن د مینے لاف کا — په سختئی کښے زړ تر زړه شی ویزار
په اخلاص شه دا روانه فکر مهٔ کړه — وهمت وته شی لنډه لویه لار
کهٔ مے قدر د اخلاص لرے په زړهٔ کښے — بے لما به وی اغزی درته بهار
تل دِ لاف دیت کاوهٔ په خپل وطن کښے — دکن څهٔ دے کهٔ ښتیا کوے اختیار
ترهندوے کمه مشه په یارئ کښے — چه په یارئے داوره نهٔ کا هار

دعاشق په زړهٔ کښې ځائې د صبر نهٔ شي
همه حال ې درته وکښي په گفتار

کهٔ په ما پسې رانشې وړکن سته
په دړوغ دِ راته کړهٔ دمینې شمار

دلیلۍ غوندې رشتیا اوکړه نامي شه
په مجنون پسې وطن کړه هندو بار

غه وعدې کهٔ په دړوغ دِچه کولې
زهٔ دِ ننشم تر تا پورې شرمسار

د ژوند و نه خیر نهٔ یم چه به څو وي
کهٔ اصلي ئې دین ن راکړه په تلوار

چه دعشق سورو دِ زور راباندې وُکړ
تار په تارئې کړه زما د صبر هار

په دکن کښې ناوې جونه کمې نهٔ دي
کهٔ ې زړهٔ په چا کولې لبن قرار

همه رنج راته آسان ،کهٔ یار لیدن لې
بې جوړه راته قیامت شهٔ روزگار

چه زهٔ ستاله درده سوزم په دکن کښې
تهٔ به څهٔ کړې کهٔ وطن دِشي گلزار

نورهمه بلا آسانه چه په تن دهٔ
جدائ ې زړهٔ چیچي لکه ښامار

کهٔ پما پسې وهرڅهٔ ته شا نکړې
په لباس دِ کړما وهٔ راته بازار

شیه او ورځ دیار دیدن له خدایا غوارم
ددنیا اسرې همه دي تار پتار

غم رنځوړ سره اخته د روغو څهٔ دي
چه بې یاره ئې نور نهٔ دي څهٔ پکار

د فاني سرایه د باد غوندې گزر دې
خدائې دِ نهٔ کا په یارۍ کښې څوک مکار

کهٔ عراقي غوندې په تگ ولاړه نشې
نور دِ اوشلوهٔ زما د مینې تار

•

بیلتانهٔ دِ لکه اوړ اشرف ئې وسهٔ
تردیدن پورې اوگوره څهٔ شي کار

## (۸)

ګهے آه ګهے افسوس ګهے دی دا کړم
کله واه کله دریغ کله ویلا کړم

خوب خندا په ما حرام صبر عدم شهٔ — تل ژړا پیهم فریاد کله هاها کړم
چه د زړهٔ لمبه خروج وُکا له فمه — د لوګی په زلفو پټ مخ د سما کړم
بس خروش مے سترګے بحر د چناب کا — چه رایاده د شباب تیره هوا کړم
پسرئ راوستهٔ د هجران په زور دمتو — ماوے زر به ئے مغلوبه په وغا کړم
دهَرم نشان ناګاه په بیره اوُخوت — ځوانی لاړه په ګریان زهٔ ئے رِها کړم
مخ په وړاندے میل کا راځنی تبنیتی — پیره نهٔ کا په ستنه که سل بلا کړم
هئے هئے څهٔ خامه یاری وه د ځوانی ئے — چه خبرے له فریبه میم ویا کړم
ګمے ژغ له دُوکه وکړم ، چه سپهره! — زهٔ دِ و ے هومره لرے له آشنا کړم
کله ور د ګیلو پرانزم له دی ده — ملامت واړه ستم داورنګ شا کړم
نهٔ د چرخ له دوره خوبُ نهٔ مے ګیله شی — نهٔ د شاه له جوره غم نه ئے پروا کړم
چه دایمُ هیجات کوم روغه عالمه! — د فرقت په تُوره غوځ ځکه غوغا کړم
کشکے زهٔ هرګز بینا په دُنیا نهٔ وے — چه په غم د هجر سترګو مبتلا کړم
ځو مے زړهٔ په وصال خوښ وو له یارانو — یو په زړهٔ هجر سترے په ژړا کړم

که بیا اوکسی هرګز دچا و مخ نسته — کسی تور به ئے په ستن سره جدا کړم
څغه دم چه مے شربت د وصال نوش کړ — شنهٔ فلک دهجرسم لکه سزا کړم
دغیرا په مخ کجا وطن ئے کوم دے — چه کمر دجدل تینګ پسے غزا کړم
ګونډے وی ګریوان ئے اونسیم په لاسو — پارچه مزکه ئے په دم ګل ولا له کړم
نه نه لاس به زما بر په هجران نهٔ شی — مګرکور ئے دسحر په آه صحرا کړم
ما وصال په خوب لیدهٔ کهٔ هرګز نهٔ وو — کهٔ مے اولیدہ بیوفا څهٔ ئے ثنا کړم
دفرقت قصه کهٔ وایم په څو رنګه — لا بهتره ئے بیانه تر سُرنا کړم
نه نه غم دهجر ډیر دے وایه نشی — حال ئے زهٔ به کومه ژبه ټن ادا کړم
نهٔ به هر وینیتهٔ هزار ژبے پیدا کا — نهٔ به ختمه دا بے حده ماجرا کړم
له خوسنه جودانه، له کوهه کانړے — په ډیر ډیر ځ ل ئے ګونډے هویدا کړم
فلک څو په ارمان بوتهٔ له جها نه — حکایت دکوم اول وروستو دچا کړم
په دا څو تو مرهٔ عُشاق او څارو مه — کهٔ مذکور دملو کانو مهیّا کړم
تیرساعت دمجنون وایمه له اوله — که پخوا قیصه بُنیاده دلیلا کړم
قباد چرے تخت کجا افسر ئے څهٔ شهٔ؟ — که ویرانے ما ئے یادے دکسریٰ کړم
دعایت ئے برهنه له فنا ضلا نو — له سلوک ئے هویدا له اولیا کړم
دجهان په ریاض ګل دمراد نشته — طولانی قیصه به تم په دا وینا کړم.

دفنا بنادی نیب شوه دکودنو
زهٔ هجری دغم وطن چه ئے دانا کړم

# «۹»

یوه سترگه یم دگنک بله جمنا کړم
چه رایادے برنډے سترگے داشنا کړم

نور به تیر عمر را نهٔ شی په رب گو
کهٔ نظر تغیر له کسیو په ژړا کړم

سر دعیش په دنړاڼی را څخه لاړهٔ
خرمی په کوے چارے ددنیا کړم

ما په کله همراهی د ژړیو پرښوه
په ستم سپینو ویښنو څنے جدا کړم

دځوانئ موجونه مات کړهٔ سپید یو
لوڼ ځکه دائمی صبح مسا کړم

چه اثر د سپینو اوویښم په زړے
بڼ ئے لرے دم درخال لکه گیاه کړم

دا اثر به پوشیده له خلقو نهٔ شی
که هرزوئے په حیله کښے اختفا کړم

دریغه څهٔ عجب زمان وه دځوانی ئے
په هوا راځنے لاړ زهٔ ئے تنها کړم

نن مے سود دارمان څهٔ چه پیره نهٔ کا
کهٔ یو کف په بل وهم له غمه ها کړم

کله چا په ناله تیر عمر حاصل کړے
کله آه کله افسوس کله دروا کړم

کیفیت دعمر یو په یو ښکارهٔ شهٔ
اوس به نوک دقلم کوز په مدعا کړم

تهٔ زیبا په گتو را نشه مشکینه
چه املا انصاف دعدل دیباچا کړم

خدائیگو شک گمانی نهٔ یم پخپل وزر
ناپرسه ئے معذب په سالها کړم

زافضی په گناه بند کا زرے پرین دی
زهٔ سنی ئے په کالونو مبتلا کړم

ترهٔ منډوے سوز دسجن پما ډیر دے    په حساب ئے زهٔ بتر تر کبره لا کړم
وار په وار حقیقت رسی دبند یانو    مګر زهٔ ئے چه له نوړو میړا کړم
داپه کوم کتاب روا دی مسلمانو!    چه ناحق ئے مبتلا په دا بلا کړم
داسلام روش کهٔ داچه ئے یادشاه کا    نهٔ به نورجهودی بند په نصرا کړم
چه آئین مے دِینهٔ اولیسد ګیله مهٔ کړه    کهٔ په غاړه نو زنّار لکه ترسا کړم
دمسجد خلق مے داد نهٔ کا یارانو    په دیوړه به ئے طلب له پچارا کړم
خدایا ما په عمل هسے مسلم مهٔ کړے    چه هوا دهندوشی مسلم ته شا کړم
عدالت همه ضعیف او جور ئے زورشهٔ    دانصاف طمعه خطا فریاد به چا کړم
نهٔ پرسش داحوال شته نهٔ تفحص کا    په تتش خط ئے دشیعه سرد بغا کړم
نهٔ ئے بولم چه شیعه نهٔ رافضی دے    په کومک ددواړو کرم دے فتوا کړم
نهٔ مے زوړ دمیتوشته نه عرضه رسی    حواله به په مولا دبد سزا کړم
نهایت به مملکت دمراد خپل شی    کهٔ رضا خپله بے روځه دقضا کړم

دنیاوی خلق باطل یاری ئے خامه
زهٔ هجری په کرم طمع له مولا کړم

## (۱۰)

نن سحر چه مشرف په نوبهار شوم
له هوسه د هر ګل تر وُنے ځار شوم

واله وار مې دوی کړې د ګل تړوُنه
تر قدم مې نن دهٔ لاندې ګنهګار شوم

مالی لبی په قهر پاڅیدهٔ له جوشه
زهٔ په خپل عمل د سهوے شرمسار شوم

ناڅره د دغا هسکه نګهبان کړه
معاتب د نیکو بدو په دا چار شوم

عنادل په دا غوغا راغلهٔ په بیړه
مخاطب د کیفیت په استفسار شوم

سرګزشت مې یک په یک ورته بیان کړهٔ
مفصل د سوګندونو په اظهار شوم

دلا له طاقی مې یاده په قسم کړه
بیا له پسه د سلاړې په دستار شوم

په خوګه مې د سرو لاسونه کښینول
بیا له سویه په څو رنګه د چنار شوم

یو په یو مې د چمن ګلونه شمار کړهٔ
له عفو د عروسانو په سنګار شوم

د فاختې ژغ مې اوخار په دار وش کړ
سوګندی د دري زرکې په رفتار شوم

مکرر مې جلوه یاده د تیکے کړه
هم ګویا په شرافت د چندن هار شوم

د بنادی داریه مې یاده په قسم کړه
پیاپے په دهٔ غاړه د اختیار شوم

د تصدیق ګټے همهٔ په دیده کړے
قسمی چه د مرغانو په چیغار شوم

په فرید ځے د بقا ځے ګویا شوم
چه حیران د څرخ مې په وقار شوم

دا احوال چه مې په سترګو مشاهد کړهٔ زهٔ ئې هم د شرفاءُ په تذکار شوم

لائق نهٔ د سوګند بل نهٔ وو په مزکه چه په جو نو سوګندی د کړه مار شوم

په دا نام مې ذکر ختم د سوګنـــد که مشرح له حقیقته په ګفتار شوم

وې مې ګل لکه لیلیٰ زهٔ ئې مجنون یم پـه لیـدهٔ ئې له شعوره قیس وار شوم

شاخ د ګل په سهوه مات زما له دسته ترا بده زهٔ خجل په دا کردار شـــوم

بلبلا تو چه تقریر زما نیـوش کړهٔ موقر ورته علن د عشق په کار شوم

په څور نګه ئې تو بیخ د مالی وُکـړ له شِدته خلاص په سیله د عزار شوم

نور مې سیل د ګلزار کړ بې زحمته عنادل همه تبنګر زهٔ ئې سردار شوم

هر بلبل د عشق سبق اخست په مینه په بیان د محبت مسې اوښا ر شـوم

ناګهانه د خزان لښـکرې راغـلې له اثره ئې نرې لکه یو تار شـــوم

لا ګرمی د مجلس نهٔ شوه تر کماله په رحلت د ګلو سل ځانه فګار شوم

د دنیا بنا دی له غمه سـره جـوړه ما نظر په ګل کاوهٔ زخمی په خار شوم

چه پرون مې د یار وصل ته هوس کړ نن ئې ځکه د فرقت سره کنار شـــوم

سرانجام د هتول مجلس سپهر ځـهٔ که چه سِپند غوندې جُدا ځئې په نار شوم

عنادل وغږ پـه غرهٔ اونیـــوله تاوه زهٔ هجري په ژړا سر د صند په لار شوم

# قصیده ۱۱

## مشتمله په مذمت دخیل ځان وغیره

بود واصل مې پښتون و ئې ختک یم
سر تر پایه د نادره فکره ډک یم

دختکو حسن خیل له هغه کوره — په نسب سکه وراره د میر بازک یم
دخوبئ ځمز مې څود ې تمین بویه — په کالونو مشر ورور دخان برک یم
نام ونګ مې پس شا قبله مې نس دې — په حرص ترجهان تیر لکه بارک یم
دین دنیا مې په دا مخ همه تر شا دی — زه بنده د قاب پلاؤ هم دا ثمک یم
رګ وخون همه د توم وو جوش ئې وکه — چه جنګي له سکه ورور په بنانګ یم
نه حورا د جنت پیژنم نه جونه — په هوس ئې سرشندم یار د غونک یم
ترکونک چاپیره مه ګرځه شابده! — ګنړه خون به دې یغاړه شي ټوپک یم
نکلو! ته چه حقه غواړې خبر نه ئې — زه پدر په نان شندم هغه مردک یم
نه همت د باز لرم نه سونا ګیر یم — جت آسا په چټو سر لکه چیچک یم
نما مه غواړه هنر د شهن اتو — که نامه مې میږ د باز وه مشکرک یم
د بنو طمع نما مه کوه دروېشه! — دا خصلت په سما کین زه په سمک یم
بازه! ته چه یغ کړې مرګ دې روا دې — زه په ځائې دامیرخان صوبه متک یم

قادرخان دِ غرورنهٔ کا په بولاقـــو | نن په تاخت دجیش سرلکه اوزبک یم
کهٔ غلیم رستم وګیو دے دار مے نشته | هسے برند د زیړیوالو په کومک یم
دنیکونو مقبره ے کړه هموارة | کښه سر د زیتونا مضبوط کوتک یم
په قطار دګولو راغلم له عدمه | هم له دوئ سرة باله شم که زیرک یم
دبهبود طمع له ځانه خطائ دة | چه په رګ له کوه ګودانه مشترک یم
د وروئ نامه راپورے دګونګی دة | زهٔ کهٔ هر څو مبارک لکه بوبک یم
هسے زشت عمل ے اولیـد له تاکسیو | چه له ګرګه لیدهٔ نشی نهٔ برے شک یم
نفرین سل ځله په ذاړو د بهرام شـه | لا زما په بزیرة هم چه ئے ا خوک یم

ما مجرّی په هر طرف بے وسه بیائ
د نصیب په چوګان بند لکه پتک یم

# قصیدهٔ ۱۲

## د قلندر د غزل جواب

---

څکه تل د زړهٔ له جوړه په فغان یم
اسیر کړے ئې په چاه د زنخدان یم

د خلاص طمع له چا وسیله څهٔ کړم
کښېوتلے د خونی مخ په زندان یم

مګر باد ئې زلفې راوړی په دا لوری
منتظر ئې د عنبرو په ریسمان یم

تل ژړا څکه کوم د شاه له سترګو
چه ویشتلے ئې د عشق په کمان یم

نهٔ نهٔ! جور ئې د انهٔ لکه مے وُوے
په وسلی بیت ئې زړهٔ له پښیمان یم

مستے چشم ئې ترکان دی قصابی کا
مخامخ ئې زهٔ ولاړ مثّ د قربان یم

د جهان ښکلی مے خس شو په نظر کښے
څو ناظر د مستے شا په دوه مرجان یم

چه په تاب ئې زړهٔ او تن پارهٔ پارهٔ کړه
د بنهٔ مخ ضیا د اوړے زهٔ کتان یم

شکیب څشکل ستا له دړه کړم دبرے!
محبت په لاس نیولے ترګوان یم

کهٔ ئې زړهٔ په ستم نهٔ دے زما وړے
په جناب ئې ولاړ ونے صروان یم

د بوسے په خواست ئې قهر راته او کړهٔ
په غضب ئې لاتازه د ګل ترشان یم

په مستئ ئې نسته ساته کړه یارانو!
په ناحق ئې زهٔ نیولے په تاوان یم

دا مهینه قصیده چه مې انشا کړه — عجب کړې په اشعار قلندرخان یم

ما ئې شعر هسې ډک له فخره اولیده — چه حیران ئې د شاعر په دا ګمان یم

هومره کښ بیائی کا خپل شعر — وائي ښه ئې په دا هنر د شاعران یم

د پښتو ژبه ئې تاوده کړه په نظم — د مغلو په شعر هم عالي مکان یم

خوشه چین د پښتو شعر شاعران دي — زه دهقان د بلاغت فیض رسان یم

دې عطا د وړیو کا دانه ئې نشته — خندا وړې په خطا ددې دهقان یم

سر تر پایه مې ئې کښت همه پړه کړه — نه ئې شکي په یو خوشه نه ئې په دان یم

د پښتو شعر ئې سم له ډېرو نه دې — د مغلو شعر پورې لا حیران یم

یا شاعر چه دا غزل وائي کیفي وو — یا ئې زه خوبئ ته نه رسم نادان یم

شاه د شعر په پښتو ژبه هغه دې — چه ئې زه حلقه بګوش د شاګردان یم

دې په ملک د نظم شاه باور ئې مکړه — که مرزا له ګوره ژغ کا چه سلطان یم

څو مېږی غوندې ئې پروت یم په جوس کښې — شاعران همه مېږي زه سلیمان یم

ما مجرّی ته ئې مجران دکن لمبه کړه
ځکه تل د یار له غمه دُر فشان یم

# قصیده ۱۳

## مشتمله په بیوفائۍ دَ عمر

پوښته وُلاړهٔ هغه ښهٔ مشُین یاران
چه به تل وو په مجلس سره خندان

دهر یار په مکان ورشم نهٔ ئې مومم
ځائې ئې اووینم دنا سته ولې وُران

په هغه ځائې چه موتل سره خندا کا
نن سیلاب کړمه د اوښکو بړئې روان

تهٔ په کومه طمع هومره بیغمی کړې
چه لړې په مخکښې کور غونې زندان

لکه تهٔ چه یتیم پاتو ئې له پلاره
ستا به هم شي زوئې هسې یتیمان

دُنیا وی چارې سیا لاخوب لیدهٔ دی
محبت ئې لیونی کا یا مستان

تا به کله زنده پرېږدی په دنیا کښې
چه ئې بوتهٔ په نوبت ستا بزرگان

کور دحال په ژبه تل وائي وتاته
بنده! څو به تهٔ بنادی کړې په جهان؟

کهٔ هوس په طویله کړې د تازیانو
کښې تول کړې طهطران لړې فیلان

کښه دجاه په کروفر هسې غره شې
چه سیال نهٔ گڼړې په مزکه څوک دځان

کله گرزې په طلب د لبرې غوارې
کښې لار په تماشه کړې د بوستان

څو به سیر په صحرا کله د باغ کړې
راشه اوگوره نتَلی مرگ اخوان

تن په تن ئې برهنه زما لقمه کړه     ترې ئې راښیوه همه شوکت وشان
چه تو تا اول ئې کړې دا ځسې چاړې     واړه تن زما په نس کښې دې پښیمان
ترابده ډځائې زه یم د استوګنې     لما وې کړې آخر هسې نسیان
یو نفس ناسته زما له تخنګه اوکړه     چه دې اوښیم همزولی عزیزان
ډیر به اووینې په توره تاریکۍ کښې     بناشته زلمی پیوسته بندیوان
بوئې نه ورځه حاصل له دې جهانه     مګر سل زره داغونه د هجران
دسکوت مهر ئې جوړ په ځسې خلوکړ     چه بلبل ئې شاګردی کړه د زبان
ترګیدړې مې تن بهتر کړه که ئې ګورې     لوئې همت چه ئې ګیدړ کړل شیران
چه هر ګرئې غسل نکړې بې کلا بو     اوس ئې حظ په غوښو کا زما کرمان
دشاهانو په سر ګرزه ادب مه کړه     میر تزک ورسره نشته نه دربان
په جهان که ستمګر وو لاس دبردې     چه رضا ځسې ئې نسه ترګریوان
چه په تن ئې دګل پاڼې درشتی کړه     په حیات به تا بلل پسته دهان
نکه زغاښتې په حیات ددوئ کتو ته     له دید نه به ئې تن شي ګریزان
اوس که ست دبوړې وکا په زاریو     ترې به اوتښتي بیشکه عاشقان
له دروغو ډیر بعید ویښم بیشکه     دا مذکوره چه مفصل کړو ما بیان
که منکر نه ئې په زړه له دې وښیلو     تار ډې وې هومره اوبز دکه د کمان
چه ایمان په دا لرې هوس په خو کا     زه هر ګوړ په دا خبره یم حیران
دحوص تیلې ډ ډیره سرکشی کا     په هر لوري بیهوده ویښم دوان
دواړه واګې ئې دصبر په لاس نسه     دراز نه دې دشیرین عمر میدان
آرائش دبیوفا ګوړونو مه کړه     قدیمی وطن ته استوره سامان

دجهان نقش ونګار همه باطل دی     فریب مه خوره په زینت د این وآن
توبه کړه د بنده عمل فائده نه کا     پس له مرګه بیان د بنده عمل ارمان
غنیمت ګڼه فرصت زیرمه دځان کړه     مرګ رخصت د امان نه کا یو زمان
زوی، لور، عزیز کله پکار یږی     حلته مه بښه مسلمان ته مهم ګران
دهر یار موت جرس په تا خبر کا     په معنو یې نه پوهیږې ته نادان
دغفلت په خوب اوده کله به ویښیږې     رفیقان دې په سر لاړه د کاروان
داحمد رسول په حق دوه یاربه!     خطا مه کړه د ختمک بنده ایمان
بلکه دا دعا یکسانه ده په واړو     ایمان مه شه کم هرګز د مسلمان

دعدل په تهئ د توره په ګناه کړه
هجری وینځه ئ داوښکیو په باران

—— ... ——

# ۱۴
# قصیده

## مشتمله په احوال د قبله گاه مرحوم

همه غم لره موجوده دا فنا ده    په خطه ئې تل ژړا کمه خندا ده
نه نه ځائې د خندا نه غلط ئې ووې    بلکه دا همه ژړا لره پیدا ده
د امان لورې به چرته وی عالمه!    دلے واړه د مرګی شور و غوغا ده
د صفی اولاد رمه دې ئې لیوۀ شۀ    دم په دم ئې ځکه خوری چه ئې غذا ده
خوب به څرنګ په حیات کانړې بې غمه    په هر زړۀ چه رقم ډیره د موتا ده
ما او نۀ لید هسې زړۀ په زمانه کښې    چه ئې نۀ موت په سر ایښې ئې عناده
نه نه دا عنا خاصه په انسان نۀ ده    په دا داغ پښه اخته ده اشیا ده
زما زړۀ چه ګواهی نه لی په دې وغه    په دا قول ئې راکړې نن فتوا ده
څۀ ئې ووې په وئیل غوږ یاسه زیرکه    چه خبر ئې په ماکړۀ واقعه دا ده
یعنی نن مغه امام د ننګیالیو    په دنبره غزب لاړ دکه ئې خوا ده
مسافر شۀ مغه شیر د ځبالو نو    چه زمره ځنې اویۀ داورنګ شاه ده
نۀ ئې څو یه پرې حاضر نه برادر وو    ساه ئې قبضه د غمونو په صحرا ده

ل دنبرې غر دآدم خیلو آفریدو د حسن خیل ځانګے په علاقه د موسٰی درې په خوا کښې دے .

نۀ ئې مخ دخپلو اولیدۀ په سترګو — نۀ ئې کړې چا په رنځ کښې دلاسا دہ
یا ئې رب په حال خبر یا زۀ پوهیږم — چه له خپلو ئې لیدلې څۀ جفا دہ
دجبال غرڅۀ ئې ژاړي په زار یو — دسړیو باندې هڅې نۀ ئې صدا دہ
مړه وړ له حقله لاړ دے رابه نشي — ستا په باب ئې دعا کړې دبدا دہ
تۀ په مخ دمزکې کړې کوم ادب دے — چه تنه دصاحب لاندې ترغیبا دہ
ونې غروته ئې دحال په ژبه ژاړي — تۀ بې غمه خوب کوې دا د وفا دہ؟
ماوے څۀ بیهوده شور لرې باطله! — دا قیصه چه تۀ کوې کله صلا دہ
له حیا به تن دخان خوړے نۀ شې — په دا خوئ که هر څو مزکه بې حیا دہ
وے ئې تۀ چه خبر نۀ ئې زۀ د څۀ کړم — دا قضیه په دکن هر چرے رسوا دہ
راته بنۀ واځئ که بس رضا د خپله — یا که بریره د په ګور کښې دبابا دہ
په بنۀ مخ به ئې نورچشم جلا نۀ کړې — د دیدن طمع براته په اخرا دہ
ماوے هوش دلما واړه دیوده کړۀ — چه دغم قیصه د بیا کړله بنیا دہ
هومره مۀ تلے مره وړ له زمانیو — څو دا سخته حادثه پرته پما دہ
وے ئې لاس دقضا وخکلا وۀ بیوسه — ستا مشکله ئې سپارلے په مولا دہ
ماوے وایه حقیقت له هغه ځایه — چه دا سخته حادثه پکښې برپا دہ
وے ئې څۀ پوښتنه کړے له هغه ملک — چه جوسه ئې تکه توره له اروا دہ
دخپلو عزت هاله چه دے دوغ وو — حیاق ئې پس له دۀ باد هوا دہ
نظام پور په ژړا توئې کړے ماږے ئې — له هوړ یانو ئې پریکړے تمنا دہ
دمجلس نوکه هغه مهر ئې لاړه — په ارمان ئې آلوده هره ګیاه دہ
یو ځل ورشه دمجلس کوټه ئې ګوره — چه له غمه خړنګ تویه په بنا دہ

نوړے مخ په وصل واړه شخوده کړ / زیړه زیړه په داغم لکه صفرا ده
دید په دحرمت ماته شوه دتوږو / دعزت بړیره خرسیلے دلسوا ده
مېږ کلان ئے که اخته په ماتم نه دے / سکه په خه ئے پوشیده توره قبا ده
هغه غرچه ئے له اسمه غضنفر وو / ترکیدړے نن نامه بستره لا ده
غشی خط د ویزاری لیندے ته ورکه / لینده لا دژړئ له وصله مبرا ده
دال روغن له تاوه ویلے په تنه که / مبرا دشرمه توره له برېښنا ده
دخوبئ معدن چه تالیده خاطره / په صحرائے دغربت خونه تنها ده
هغه واف چه درفتان وه په وګړو / نن ئے ګونګه په لحد ژبه ګویا ده
چه چراغ دهنر مزکے پوشیده کړ / که ئے زه په ژړا دوب کرمه سزا ده
په حرمت دمحمد واحده خدایا! / چه پایه ئے په مرسلو کنے والا ده
په عزت دهغو پاکو لاشریکه / چه برے تیره خه بلا په کربلا ده
په وقار دهغو خاصو، کردګاره! / چه ئے ستا په در قبوله تل دعا ده
کارئے مه سپاره په عدل جګی جګی / حواله دقبله چار په کرم ستا ده
که هر څو ئے خطا ډیره غم ئے نشته / چه خطا ئے حواله ستا په عطا ده
په شفاعه درحمت شاد و خرم کړے / خون سینه ئے په سل داغه مبتلا ده
د زړه جوش به تمام نشی په وسلو / طولانی قصیده تم په دا وینا ده

نور به ستر کے په مخ وا دبنا دی سنه کا
که پتا دهجری مینه په ربتیا ده

## (۱۵۱)

چه دِ مینه په زړهٔ ډیره ددنیا ده
اندیښنه دِ بیهوده واړه خطا ده

• که د زړهٔ صفا دِ شته باور به وُکړې ‏ ‏ له دړ وغو ډیره لرې داوینا ده
لاس په لاس به دشی څُوبو وته پاتو ‏ ‏ سکه تا وته چه پاتو له بابا ده
تهٔ چه تل په نسل نازکوې غریبه! ‏ ‏ ناز دِ واړه خطائي اُومه رِجا ده
همه مرګ لره پیدا دِ تابرې څهٔ دی ‏ ‏ خیال دِ موت به ئې کوې چه ئې غذا ده
دشپانهٔ[1] په رمه څهٔ مال دمالک دی ‏ ‏ په نوبت ئې ذبح کاچه ئې رضا ده
که ورغومې دمرئ له درده ژاړی ‏ ‏ دقصاب ئې وکُشتن ته تقاضا ده
چه هلک له نسه پریوزی بې خبره ‏ ‏ په اُومړی قدم ئې تل ځُکه ژړا ده
وائي دا په هسې بد ولایت راغلم ‏ ‏ چه کرده ئې سرلبسر واړه بلا ده
ټوک چه دروی له قنا نظر دِ نهٔ وی ‏ ‏ چه وروستې نفس ئې تل ځُکه خندا ده
وائي شکر ن په هسې منزل کوزشوم ‏ ‏ چه له خیره ئې مملو همه فضا ده
اوس به ښکل دانا طمع دخوشئ کا ‏ ‏ چه دُنیا په ازل غم لره پیدا ده
په دا باد عمر به څهٔ باوړ دچاوی ‏ ‏ چه بقا ئې ډیره تُنده ترسبا ده

---

[1] دا شعر په چاپ نسخه کښې نشته

نهایت په هر بهار پسے خزان دے — داوینا کله نهانه له دانا دہ
په زینت چه نخوت کا آخر ئے څهٔ شی — لکه گل قبائے خاورے بیا هبا دہ
حق ناحق ئے گردون رانسی په جور — ځوانی کله له چا لاړہ په صلا دہ
په یو دم ئے فلک وُرانے پسندل کا — که دتورو زلفو بس دیرہ موا دہ
چه تربرو تل کیته کا له صالحه — هغه زشت مزل کهٔ وائے دافنا دہ
دغرا قصیدہ جوړہ په کړکی شوہ — سنه غین وقاف ئے نخبنه دانشا دہ
(۱۱۰۰ھ)
سخندان دِ ئے شمارہ کا تر آخرہ — په شل دوہ حرفه ئے بُن مرہ مِصرا دہ
دحساب په ترازو دِ ئے موزون کا — کهٔ پورہ په عدداو خیږی مجرا دہ

هجری! څهٔ به زړهٔ ترے په دا نابود ئے
تر لاله ئے لا اُومه د بُود بنا دہ

———..———

# (۱۶)

سبا هسې رنګینه دنیا دا رکـــهٔ
چه زیبا ئې دبقا تر مرغزا ر کـهٔ

نسیم ژغ په هوا وکه چه نوروز شهٔ
په هوس ئې مزکې وا دزړهٔ اسرار کهٔ

په دا زیری دخزان نتلیو جونو
لون لون آماده نوې سنګار کهٔ

د باغ نن همه دُکان شهٔ دګوهرو
بې قیمته زمرد راغ وکهسا ر کهٔ

چنبې زیږګلونه ، وزول له تنـه
هر ډګې ئې نمونه دچندن هار کهٔ

داشه ګوړه شګوفه په ښاخ دونو
چه زینت ئې وَچ لرګې ددرو تارکهٔ

په دیدن ئې شتاب بویـه طا بیانو
انار بن په څوکه بل دموتي نا رکهٔ

توره شپه ئې منوره ترسبا کړه
هرغندل چراغ په کف دلاله زارکهٔ

بهاري پرنده توول په چمن راغلهٔ
نشیمن دځنو نار ځنو چنا ر کهٔ

د وصال په جنت ګړ نیں له هجرانه
په هوس خیزونه کا کم ئې قرار کهٔ

ګهه جَسته جَسته په پښو دوُنو راشي
ګهه ئې خوښ دَوُنې سرلکه منا ر کهٔ

ګهَه په نس دوُنې پټ شکر وثنا کا
له هغه چه ئې زنده مرده بها رکهٔ

تمیز کله د واف کیږی له طیورو
هر طا ئر په سرود تن لکه هزار کهٔ

له طوطا فاخته تیرې کا په وښلو
په چیغارو هزار پرڅې دسار کهٔ

په دم دم دده مړۍ بورا ناقۍ شـهٔ ‎ ‎ په څو رنګه ندامانې سهٔ منقار کهٔ
هر یاول په ګنګو زیر سیر د باغ کا ‎ ‎ طوطی تن په سالو پټ د هند وبار کهٔ
هسې ګښت په ریاض کا سندر ے بولی ‎ ‎ ګویا جونو سیر باندے په ګلزار کهٔ
ماوے خال وخط دیار په ونه وینم ‎ ‎ چه بورا په مینه څپ ګل دانار کهٔ
سبزه پرته چه دا حال مشاهده شهٔ ‎ ‎ په حسد ئے دا بیان د زبان یار کهٔ
د ختن ناوے پیدا شوه له اشاره ‎ ‎ حبشی قتل ئے جوته سیب د غندرا کهٔ
پنا ژغ وربان ے وکا ظاهر بینه ‎ ‎ سزاوار د په دا قول ځان د په دار کهٔ
کهٔ بورا په تنه تور زړهٔ ئے صفا دے ‎ ‎ نوم ئے ځکه مشهور د عشق په کار کهٔ
هغه دم چه شیرین تله له دے جهانه ‎ ‎ نهٔ چا تن پیے فدا نهٔ ئے بیمار کهٔ
چه فرهاد په دا غمګین قول خبر شهٔ ‎ ‎ سر ئے دوپاره د تیشے په ګذار کهٔ
رنګ وذات ئے کله سم وو له خسروه ‎ ‎ محبت شیرین ته بنهٔ واله تجار کهٔ
دهٔ چه بوس د ګل کاوه نظر ئے نهٔ وه ‎ ‎ چه ترچپ ئے اول تن تر ونے خار کهٔ
تهٔ چه نهٔ ئے لاخبر د عشق له سره ‎ ‎ ګرځه خاورے د په سر عمر دخوار کهٔ
په هجرت ئے حزین کله تن حسد کړی ‎ ‎ چه فلک بورا په وصل برخوردار کهٔ

هجری حال د منصور کله سرسری وو
دیر ے مینے ژغا وهٔ څوئے په دار کهٔ

# قصیده ۱۷

## مشتمله په جنګ د خزان او د بهار د ګلو

یکباره د معرکان ننګه ډهور کړهٔ
په وغا ئې ځان ګلونو ته حضور کړهٔ

نارې د قتال مې شوې بلندې　　چه ریاض ئې تابنده لکه تنور کړهٔ
آفرین د دارو ګلو په همت شه　　شجاعت ئې په ورق د باد مسطور کړهٔ
د ګریز رخصت ئې ورنکړ قدم ته　　په میدان ئې د چمن ثبات ظهور کړهٔ
د قضا سوارهٔ حامی د معرکهان وو　　نهایت ئې د چمن جیش مقهور کړهٔ
ګل د نمر د زړو سپر په سر ولاړ وو　　ابتر ئې سر د دهٔ له تنه چور کړهٔ
د صد برګ مغفر ئې ولواوهٔ له سره　　طراوت ئې له طرهٔ کله مهجور کړهٔ
بس حیا زنبق مانع کړ له قراره　　په عراق ئې د چمن سنجر معذور کړهٔ
د تاج سر ئې په ګوپال کړ دړې وړې　　دا دې وینو ئې عذار د چمن سور کړهٔ
په کشتن ئې د نرګس د لیری لښکره　　د نیزې په سر ئې توئې د کښې نور کړهٔ
داؤدی که خسته نهٔ دے له خزانه　　چا ئې مخ په تماچه لکه سندور کړهٔ
د ګل نمر مغه منډیل ئې که په تورو　　چه ئې تل په زړو که شمله غرور کړهٔ

نور ئې تپول د ستم کف کړ په هر لوري
زړې زیور ئې د هر ګل له تنه دوړ کړه

د چمن خاوره ئې ته ئې سیم وزر کړې
ګویا منږکې هویدا د نسي ګنجور کړه

بې نوا ئې په منفخ کړې همه وسې
په ریاض ئې دمیده د جور صور کړه

ترکان کله چې کا په غریبانو
لکه دا چه د ریاض شهر فتور کړه

غمزده فاخته د سروې په خرګاه شوه
دا احوال ئې په ژړا ژړا مذکور کړه

په نیوش ئې دا آواز له ډیره غصه
ګوښې ګوښې مخ کنده د باغ طیور کړه

د ماتم غوغا قمري یو په سما کړه
ستار په قهر ګسسته تار د تنبور کړه

هر یاول ته ممات غوره تر حیات شه
خضرا برې په ملبه د غم مستور کړه

د بلبل احوال به څه وي نه پوهېږم
تر ځنګ ئې غم ته ځیرمه له سرور کړه

که بهار د عمر زیب کا تر ګلونو
د مرګي خزان ئې هم پسې مقطور کړه

هر زنده چه دهر ورزو له عدمه
په غضب ئې امل مات زهو ئې سرور کړه

چالیده چې حکیم تر خاوره ولاړ نه شي
چه د هسائې خوک له مرګه په شعور کړه

په خاطر ئې نو په نو کا پرهار و نه
د هجري په کین فلک هجر زنبور کړه

## (۱۸)

ستا مکن جبل د روه پما عسل شهٔ
لتا دوړ عسل دکړ راته حنظل شهٔ

خوب خندا قرار به څو کوم بې تا نه
چه بیلتون دِ راپسې لکه مغل شهٔ

هر نفس مې لکه ستن په زړهٔ څوکه شي
دخسرو تر ستم تیر مجروح بیتل شهٔ

مخ په مخ مې وغاګړه دشاه له جوړه
ولې مجروح منهزم کړم چه ئې مل شهٔ

دخوشئ منال مې هسې شهٔ له مجروحه
لکه پر وبال دباغ له دیه جل شهٔ

هر زمان دزړهٔ په یاد درسره مل یم
کهٔ بدن په ناچارئ له تا نه بیل شهٔ

سروتن ئې دانصاف په توره غوخ کا
کهٔ خټک دیکرنګئ په دود کښې غل شهٔ

دخاطرجره ئې ستا په لوری کړځي
تل په تور دهوا کا ځائې ئې راجګل شهٔ

بیاسي کهٔ دِ یاری په دړوغ نهٔ وه
چه په کال دخط راته ولې ارجل شهٔ

مګر څکه دِ ترشا کړه دېره مینه
چه حاکل دنړبدا دمال وی تل شهٔ

زهٔ به څهٔ مانه له یاره کړم وګرېه
نن رواج دآشنائي واړه دغل شهٔ

لا دِ لا فې بیاسي وعینت دِ نور که
یا مې عقل سیده نهٔ وینی احوال شهٔ

د زیړې کالا په کوړ لاسونه کینږده
قد یمی مهر ئې شته کهٔ اوس بدل شهٔ

یوځل مخ په مخ قیصې له یاره وکړې
له کیدوې بیاب د زړهٔ بغل شهٔ

نهایت په همه تن په ملبه وریت کا — د غم اور مې په سینه کښې هسې بل شهٔ
څو په کرخم سرګشته په شپه د هجر — چه په لاس مې د وصال خفته مشعل شهٔ
زړهٔ مې هسې سحر کړو چشمو خپل کړو — کهٔ هر څو بناګسته مخ راته بسمل شهٔ
نور اسباب د حسن څۍ له صفحه مخه — په ما تیو چه بدل د خښیو ول شهٔ
صد هزار بُتان مې اولیدل په سترګو — د ښهٔ مخ کاسه موجوده آب ئې تل شهٔ
چه په سر ئې نښان اوخوت د صندلو — په لیده ئې تفرقه مشکی اوربل شهٔ
د ثبات قدم ئې ټینګ په مکان نهٔ کړ — له جبینه قراری ګړ په کاکل شهٔ
غلمان په قابو کله کوتاهی کا — خلاص د شاه د شا په روئ په خوجدل شهٔ
شاه[1] د حسن په غارمه تکل د کوچ کا — چه خراب داوربل څښ په صندل شهٔ
سل رنځو نه هویدا خلق پرې وژنی — سور صندل په ازل حسن ته اجل شهٔ
د بناګښت نوبت آخر شی په صندلو — څکه وار د صندل پس پیکې اول شهٔ
بونه ولې هومره غاؤ کا له دړیو — کهٔ ئې نه په ملک د زیب صندل خلل شهٔ

هجری چا چه په ښهٔ مخ سترګې خوږې کړې
خوږ څیګر د تاسف په ژړنده دل شهٔ

[1] شاه د حسن په غارمه د حُسن کوچ کا (ق - ن)

## (۱۹)

بیا داخهٔ حُسن په بخره د جهان شهٔ
چه په زیب رشک دارم زمین زمان شهٔ

لا برون پس وضعیف وُه له خزانه — د نوبروز په یوه دم گوره چه ځوان شهٔ
دشپې طول تروڅې لوئے حمل بدل کړ — نن دورځې برے تیرے دشپې نقصان شهٔ
راشه ستر گے دحیرت په ریاض واکړه — هرچمن ئے نمونه د پاک جنان شهٔ
زهٔ چه ځیرشوم دچمن په ناویو ځونو — د مُدعا متان اسرار راته عیان شهٔ
دبهشت مثال ے اولیدهٔ په سترگو — راته هر نهال دباغ مدعا متان شهٔ
لکه زهره په سحر اوخیژی جلوه کا — هریو گل په سر دشاخ صے رخشان شهٔ
پس چه ستوری ئے له نسه تو لد کړهٔ — ریاض عین په زینت لکه آسمان شهٔ
نن په واړ سره سنګار کا په گلو نو — د فلک نوبت په شپه دباغ روزان شهٔ
انار مور دفیروزه لال پیدا کړه — اول کان دِنیشاپور نن بدخشان شهٔ
صے سرهٔ اوسپین دادی په زمانیو — چه تر دادی شرمنده دهٔ دو کان شهٔ
چه هزار مَهٔ رُخ تل پکښے جلوه کا — مگر دور دباغ تیر تر سرطان شهٔ
که لیدلے چا دیوے دبرات نهٔ وی — طور نن دلاله زار په صفه شان شهٔ
لکه جونه غوټئ سازے په گریوان کا — هر دکے دچنبے نن صفه نشان شهٔ

صد هزار لونه رنګونه پکښې وینم ... مګر خونه د رنګریز همه دامان شهٔ
ډیر چه څري همیشه په سرو ګلونو ... یو عقیق د هوسئ لب بل ئے مرجان شهٔ
مځ د دشتو هسې لاندې شنهٔ بنات کا ... چه هر سُم د غزاله فیروزه شان شهٔ
شورېږه بلبل هغه زمان حاضر وه ... په ازل چه ګُل ریاض کره مهمان شهٔ
د بلبل زړهٔ ئے په یو دیدن ګهنړه کړه ... نور ئے نیت د سفر وتاړهٔ روان شهٔ
واف ئے کلکه لمن اونیوه ګُل زور که ... په کشش کښې همه بڼه د ګل دامان شهٔ
هزار کله رضا کړه چه ګل و تلے ... شفاعت ئے چمن وُکه تر دامیان شهٔ
په احضار ئے د ګل لاس په سینه که ... هغه دم چه په باغ ګډ زاغ د خزان شهٔ
په ارمان ئے ګُتے وکښے له دامنه ... په رخصت ئے تر سر خوځله قربان شهٔ
تماشه په بهار ډیر کا د کهلونو ... د فرقت غم ئے پیدا د واف په ځان شهٔ
اس هغه روش جاری دے تر قیامته ... په اولاد ئے سنت پاتو د بلان شهٔ
د هر کال په سر ئے واف د دوی غواړی ... چمن ګل همه حاضر کا چه زمان شهٔ
او بیشکه تل چه خصم حاضر نهٔ وی ... هغه نسی شریعت چه پابندان شهٔ
نه ګلزار د دود وفا کا له بلبله ... نهٔ بلبل د ګل له عشقه پښیمان شهٔ
نهٔ دنیا له ګذشته وُ وفا وکړه ... نهٔ عبرت څوک یو ته حال دیدران شهٔ
داغرا قصیده چا بیانه نهٔ کړه ... څو په مزکه وطنی ذات د افغان شهٔ
کاتبیں ئے نقل وړ عطار د اولید ... د عبرت ګُته په لب ورته حیران شهٔ
کاتبین ویل دانا جواب ئے بویه ... له حیا ئے هیڅ وُنهٔ وے سر جُنبان شهٔ
له پاسخه ئے لاسونه کړهٔ په غوږ و ... په رحمت ئے د شاعر عذب البیان شهٔ
شاعران به ئے جواب په کوم قوت کا ... چه منشی ځنے د چرخ په شادوان شهٔ
دانایان دے ئے دامن دامن اوباسی ... د مجرى له فیضه دُر همه زندان شهٔ

## (۲۰)

غمه! لرې په ګوټ درېوسه لمانه
کېنږه اوس به دِ سر غوړ شي تر زمانه

ستا بنیاد ئې د بڼو په غشي غوڅ کړ
برابه په خوب راغلې وه مستانه

توري سترګې ئې لا توري تر کبلي وې
په څېره د ګل تر مخ ډېره خندانه

کله کله خماري په بالین راغله
برندې سترګې به د مېو له غذانه

له مستۍ ئې لاس وهل راتله په شین شین
د پالنګ په سر ې راغله غزلخوانه

وې ئې دواړه سترګې مې لس په انتظار کړې
په راتلهٔ کاهلي وې کړې نادانه

ما وې اې د ښائسته ځوانو امیرې!
تر حیات راضي په موت یم بې لتانه

په وېلنو دې ن محال دې شکر شکر
چه په خوب را لړه راغله ناګهانه

مبارکه دا ګړۍ میموته شپه ده
چه دغم په کور مې تهٔ شوې مهمانه

صفحه لاړ به مصفا کړم په مژګانو
تهٔ ملوکه چه برې راغلې تر زندانه

دو په درمې ستا د حسن جوړه غوښته
دکن ګل غنچه خالي تر هنده وستانه

د زېښت بهار دِ وژغړشه تر ډېره
دکا بدهٔ ګردون د دوړ له خزانه

د مخ نور دِ تاریکي دغم عدم کړه
لکه بخت عجیب راغلې ناګمانه

لاهاله دِ زخمي کړې په خاطر ووم
چه دِ واکړې تیں دوړ وځیو له کمانه

التماس د دته کوم په غضب مشه
عاشق تل گستاخی کا له خپل جانانه

کهٔ زما د عرض د ناوے ناخن سرهٔ کړے
د قبول په حنا نهٔ ده تا سته گرانه

وے ئے هر چه دِ پکار دی ورشه واخله
دنیوی متاع زماله خان وماسنه

ما وے زهٔ دعشق په سیند ډوب نهٔ یم
چه تمیز د نفع اوکړمه له زیانه

نن مے کوئے دعشق له واړو دیو دهٔ کړې
تر وامق او تر مجنون تر آدم خانه

چه زما دعشق له حاله څوک خبر شه
د فرهاد قیصه هغهٔ ته شی افسانه

کشکے دا فرقه حیاته وے په دور
چه خبر شوے دختک دعشق له شانه

زر، گوهر، دُر ونقره مے پکار نهٔ دی
کهٔ مملو کړے راته مزکه تر آسمانه

دیوهٔ بوس طمع کړم بهائے څهٔ دهٔ
په بساط کښے نور څهٔ نهٔ لرم بے ځانه

ځان مے سل ځله در ځار کهٔ دپکار دے
صادق نهٔ کا تجاوز تر خپله توانه

وے ئے پښه دجرأت تووله کړه مسرفه
گڼړه اوس به دِ دتود خونه کړم ورانه

تر دا حال دِ حال بتر شه مُنزّوره
زما خلهٔ دِ هسے بیعه کړه ارزانه

ډیر وگړی په کنډل کړے وه تر اوسه
کهٔ مونږے په دا بها چا را یُگانه

ما وے نهٔ ئے بها مال نهٔ سر قیمتینی
نهٔ مے زړهٔ ځی ستا دشوق له دُکانه

کار هرگوره راته مشکل متحیر یم
چاره څهٔ کړم اے صنم ددے بلانه

وے ئے اوس به مے په دار لکه منصور کړے
که زهٔ نهٔ وے پتا ډیره مهربانه

دسر کاس له بیهوده طمع خالی کړه
دَم په خودشه بوالفضوله بنیوانه

ما وے سل ځله فدا ستا بانړه شه
ددکن د پنجاب جونه تر ملتانه

زهٔ مجنون غوندے خام نهٔ یم یاری کښے
چه په دیں دآهو پائم بے لیلانه

ما عاشق دشیرین مهٔ گڼړه دبرسے
چه ادب کړم دخترو ملک له شانه

هسې نه چه زهٔ احمق لکه وامق یم
چه ئې ترخې کړې د عذرا له خندانه

ورته آسا ګیدړ قابوچي نهٔ یم
چه تهمت د خلقو بیل که له ګلستانه

نهٔ اورنګ عرق ځان ګنړم ملوکے
چه دار کړمه د عمرو زید له بهتانه

کله تل غونډے روباه یم په دا کار کښے
چه مصیبت کړم د دښمن له این وآنه

د بوټیا د یار قیصه پوشیده نهٔ ده
شرنګ و تبتی د ښهر بو له غوغا نه

آدم خان که د وفا په روش جوړ وو
اول وے تهٔ ارم ته تر درخاسته

دم صفت د قطب کا خندا مے راشی
چه دا هم وه د بلو غونډے د روانه

ما دا هسې قابوچي تصور مهٔ کړه
چه پرواه کړم له فلانو به مدانه

چه مے سینه د محبت په کوڅه کښیښوه
کاهل نهٔ یم د بتانو له جفا نه

دوداد په ملک هغه عاشق فائق وی
چه ئې خوف له چا نهٔ شي بے مولا نه

ما رتبه د عاشقۍ لږه بیان کړه
تهٔ دلبر ئې د عاشق مرتبه دانه

د زښت په بهانه مهٔ وسه مغروره
ادب کړه زما دسترګو له طوفانه

زهٔ د چا په دو دنیګړے عاشق نهٔ یم
چه په قهر د لاس دوړ کړم له دامانه

د رجا کشت مے د مهر په آب شین کړه
یا مے اولېږه د وزلو تر میدانه

وے ئې تهٔ په دا محال طلب پرے نږدے
که لمن د قهر بڼه کړم تر ګریوانه

تمنا د هومره تاؤ کړم بو الهوسه
چه مے شنه کړل په وهلو جوړه رانه

سزاوار په تا تکلیف د سیاست ئې
که خوږه ژبه ستا نهٔ وے نګهبانه

سر تر پایه ئې د هوش په تله تول یم
هیڅ وینا د تشه نهٔ ده له برهانه

سیاست د مشکل نه وے مشکل دے
چه بل هسې شاعر پاسی له افغانه

دکشتن کار د په دارانه مشکل شهٔ
د بوسے وعده هم کله ده آسانه

دمطلب قبول دِګران زړه ئے هم نهٔ شی — په څهٔ غم دِ مبتلا کړم زهٔ حیرانه
ماوے ډیر تر داستم راباندے مهٔ کړه — ګنړه داد به سبایوسم تر سلطانه
وے ئے سل فنه مے اوکړهٔ وے نشته — دنجات لورے لتا چیرهٔ زُبانه
په وعده دِ خراب زړهٔ دلاسه اوکړه — میړا به شم سبا ستا له دوائے نه
ماوے زهٔ دزمانے له خامو نهٔ یم — چه دنن مهم رجاکړم له فردانه
مور ددهر حامله په نیر نګیـــو — سبا ګوره څهٔ پیدا کا له نهانه
چاچه کار دنن برات په بله ورځ کړو — څهٔ حاصل ئے ما اونهٔ لید بے ارمانه
دقضا دام ماهی اوباسی له سینده — مرغهٔ کوز په یوه دم کا له هوانه
وے ئے ځان مے امانت په صله دکړهٔ — تجاوز به دِ اونهٔ کړم له فرمانه
تهٔ زما په خلهٔ مئین زهٔ په داشعر — سودا اوشوه اے دنظم پهلوانه
یوځل بیا داقصیده کړه مـــکرره — طولانی جګړه اوباسه له میانه
دځان مهر مے قراَت دقصیں ے کړهٔ — هغه ولوله ما واخله بے دعوانه

قصیده دِجوړ تعوینز دســاحـــرانـــو
هجری بیائےکړه دلبرے ته بیــانه

له تاوانه (ق ـ ن)

## (۲۱)

مهرګان سحر پیدا کړ ئې هنر که
چه په دَم ئې شین لباس د چمن زر که

زرکشی زیور ئې روغ کړ لونړ لوون — په هُنر ئې شرمنده پخته زرګر که
د چمن بونه ئې ناوې کړې د ځیرې — هرا عضا ئې منور په سره زیور که
د زینت لمبه ئې هسې شوه بلنده — چه ابرش ئې شین سپهر په اخګر که
بازیګر سپهر جوس وکه له درده — په دا حال ئې خبر دار نحس اکبر که
هغه نحس د غم تاخت وربانده وکړ — د ریاض ملک ئې همه زیر و زبر که
له یوه ئې غنچیالې په جور کوز کړه — له دوئم ئې په زور اخځ بستر که
په تاراج ئې د حسن بنګړې هوکړې — نه ئې چاته زر معاف نه ئې ګوهر که
هره ناوې چه رنګینه په ګهنړه وه — د ستم په تیغ ئې بیل له تنه سر که
هغه ناوې چه ولاړې په محمل وې — په عوض ئې د محمل تراب بستر کړ
چه زهره په دا ستم شوه خبرداره — په دا حال ئې بخښنده مهر خبر که
مهربان مهر له ډیره عاطفته — آماده ئې په رکاب ځړه لښکر که
د یوسف غوندې له دلوه هوید اشه — یونس وار ئې د ماهي نس مستقر که
ثمینه منال ئې واخست له ماهي نه — وبره ته ئې ځان جوړ لکه چیر که
د شرف په کرسئ کښیناست په بره کښې — له اعلىٰ ئې واسفل وته نظر که

رنګا رنګ فیض ئے واچوه په سمه — آبستن ئے په اصلی لانونو غر که

له بحاره ئے بخار په هوا خور کړهٔ — په نیسان ئے سما تور لکه غبر که

سفلی مور علوی آبا کړه آبستنه — ځویو لونړو ئے له نسه سربدر که

ونو ځانګے پوشیده کړے په توربریو — د هر برګ شکل مجنون لکه نشتر که

سروے سل لیند ے موجود ے کړے له تنه — زړو که کنګل په لاسو نیلوفر که

مګر نیت ئے د جنګریز د ے له رحله — چمن هر ځوئے ښکاره لکه خنجر که

هسے شنهٔ تیغونه ګوزوول له مزکے — چه ئے باغ کان د فولادو سر په سر که

رنګریزان د بهار راغله[1] له غمامه — شین دیبائی ئے مرصع په ډیر اختر که

د زینت اسباب ئے جوړ کړ سر د سره — د چمن اولاد ئے زیر ځنی احمر که

ماه چه نیت دٔ وغا ولید له ریاضه — له هیبته ئے په لاس دهالے سپر که

د اغوغا چه ئے تر غوږ شوه له رافته — په تالاب بانړے حاضر بحر صرصر که

خار و خس ئے کناره که له عذاره — په جوشن ئے پوشیده مخ د شمر که

قمری پنبے په حنا سرے کړے ستړکے تورے — مبارک ئے د هر طیر دا اختر که

د سرود فتوی طلب کړه سرکو ستړیو — قاضی واق ئے مهر پورے په محضر که

د بناډئ[2] غزلے دوئ کړے په سندرو — د شاخ سر ئے نشیمن لکه ممبر که

وے ئے تل به تماشه د بهار نهٔ وی — په دُنیا ئے جیش غم عیش کمتر که

ن زینت د چمن ګورئ بلبلا نو — چه تازه د ملو په عون راته نمر که

---

[1] سرکو څیو

[2] د بناډئ غزل ئے ووے په سندرو | ق-ن

نوبهار خزان به روغ نشي په دوی     رب ئې حد د عداوت روزِ حشر که

د هر شي هر بهار ونیــــا ریاض ده
په بهار پورې خزان ئې[1] مقرر که
د مستئ وُنه چه هسکه شوه خټکه!
مرګې د هر ورته جور سکه تبر که

---

[1] په بهار ئې خزان پور مقرر کهٔ (ق-ن)

## (۲۲)

د صفي اولاده مه کاږئ یکباره
کار زما په رضا نهٔ د خدائے د پاره

په احوال مې څوک نظر د عدل نهٔ کا
هر زمان ژړا کومه له ادواره

په ګردش ئے پائمال د حوادث کړم
لاس مې نسي نصیبه له شنهٔ غداره

چه ئې نن په بنده کا دګردون دور
اهٔ دشهٔ دمرچا له دے ناتاره

هسے چار ئې په دیښوالی اوکړه راغله
چه په خوب راته هرګز نهٔ وه دوخاره

د فرقت یو مې د دل هسے سادین که
چه ئې سیخ د عیش یوړ د غم په سپاره

د لیلٰی بیلتون د قیسه هسے نهٔ وو
لکه زهٔ ئې په هوا د کړمه له یاره

فرهاد یو ځل د فرقت ښکرو مړ کړ
ما بے دوده مړ نفس وژنی دوباره

آدم خان له درخو کله هسے ورک وو
لکه زهٔ ئې له دلبره کړم هوښیاره

دوره! ته به دوه مئین سره یو نهٔ کړے
چه نازو د له قطبه کړه وسیناره

چه ئې تل د مئین یاد زما په زړهٔ کا
لیوهٔ کله هسے کا له ښکاره

د یعقوب له باغه ګل سپهر بیل که
په ژړا ئې سترګے اوویستے له کاره

---

۱ آسمان ته اشاره ده

۲ پرینده (ق-ن)

همه تن به ئې ذلزل لکه پاره وو ــــ که زما په دود جُدا وے له بهاره
څوک دِ نشی هسې کُم له خپله دیسه ــــ لکه دهر زهٔ بعید کړم له دیاره
دوباره به دیار دید مُیسّر نشی ــــ چه ئې بر د عیش واخلم له کناره
دیار وصل پما اوړ د فرقت بل که ــــ ناخبر دِ حُزْم وکا له دے ناره
نن چه زهٔ ماتم کوم دیار له هجره ــــ بلبل کله هسے دړ کا بے گلزاره
کهٔ د غم صورت مے اووینې په چشمو ــــ صلابت به ئې ساکت کا له گفتاره
څو مے حال د هجر اولید په دُعا یم ــــ چه په غم ئې څوک اخته مکړے ستاره
چه دهر عیش ئې بهار په غم بدل کړے ــــ هسے ولے کړے فلکه کج رفتاره
مشک ناب مے دِ ابرش کړهٔ په کافوړو ــــ نور دِ بیل کړم د زلمیو له قطاره
یو فتنه دِ اُوده نهٔ وی خود پرسته ــــ لا بتره راته بله کړے بیداره
لکه زهٔ دِ په آتش د جور وریت کړم ــــ سزا بیا موے جابره شهریاره
فراق وُړے نوُر به راشی په سترګو ــــ کهٔ بادشم د عرق راوُړی له نامداره

چه گلګشت دِ په لمن د هجّری یار کا
نوبهار دِ پرے مرمشه کړے ګره ماره

---

ئه د مردان په صوابئ تحصیل کښے "د کالوخان" او "شوه" کلو سره دیو غر نوم -
مخه ئې د کالوخان او شا ئې د "شوه" کلی ملکیت دے . دیکه یوسف مزار دے وربانٓ -

## (۲۳)

مزگے سرواهـه پـه لاسو لـه دویمانـه
دا مذکوی ئے هویدا کـه لـه زبـانـه

یعنی کوردن سبا دباد پـه مخ شـهٔ    تهٔ لما غریبه څهٔ غوارے آسمانه
هره ورځ مے دهجران پـه لمبه سیزے    چرته یوسم شکایت ستا لـه عدوانه
ماوے کومه فتنه ورزو وه لـه چرخـه    چه پـه غم ئے هسے تاوینم ګریانه
که دنګیره پـه نزول د حادثے ئے    خالی نهٔ وے تهٔ هرګز دوے بلا نه
دګردون پـه ناهمواری وشکیبا وُ    اوس دِ وے جنبش اوکړو لـه مکانه
داوئیل دِخالی نهٔ وینم لـه شـره    مګر نوے آفت وزو لـه زمانه
وے ئے څهٔ وایم وتاته سخنوره    ددے شنهٔ فلک ددوی لـه جفانه
هسے کارئے پـه تبلیس راباندے وکه    چه ترتـلو به ئے وانهٔ وړم لـه ژړانه
دقیامت ساعت بـه کله راپیـدا شی    چه رها شم لـه دے غمه زهٔ حیرانه
مابـه داقضیه وے وے دارین م    دعوس لمن به بڅه کړے ترکریوانه
ماوے مزګے! زهٔ میلمه پـه تا وارد یم    نو به دوزم عاقبت ستا لـه صحرانه
دعزیز میلمه پـه حق چه داخبره    یک بـه یک ئے لـه راقته کړه عیانه
دے ئے غوږ دزرهٔ یما خبره آروه    مبرا دجمله کذب لـه نقصانـه
یو مطربه دسپهر یو زما ده    دهغې نامه زهره ددے مرجانه

له زمره ئے په هُنر افزونی اوکړه
بیوفا سپهر دانیـــوهٔ لمانه

اوس ئے لرے کړه زمره له هغه ځایه
په دریم فلک ئے داکړله سلطانه

ترهغه چه اسرافیل په صور کښے دم کا
جدائی مے طمع مکړه له احزانه

بیا به کله مور د دهر حامله شی
چه به هسے لور پیدا کا له زهدانه

بارے ته چه سخنور او سخندان ئے
هم په بنهٔ ویُل فایق ئے له اقرانه

دالم داړو مے څهٔ دی راته وایه!
زما رنځ اگرچه تیر شهٔ له دوانه

ماو مے مزکے فلک سخته حمله اوکړه
دا قضیه به عاقل نهٔ گڼی آسانه

تحمّل چه دچا وی ترهغه دیر دے
چه له دے غمه لاتهٔ پاتے و دانه

نه د صبر صبر ستاسره به جوړ شی
وے دوی ته ده قضیه مشکله گرانه

یو زما د اسباب خر په خټه گډ شهٔ
بل د عشق خونه بیشکه شوه ویرانه

عقل و هوش ئے زما واړه ربوده کړهٔ
کشکے نهٔ وے دا د غم قضیه بیانه

د شکیب آس مے سرکش شهٔ نیوهٔ نهٔ شی
ملک همه وینم په مځکے مسترک رانه

ما به حال همه بیان کړهٔ وے څهٔ کړم
غریو مے کُتے نهٔ وکاږی له دامانه

زړا هومره مروت د فرصت نهٔ کا
چه بخشش ئے مسألت کړم له مولانه

هسے سخته واقعه دِ راته اووے
چه خرد ئے تنفر کا له اصغانه

ورشه روغ وکړے اوپوښته غریبه
پرسش کله خلق کاندی له شیدانه

وے ئے ستا دِ په هغه ساعت قسم وی
چه په باغ کښے بیهوش وی له وینانه

دو دینا مضمون ئے داوهٔ که دِ هیر دے
چه دا گل به اوس فنا شی تر آوانه

غنیمت گڼه فرصت تماشه کوره
دُنیا عم ده کمے عیش وی نادانه

حقیقت د مصیبت راته بیان کړه
بل قابل د جواب نهٔ وینم بے تانه

ماوې دوه دلبرې تيرې دي په روه کښې ‌ ‌ يو نازو دحسن لور بله درخانه
دعراق وګړې لا پې دشيرين کا ‌ ‌ عرب واړه توصف کا دليلا نه
دهير اتامه نامي ده په پنجاب کښې ‌ ‌ ددمن اسم بلند له هندوستانه
حرف وصوت دې همه چه يې عالم کا ‌ ‌ ماچه اوليده مطربه غزلخوانه
داهمه تښې څهرې دعبادت دي ‌ ‌ دمرجانې ترعالي شوکت وشانه
که يې يو ويښته دحق په تله کيږدې ‌ ‌ دخوبۍ وزن يې درېږدې ترعنبرانه
چه يې دارنګه دلبره لتا بوته ‌ ‌ حادثه به کومه سخته وي تردانه
دې يې ناز که دِپه ژبه کرم روادې ‌ ‌ بيهوده دمرګ نهٔ خوزي دهانه
کيفيت دِمفصل راته بيان کړهٔ ‌ ‌ محرا له ديوو رنګ وله رِيانه
درضا وروځ کړې زما په لور کړه ‌ ‌ چه ترسر دِشم هزار ځله قربانه
مصلحت دچارې څهٔ دې راته وايه ‌ ‌ چه له تاشم په طلب دکار روانه
ماوې زهٔ په دوه هنره ستښتا يم ‌ ‌ بل ثاني ې طمع مکړه له جهانه
يو صادق عاشق فائق تر وامق زهٔ يم ‌ ‌ بل په شعر پيش قدم يم له مرزانه
نن هنګام دخوش آمد وپيلو نهٔ دې ‌ ‌ تکلف به همه اوباسم له ميانه
دامذکورې موافق په عمل نهٔ دې ‌ ‌ نهٔ لماځې په داغم کښې تهٔ يکسانه
چه داهسې بريد فلک وربانده وکه ‌ ‌ سبزه ولې تهٔ اوباسې له نهانه
رعيت چه ودان کلي ويرانه کا ‌ ‌ خسرو هاله پرسش کا له امرانه
وسې نن دتجربې محک پيدا کا ‌ ‌ چه دشک خيرې دِلرې کړم له ځانه
ماوې دوه خبرې کړم عمل پرې اوکړه ‌ ‌ نور تيرې په صبره اوکړه ترسبانه
مزګې تهٔ که بباسې کاذبه نهٔ يې ‌ ‌ په دو ورشه دپاقي ترخاندانه

باشنده داګوړي په خس پرېږده ناخلف د یاقِ وُنسه له رانه
څو قارون په دا مدت دے رسیدلے لیے وړوله بډیرګلی تر زمانه
چه تا دا هم پوره که پیره اوکړه نور به فکر دجدل کړوله ګردانه
دجهان دباغ هغه بلبله لاړه چه ئے زانړے خجالت که له آوانه
چه بلبله ئے شهیده په ګمان کړه صد لعنت دخوشی دم په دا مرانه
دعمل په توبنه مټ بویه ختکه! مرګ به ګانده مخ بنکاره کا ناګهانه

تل ئے هجر لړزوی له بنـــو یارانو
هجرؔی څُکه شکایت کا له احیانه

## (۲۹)

قاصد راغے د وطن په زړه کوو صوته
پس ئے شائے په جدل کړۀ څو بنهړونه

انتظار آلوده کړے په اندوه وُم
وے مے وایه د ښادئ حکایتونه

جهان کل اګرچه ډک دے له آفته
ګنے مخ هم پکښے واکاندی عیشونه

د ښادئ نامه هرګز په وطن نشته
دی په دی کۀ همه اوغواړے کورونه

خاصه نن پوښتنه مۀ کوه له سرایه
دَم په دَم پکښے ماتم کا ناوے جونه

ماوے تن مے په زلزل لکه سیماب شۀ
موت پرېښتل د چا په کور سنګونه

نور بے ننګ خلق کۀ مړوے پاک ئے نشته
پورے مشه دمیں داد د کالۀ وړونه

اکوړے چه دا لوکه ښکرو اُونیو
مګر وران شول د برک دګړئے ولونه

وے ئے داکۀ واړه او مړی خیریت دے
بزرګانو هسے کړی دی پند ونه

جهان ئے عاله پاکیزه او بنا نُسته شی
چه له مخه ئے جارو شی خاشاکونه

وے دا همه حیات په مزکه ګرزی
بے حیا غریب ئے بوت په ارمانونه

ماوے ډیر بیهوده مۀ وایه قاصده
په بے شرم به مرګ نۀ کاندی برېدونه

وے ئے تۀ کۀ په دا قول باور نۀ کړے
شاهدان لرم تیار د لارے ملونه

---

۱ خس کم جهان پاک

هسې ووت بې حيا د سرائې له دره
نکه تيز ځکا صدور دخرځ له کونه

سنه غين قاف الف وه له هجرته ۱۱۰۱
چه ئې غوځ شول د حيات کمته برتونه

د حيا مايه ئې سنځ وه ته بې ننګو
بې حياکه هرڅو نه ځ دي له ننګونه

ما وې غوږ مې په ويل لره قاصده
چه بيان کړم د برګ ملک دودونه

که هزار شاهدان تيرپه داوينا کړې
زما نښې ستا په قول بسا وړونه

نه دا هسې حاکم چاپه دوي وليد
نه ئې ذکر چرته شته په کتابونه

په فرمان ئې شحنه هسې سرې وژنې
نکه ګرځي قصابان د بيم مڅونه

حادثه به ئې غضب له دهره کم کا
که بې امره ئې ژړا کا په يو خونه

باد به اوتري بيشکه په ترځې کښې
که ئې ورانکا د ها تږې د پښتونونه

چه په دا شان و شوکت په خوځه کښيني
ننګيالي وړ پسې اوسترې قوځونه

تندار و وته ئې خلق ايستاده شي
په صورت سيرت ئې کاندي رحمتونه

چه کښې سواري تياره په مسا کا
توره شپه کا رڼا ورځ په مشعلونه

له کفار و امير هسې سلوک نه کا
لکه ده کړه منتج پدري وروڼه

د اجدل همه په ننګ د شريعت شا
نه ئې ملک د چا په کار نه منصبونه

په مسند ئې هسې غوره نمسې ناست دې
چه ئې فخر کا په مړو باندې نيکونه

په وطن چه دا عزيز بشر حاکم شه
په عالم به ئې لاس نه موي غمونه

وې ئې ما دِ همه وړوڼه دي ليدلي
نن مې ستا عقل هم اوليده محزونه

د نصفت چاره په لاس د عدالت کړي
پريکول ئې په جهان د قوم دکونه

اې له عقله بيګانه کله روا دي
په پوښې دعاق پرده په دا عزرونه

---

۱؎ افضل خان خټک ته اشاره ده۔

دقیامت له سختے ورځے ادب اوکړه — راشه مهٔ کړه د منحوس حمایتونه
استغفار کړه چه رهاشے له گناهه — نور بنهٔ مهٔ وایه له هسے رنگ ملعونه
قابیل یو هابیل شهید کړهٔ حال ئے گوره — د ه ٔ بنیاد د قوم وُکنه په بیلو نه
هسے نهٔ کا هیڅ غلیم په غلیمانو — لکه وکړهٔ سیه روز پخپله خونه
تهٔ ئے اوس له حقیقت خبر نهٔ ئے — کار دهٔ څکه کړے وماته جوابونه
وسیله ئے نور ه نشته په دُنیا کښے — پیاپے لیږی بگرام لره زرکونه
بورره لب ئے دائمی له فکره دال وی — له خبر ته همیش پیین لری غابنونه
په معنیٰ بار کړے خرمزل ئے لوئے شهٔ — گهے وکاږی رنځ کله تیز ونه
ما وے نور شکایت مهٔ کړه له بهرامه — په دا هسے وئیل بدشی عزیز زړونه
کیفیت ئے یک په یک راته بیان کړهٔ — په وطن کښے عزیزان لرم هم ترونه
وے ئے یو جمیل جمیل دِ ید رنگ مشه — بلا سازه شه د نورو په ځمتونه
ننگ و شرم ئے ترشا قبله ئے نس دے — په مطلب پسے جار باسی زیږ مخونه
د نسوی مقصد ئے نمر پسے څر خیږی — زیږ مخونه ئے مثال د نمر گلونه
ما وے حال د هغو خاصو برهنه کړه — چه کار دهٔ به ئے په سر کړهٔ ململونه
دم په دم هره گړئ له دیرے مینے — په جُسه به ئے زما کړهٔ سوگندونه
وے ئے کشکے ئے پخائے د ململونو — چا په سر کړے د زنانو سرکاهونه
چه دا هسے مسخره ورځنے زوول — کیږخر د هغو میندو په کسونه
ما وے تهٔ څهٔ وائے بد له بهرانو — دار رِ نهٔ وینم اصلاً دِ خپله خونه
د دارا دبدب هغه کهٔ فلک خور کهٔ — طمطراق شان وشوکت هغه موجونه

---

لہ دشاعر ترهٔ جمیل بیگ

وے ئے کاږ ئے مشابهه دے په دوؤ څیزه — کهٔ ته واکړے په وینا د زړهٔ غوږونه

مشاهده ئے په خوب کانړ په خوښ شی — له نوابه چه ئے کړهٔ هغه رازونه

کهٔ طلب ئے په ژړا کا موندهٔ نهٔ شی — تلطف د صوبه یاد وه لا ګردونه

نن دیانړ پنځو وهلے تغدری دے — په حلقه د دُبر کاندی پنځا لوسته

لا په غار کښے حصار کړے روبهک دے — له هیبته کا یو تیز په څو بندونه

ماوے څو خبرے کړم راته سامع شه — عاقلانو ته بهتر دی تر ګنجونه

دا زیست چه په ورق د دهر وینے — همه خیال ګنړه بیشکه لا خوبونه

چه خالق د دهر دود راته روښن که — نهٔ ئے پیژنم بنادی نهٔ ئے اندوهونه

فرزانه به څهٔ باور په دا فنا کا — نهٔ ئے غم لری بقا نهٔ هوسونه

لاس به نهٔ موندهٔ هرګز په چاغمونو — کهٔ په بخره د یو بل نهٔ کړے رشکونه

چه بے شکه نالائق ترے تولد کا — مشه سرهٔ د دغو بچو خښکونه

بهر ورچه د وفا له ملکه نهٔ وی — لا بقا هغه ته بنهٔ دهٔ تر ژوندونه

هجری لار د وفا مهٔ پریږده داده شه
کهٔ د بد دی فلک په سر د عذاب غرونه

---

# ۲۵
# قصیدهٔ فخریه

چه ریاض ئې پیدا کړے دَدُنیا دے
دَخپل عصر عندلیب پکښې گویا دے

ظرفه باغ ئې بنا کړے دَدُنیا دے
چه یو گل ئې رنگینه تر بله لا دے

دَحکمت په زور دِ هیڅوک غره نشی
دست له دسته په دنیا گوره بالا دے

په هیڅ پایه دَحُسن ختمه نهٔ شوه
مخ له مخه په جهان گوره زیبا دے

هسې حال ئې دهر چا په نمو بدو دم کړو
چه عاقل ته جاهل نهٔ وائی دانا دے

په مُنیر ضمیر مے عقل ندا اوکړه
اے چه ذرهٔ دِ تر موتیو لا جلا دے

داشرف تخلص ولے بنکاره نهٔ کړے
چه اشعار دِ په مجرّی تل مُنتما دے

په دا رنگ ئې په جواب متکلم شوم
چه اشرف په مجرّی تل خُکه خفا دے

امیران دَشعر ډیر دی په دا دور
مرزا شعر تر همه وُ دَمرزا دے

تخلص چه اشرف خان کړم دو ئیلو
مگر شعر تر مرزا دَمرزا زما دے

وے ئې مهٔ کړه مطائب ددے دپاسه
په عدم دَسیال برات کله پیدا دے

مقتدی ستا دَهُنر ته ئې امام شوے
هر شاعر چه په دا دور مقتدا دے

ذره چین به دِ دَدم ووکه زنده وے
که مرزا هر څو په دا هُنر مرزا دے

دَخبرو ناوے گُندره وه تر اوسه
ستا روشن فکر ئې نن دَدِل فتا دے

په خالق دَدور زړه سوگند ده کړمه
نن په دور دور ستا زمان دِ تا دے

پـه هـې شان چـه ستا رضا قلمرانی کا
چـه اقبال دِ پـه جواب کا زور دچا دے

تهٔ اشرف دسخندانو ئې بیشـکـه
تر دا لوئې اسم کهٔ وے پـه تا سزا دے

ماوے تا هغه مسعود وجود لیـدلے؟
چـه ئې تیر دبدب دشعر تر سما دے

وے ئې یار له یاره کله پوشیده وی
خاک پا ئې زما تاج چـه دبابا دے

خاص ویـُل ئې سراسر لکه خاصه دی
تر نسبت ئې دعالم شعر ختما دے

لا یعقل به ئې حساب کا له عامه وُ
هغه خضر چـه له خلقو مُستثنا دے

د ملال غبار له دِله کنار ه کـړه
د هُنر چراغ له دے سلکه سیوا دے

وے ئې اوس فتوی کوے زما پـه قول
ماوے نور دواړو میریم اَمنا دے

دجهان عرصه خالی حریف مې نشته
سر پـه سر دِ ذکر واړه پـه دنیا دے

وے مې فکر ئې میزان دے دخبرو
کهٔ مې ذم دشعر کا چـه کم بها دے

وے ئې سُر دګمان غوځ د زړهٔ پـه سر کا
ستا اشعار له هر نقصه مبرا دے

دمعنو میدان دِ یو وړ له جهانـه
آفرین پـه هغه پلار چـه دِ اُستاد دے

فخریه مې خاطر وار و یرهٔ دیـُل ئې
څوک چـه ځل صفت ځله کا بې جا دے

وے مې دم بې ځایه مهٔ وهه بحاصله
تم شاعر کهٔ ځل صفت کاندی روا دے

ناطقه مې ګنج عرش دشعر میر یم
پـه تصدیق مې دنبی قول ګواه دے

څهٔ کړم یَم دمعنو لوئې موج ئې وکه
له موننو وې دعالم فکر خطا دے

جواهر بـه ئې هغه غواص وکاندی
چـه پـه دا بحر آشنا کړی پـه شنا دے

سفیهان بـه ئې خبر له معجزه نشی
ګدائې کله پـه سر باندے دپاچا دے

داشعار مثل مې څهٔ دهن مصری شهٔ
دناقد فهم مانا پـه ګنـدنا دے

پـه احوال ئې فرښتې نکا فراقونه
د بلبلو اشرف ژاړی مُبتلا دے

# (۲۶)

منقلب د حال کهٔ نه لاس د قضا دے
شکه احوال وے په عکس د رضا دے

چه کشان کشان سرې څکوي بیو سه
وایه څوک ئے کشنده مهار د چا دے

هوس زړ نقش نګار کا و ے نهٔ وي
یو مهم په هغه شان چه راتے زما دے

د قضا سواره پټک وهي بیفکره
عقل دم ورته ولاړ وارئے خطا دے

سرئے چا ته معلوم نه له نهایته
نهٔ ئے چا ته حال روښن د ابتدا دے

ما به شپه د هجر تیره په ژړا کړه
کهٔ مے زده وے په رقت قدر آشنا دے

د قضا[1] وعده به وړاندے وروستو نشي
په دا باب مے د قرآن قول ګواه دے

لب د چون وچرا دم بویه عاقله!
په هر کار ئے وسیله صبر بجا دے

نیرنګي ئے نو په نو لعب پیدا کا
څو دا زَر په دا خاکي مرکه سما دے

ابلهان ئے له ګردشه آسوده دي
د عاقل همیش نصیب ځنے ضرا دے

---

[1] فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُونَ ٥
پس هر کله چه راشي نیټه د دوئ وروستو به نشي یو ساعت او نهٔ به وړومبے شي له هغ نه - (سورة الاعراف)

په مسلک د خیبریون کاله کورانو
د کینې بېلګ ئې تللې په دانا دے

ما سپهر ته وئیل ګهنه ایوا شه
مخ د مزګے نیک وتا ته هویدا دے

سخنور د زمان څوک دی په دا دور
چه سهیم ئې د اشعار په دهرلا دے

وے ئې شته فرقت نشتې په دکن کښې
طبیعت ئې منورتر زهره لا دے

بضاعت د عیش غم ورځنې لوټ که
تن ئې صبر بچاؤنړهٔ همت ردا دے

نکبتی قفس ئې ځائې دور له وطنه
هم خاکی قفس ئې ځاله د عنا دے

د ذلت په خاوره پروت زما له دوره
په سرېر د نظم ناست لکه پاچا دے

وطنی د روهستان پټان بالهٔ شی
خضر وش خټک ئې اب هم ئې استاد دے

په دا دور امیر دے د سخندانو
د خبروګوئې ورے له سرزا دے

بلکه سل سوګنده خورم په دا خبره
د مرزا کتاب ئې بیه د وینا دے

د بنده پایه ئې مادر ته علن کړه
د استاد قدر ئې څوعدل په دا دے

وے ئې ته ئې شهنشاه بولې د نظم
بد سلوک چه له دهٔ کړے کله روا دے

وے مے مکره د اومو غونے حرفونه
نا صلا ذکر له تا کله رجا دے

د قدرت په ایما تند لکه څرخه یم
نهٔ مے لاس په وفا شته نهٔ په جفا دے

لمن ټینګه د شکیب کړه په ورغیو
یو په زړهٔ ئې ګنج ورنج په سرعطا دے

دا وینا په تجربه دهٔ مشهوره
چه اغزی د زمان وصل له خرما دے

ناقصان د شعر وبوله مطربه
ددے رنځ ئې د هجری شعر دوا دے

## (۲۷۷)

زړهٔ حیران په دا سودا کښے سراسر دے
په ځېږ دهٔ دننه څهٔ دی خدائے خبر دے

سلونے چارے وینم له دوړ انه
چه مزاج ئے اغشته همه په شر دے

دهر چا ترفهمه ښل فکر بهتر شهٔ
د عاقل ته نادان وائی "څهٔ خبر دے"

د دانا په تن جامه له غمه وینم
د ابلهو به سر پاس ښیے افسر دے

د دولت شکرے اوخوړے زاغانو
د بازانو قوت همه خونِ جگر دے

له اهلانو په کاړ تل کوے فلکه!
چه گردش دِ په عارف باندے ابتر دے

عجب حال مے تجربه کړ له دوړ انه
ښل مطلب شړی کهٔ یار که برادر دے

لوئے لښکر لرم دوروړو قسم قسم
چه هر یو په ژبه گرم لکه نمر دے

هر چه دیر غواړی په کور کښے له حرصه
په هوا پسے ئے هیر سکه پدر دے

د اتکه شوم راپورے پرے بنا دی شوه
په هوس ئے سره وے چه اوس موجود دے

لکه طفل مصری یا مومی هوس کا
هغه یو دلئ دده عیدِ اکبر دے

عابد خان، خالد خان بنهٔ برادران دی
په اخلاص کښے کشر څهٔ خولا مهتر دے

---

[1] چه په ورهٔ دننه څهٔ دی خدائے خبر دے
[2] وی عاقل وته دانا وائی چه خر دے (ق - ن)

عابد خان مصلحتي هم مړنے دے      د غليم سرته خالد نکه تبر دے
په يحيیٰ کښے شرم شته بد کينے نهٔ دے      ولے صحن ئے د زړهٔ خهٔ خو کمتر دے
که اول مے پکار نهٔ شهٔ گونډ مے وُشی      په هر حال دِ سلامت وی نيکو نر دے
افضل[1] خان، نامدار دِ خوب د بيغمیٔ کا      چه آزاد ئے تيره توره سعدو سپر دے
درے خوريونه د جهان دی په شيدو کښے      لا په تيره شيخ شهباز پکښے بهتر دے
د شيخیٔ لار ئے چه اوليده له لرے      اوس قادر شهٔ هنری بازئے جدر دے
زر ئے واخستل غرے او جرگے شول      ډير افسوس کړه کنډ ونو هم منبر دے
چه د خرهٔ سواری ئے کړه خو په خرهٔ سور شهٔ      د خالی رقصه نادم په خولو تر دے
باز قادا[2] په ناړی ناځی بازیگر دے      کشر ئے د امانت وی بنيوه گر دے
کهٔ يو ځله رسد وشی له دے سنده      د دوی ځائے په نوښهره لا اشنغر دے
د صدری له کرداره ونو به خهٔ وايم      چه وخلق ته روښن ددهٔ هنر دے
سيه دل په غوږ د گوږ بک سرشت دے      بد فطرته بے جوهره کور وکس دے
نا پکار په جهان ډير گله گلے دی      سرکله گوهر، سکندر در[3]يم ظفر دے
نصرت فرحت همه واړه بنکاره دی      ابو الخير بے نمکه سوړ تيپن دے
دافضل خدمت ئے کړے په ما ډير دے      نجابت زلمے کهٔ هر څو شونړه ورد دے

---

[1] افضل خان او نامدار د شاعر زامن دی هر کله چه آزادخان، سدو (سعادت خان) عابدخان، يحيیٰ خان، خالدخان، عبدالقادرخان او باز (شهباز) د شاعر وروڼه دی.

[2] سره د دغه شعره دے نه پس ۵۳ شعرونه په چاپ نسخه کښے نشته ـ داکمے د قلمی نسخے نه پوره کړو.

افضل خان زما بنیوکه دے پرے نازیږم — په همه زویوے پاس دزړهٔ په سرده
عسایه به ئے له فیضه خالی نهٔ وی — باور اوکړه دهمائے مرغهٔ وزر دے
له میدانه گریزان شهٔ بوتی گوری — دافضل پنجه دباز علیم تیتر دے
نامدارخان ے روشنی ددواړو ستر گو — چه په وچوُلی ئے جوړ کښلے ظفر دے
دمردانو وینا خدائے مکړه غلطه — په عالم کښے نامور شیر صفدر دے
همه تن ئے مشابهه دے له مزریه — بهادر بے بها دُر خره جوهر دے
دَعبدالله جوهر به وُلید شی که خدائے لا — قیمتی لعل وهیرا یکه گوهر دے
شمشیر توره دافضل دے وئے گوره — په صورت ئے گواه یم چه نیک اختر دے
په مراتب ترهغو دریو پرے میُن یُم — په حساب دلویو وړوکو برابر دے
محمّد مصری احمد همه زلمی دی — زما دا ... شی دافضل واړه لښکر دے
دقارگهٔ حقیقت کُهنه چه دباز بن دے — کوم خصال ئے ترخصالو فروتر دے
میر باز ے سفاک بیباک دزمانے دے — مسلمان نهٔ رافضی، نهٔ لا کافر دے
صدرحمت دنوشهرے په تخم باندِ — چه اولاد یوئے یو تربله سبکتر دے
دهمت بینگی ئے غوځ دی په راستیُ کښے — په دروغو گړندی لکه چیپر دے
تُف په ویخ دبوړیُ خرے چه تر زووُلی — نجابت ئے نوم ورکړے سور دِ ننگس دے
دلوئے غرغوندے مے دادکهٔ په وجوشو — نشانه ئے شابیکے خرس احمر دے
دننگ بوئ لامالله نهٔ وه دبیشرم — چه دِ خورسره راغلے له مادر دے
صدرحمت دمهمندی په اخلاص بامندے — چه وُننگ وته تیار په بحرو بر دے
په جنبه کښے تور پهاړ دے بے گمانه — دعُلیم وغابش ته سخت لکه حجر دے
دعلی بیگ خونه همه برهنه توره — لال جمال ته سرگیاه جنگ ئے اختر دے

کریم رحیم بوړے دننګ دستاړ دے — میر غازی په ننګیالیو پاس شجر دے
تختی بیک په وینا کلک کمر ئے نښته — حکیمے خو تیزے کا ناباری ستور دے
چه په شرم بانډے سروړته [۲] آسان دے — مهمندی غونډے ئے ځلئ په نورویر دے
شاباش شاباش په همت داوړیا خیلو — مهمندی سره جوړ په تورہ نر دے
فتح خیل سمیل خیل جوړ تیرہ ئے خنجر دے — په جهان کښے که ئے ننګ غواړے بر دے
د سینی نه د راستئ طمع سه کړه — په ستنه په کنه ځی مشکے چغر دے
د بولاق جنبه ده ښکه په اوبو کښے — په ګوندئ غلط مشه بازیګر دے
د حسن خیل د نامردئ ئے سینه داغ ده — د وطنه ئے زړه ئے بد چه د دوئ کهر دے
وګل شرم ته ئے شا په تهان کښے پروت دی — دانه خورشه د ساغر یو لمه ور دے
د عثمان له دیانته خو صفت کړم — خو نمک ورته عزیز تر خپل پسر دے
حسن بیک زما په حکم کښے پتنګ دے — د صالح همت تر واړو لا برتر دے
دیر منت شمارم په ځان د ننګیالیو — چه ئے مثلے سمه غر تیر پرخطر دے
حلو اخان غونډے ګډیری ومغل ته — جهان اور وه پید اشوے تر شرر دے
د حیا بوئ ئے په مخکښے لیدہ نشی — شرارت ئے ویران کړے پیښور دے
دا صورت سیرت ئے نخښه د قیامت دی — د دجال فعلونه کا یاجوج بشر دے
بخیلی حسد ئے زیات ترجه کو دے — په لوړ زوے ئے صرفه نه کا ګیدی خر دے
د مور خور سره سلوک په هسے رنګ کا — ګو یا مور او خور ئے نښته لا ماد ر دے
د دنیا څونه ئے اولید ئے دارا به — ثبوک د حوړ و صفت کا پړے ئے نظر دے
د آزاد ورکزئ له حاله به ئے اووے — د افضل خاطر عزیز راته لوئے غر دے

---

۲ د اشرف خان هجری یو وفادار دوست

د تازیانو کار به څهٔ شي له کوتهٔ نه
لو یه خېټه سرکټه لم یې ډېر دے

دښمنان به په مراد زما د زړهٔ شي
په سینه کښې یې غیبي تیرهٔ خنجر دے

جزا بیا مونډ له ځنو څوک به موومي
چه په ما ئې گذار کړے د نشتر دے

د بهرام حقیقت کښې نهٔ شم بیشکه
نحوست یې تر بوما نو ډېر بتر دے

د سُنبل کوے به گورم په دکن کښې
په انبار مے عادت شهٔ واړه ور دے

د مومن په ځان نزول د ډېر رحمت دے
په دا باب نصیحت کړے پیغمبر دے

تر هر څهٔ نهٔ شرم گران په عاقلانو
د دُنیا خوښي څو ورځې نو رگذر دے

کل بلا د نس خوشي ده وسرې ته
چه نیکي ورته ترخه بدي ثمر دے

دا لید هٔ آرویدهٔ واړه نصیحت دے
سیه دِل له بنو غافل په بد خبر دے

چه یې خوئ که د سړي نس ته یې شا کړه
په دنیا په آخرت هغه سرور دے

چه یو زړهٔ یوه خبره پرے مین یم
د دورنگه یاره تبنتم که شکر دے

د مینن دین نعمیش غواړم له خدایه
د دنیا غمان مهٔ وینه که قیصر دے

په ادب په نیکئ سره کوه خټکه!
داستو گے ځائے د نے نشته سفر دے

هیڅ امید له خلقو مهٔ کوه مجبور ده!
په غمونو صبر کړه خدائے د رهبر دے

# ۲۸ قصیده

## مشتمله په احوال و حقیقت د شعراؤ

د مردانو پیرایه علم و هنر دے
آرائش د ګلرخانو په زیور دے

د هنر پیشه زیوره د زیرکانو
هر چه فخر په دولت کاندی بقر دے

په اقبال د دهر ځانے د غروره نشته
د بقا زوال ئے زر لکه د بیګر دے

په هغه یاره فرزانه کله نازیږی
چه ئے نن په غین دیو سبا ذکر دے

دا افسر چه د اورنګ په کله وینے
دوه دونړه ئے ځنے داغ د دل داګر دے

مهین یار تر علم نشته په دنیا کښے
په دوه دارهٔ مدعا لره رهبر دے

که عالم په عمل جوړ ملک ئے بوله
بلکه لا تر فرشته ؤ نیکو تر دے

بے عمله عالم څهٔ دے خبر نهٔ ئے
ډیر کتابه ئے پرشا بیهوده خر دے

دانائی حکمت نصیب د سرو مغلو
لیبتانهٔ ته جهل خوږ لکه شکر دے

هر صفت چه خالق ایښے په بنده کښے
تر همه ؤ ګویائی والا ګوهر دے

هیڅ تمیز په ئے ؤ نشی له حیوانه
خو په ژبه آل ممتاز د بوالبشر دے

ګویائی اګر که کسب د انسان دے
ولے هر چه سخنور هغه بهتر دے

که سبب ئے ګویائی د زبان نهٔ ده
سکه په څهٔ بلبل په طرو کښے سرور دے

نهٔ بے علمه زاهد رسی تر کماله
نهٔ بے علمه شعر چا ته میسر دے

هر چه لاف د شعر کا علم ئے نهٔ وی
مسخر په بریړه کاندی ګیدی خر دے

که شاعر په پوهه سم وی له عالمه — نوم ئے څهٔ لره چا ایښے سخنور دے
پښتون ذات چه رب پیدا کړ له ازله — دوو د علم د هنر پکښے کمتر دے
که همه قومه پره کړے سر دسره — د احکمت په څو سکانه مقرر دے
اولاً به د استاد له حاله وایم — چه ئے شعر جهانګیر لکه د نمر دے
په پښتو ژبه چه شعر چا بیان کړ — د همهٔ و نظم ستوری دے قمر دے
څهٔ خوبی د هغه نمر و ائے مجبوره — چه ئے نام د هر نوی سر په سر دے
اوس ئے وایه حقیقت د شاګردانو — چه هر یو له دے هنره بهره ور دے
قادرخان کهٔ بحر بولم دروغ نهٔ دی — چه ئے فکر د اصلی دُرو مصدر دے
د سکندر شعر له څهٔ سره مخے کړم — طبیعت ئے ډیر تر دُرو منور دے
د اشعار ملک ئے همه په ژبه خپل کړ — په سریر د نظم شاه بل سکندر دے
صدرخان عجب ګوهر سخن شناس دے — رحمان لا په د اهُنر د تورو غر دے
پس له دے به کیفیت د نورو وایم — چه د چا شعر شمشیر د چا خنجر دے
شاعران د پښتو ګویا څهره دی — د مرزا شعر شمله بلکه افسر دے
تکلف په د اکښے نشته باور اوکړه — په د افن ئے کړو وړے له یوهر دے
نن په دا دورکهٔ بنهٔ شاعران غواړے — کهٔ دوه[1] درے[2] تنه دیګر یو قلندر دے
خود زبان ئے په زمان شکرے لونی — هغه واف چه مستقر ئے پښنور دے
د رحمان په وئیل ځائے د لقب نشته — چه ئے ما شعر منظور کړی معتبر دے

---

[1] خوشحال بابا ته اشاره ده .

[2] دا هم د شاعر ورور دے .

ارزانی، دولت دځيل دوی بلبل وو
نن ئې وللې زمانې دشعر قدر دے

دواصل له شعره خه وایم وچا ته
چه زما په مخ ئې پورے دحال ډیر دے

نور قابل دیادو نهٔ دی په دا ذیل
نهٔ ئې شعر سنجیده نهٔ دباور دے

ټول ئې وسپارهٔ پما سرير د نظم
هغه نمرچه نن دخاوړو په بستر دے

نن حریف دجواب نهٔ وینم په دوی
نهٔ مې یو له مړو په شعر برابر دے

په ویل مې دبطلان مظنه مکړه
دروغ نهٔ وایم بیشکه خدائې خبر دے

زهٔ محتاج دشاهد نهٔ یم په دا قول
په راستئ مې دا غرا شعر مختصر دے

کهٔ څوک ځان دجدل لا زما له نظمه
دغه ګوسئې، دغه میدان، دغه احقر دے

زیبا شعر هسې زړهٔ دهجری بیوړی
لکه زړهٔ دسفله وړې سیم وزر دے

(۲۹)

ددنیا منزل مے اولین مختص دے
مکره ذیرمه داستوګنے دهګذر دے

جریده معاش کوه ته مسافر یځ — مخ په مخ دِ بے حدوده لوئے سفر دے
دم په دَم یوم بتر نوبی ځ نشته — آخرینه زمانه دوی قمر دے
ساکنان ئے په تبیس هسے بلا کا — له دوی ورے بازیګر ګویا هنُر دے
باشنده ئے ځکه کان دخصومت دے — په خصلت دتورو خاوی و ستمګر دے
دراستیُ محبت چیرے دے حیران یم — لافه هرسړے کوی کوم ئے هُنر دے
مارښتیا هرګز ونهُ لیدهٔ په دوی — خالی نوم ئےُ دعنقا غوندے سمر دے
بے مطلبه یاری نشته په جهان کښے — په دا قول باور وکړه معتبر دے
په ظاهر هیرے قیصے درفاقت کا — زړهٔ ئےُ کله له ژُبانه برابر دے
په خُلهٔ واړه عمل کا د اولیاوُ — له کردوئے لاس په غوږ و دکافر دے
دګردون کاسه په زهرو آلوده ده — په حلوائے ویسا مکره بازیګر دے
هرطرف ے تماشه دجهان اوکره — له حسده واړه ډک مهر کمتر دے
لوُر شِدّت له موره کاشرم ئےُ نشی — پس شائے زهد واړه دمادر دے

ـــــــــــــــــــــــ

له اثر (ق - ن)

بے غرضه منه خورنهٔ کا په وی وڼو
نهٔ څو وروړ عزت ساتلے دخواهر دے

نسی کله اطاعت کا دنیــکو نــو
ادب کله وراړهٔ کړے د اودی دے

دیو چه آز د زړهٔ په سر متمکن کا
نهٔ پسر دباپ پسرنهٔ باپ پدر دے

پلار په لږ غرض له زویه مېړا شی
نهٔ پس په طمع اُښ دپلار په سر دے

چه سلوک د زویو داد ے له پـدره
په وروړ خون کله مشکل دبرادر دے

که ځړ وی منال لرے بیغمه ستـه
کهٔ په حال ئے برادر سکه خبر دے

سر په سر لکه دُدان سره اختـه دی
په حرص انام شرّه بدنام بقر دے

یو د بل په انده کله غمزده وی
بلکه غم په یو عزیز د بل اختر دے

داژگونه فتنه قائمه ده په دُهر
لورے نشته د امان واړه خطر دے

شاید مخ د قرار ولیــد په آخر شی
ولے هرچرے جنگونه شور وشر دے

زهٔ هجری ئے څو بیان د حقیقت کـړم
حال روشن د زمانیــو لکه نمر دے

---

ﮯ نه دادا عزت ساتلے دخواهر دے (ق-ن)

(۳۰)

ذړه ئے ځکه همیشه په ژړا سر دے
د یار یاد ئے لکه غر ایښے په سر دے

چشم کله آشنائی کاندی له خوبه
څو ئے هجر په ځیګر ایښے نشتر دے

خوبه وینے مطر کاندی له سُرو یو
په نشتر چه مشبک دچا ځیګر دے

پرورش ئے دځیګر په وینو کیږی
هغه تخم د وِداد چه په زړهٔ کر دے

مابه هم بے غمه خوب کاوه بے یاره
څهٔ کړم عشق سبق راکړے پسے مر دے

په بے دردو اثر نهٔ کا حیرانی ده
له خروشه ئے په جوش دیوار و در دے

دیرینه قصه بیانه کړه مطربه
اوس په غم آلوده عمر شوړ و شر دے

ماجرا د تیر مجلس په سرود وایه
نن پنجه قوی د غم عیش ابتر دے

دم په دم مدحه کوه د روه له یاره
چه مذکور ئے ګوارا لا تر شکر دے

په رویمال ئے دماضی ذکر صفا کړه
هر باڼهٔ ئے د فراق په وینو تر دے

دِ پروزه لذت به نن کله پیدا شی
په دا باب حدیث ګواه د پیغمبر دے

دنشاط زِمَن ذمَن کله پیدا کا
مګر د وه مُین چه ورسی اختر دے

خاصیت ئے ماله هجره منکشف کړ
خلق وائی په هغه جهان سقر دے

یو نقط دسفر دوه دی و دانا ته — زړه په سل غمه اخته یو ئے سفر دے
سال و ماه د عمر واړه په شماره دی — د سړی غفلت له مرګه بے خبر دے
محبت مے تل څکوی د یار په لوری — مرګ پما پسے کوشش کا غضنفر دے
ګوره وار د موت جوړ شی له اوله — که اول مے په نصیب مخ د دلبر دے
قصیده مے د باور په غوږو واروه — په معنیٰ کۀ ئے خبر شے تول هنر دے

په سوزن د وصال پړ د ختهک جوړ کا
د فرقت په ګزه ئے مات د عیشو پړ دے

## (۳۱)

چه قدرت ه همیشه د حصن سپر کړے
په خام سپر د حصن د فع د قدر کړے

لا طائیل جدل کوے په غرونو خېژے ... تگ ودو دِ بیهوده اینا د سر کړے
آسمانی بازی به نکړے منقلبه ... که له غمه تن تنور نفس شرر کړے
نهٔ علاج د قضا شی په زیار تونو ... نهٔ به پورے په دعوت ورځنے ورکړے
په هیڅ رنګ به د قضا پنجه تاو نهٔ شی ... هغه بهه چه تن قضا ته کورو کړکړے
په هر لورے زغلوے قرار ئے نهٔ شی ... د حرص نسیم ته ذرهٔ لکه وزر کړے
رزق لتا سره رفیق ته پسے ګرځے ... د اُمید تر قدم لاندے بحرو بر کړے
د قیامت مدار نسیه ګنړے جاهله! ... په ګناه ځکه جرأت یوم البتر کړے
په خالی پندار ملک د زمانے ... د حرص په عمل ورو ستو کاوخ کړے
د عمل نامه د توره په ګناه شوه ... د ندم په آب به کله بانړهٔ تر کړے
شیرین عمر د با د تیر شهٔ په هوا کښے ... کومه ورځ به نهایت وته نظر کړے
هر نفس دِ د حیات له جیبه خیژی ... تهٔ جاهل لکه غنم بیغمه څر کړے
ذمیمه اوصاف تیرے وینم په تا کښے ... له غفلته ناحق خبث د بقر کړے
ډوبرو دِ لار باریکه تر ویښته ده ... په دا حال به څرنګ تیر د جوم غر کړے

برهنه په دنیا راغلی ځی به دی وے
بے حاصله نن په برجامه د زرکړے

بدله بدو زرغونه نیکی له نیکو
نهایت به مغه ورېبے چه کرکړے

دنیاکشت دآخرت توشه طلب کړه
کنړه تش به ځے دوزے چه سفرکړے

دثبات په لار به هاله قدم کیږدے
که په تیغ د صبرآس دآز عقرکړے

دایمان دولت به تیږ نکړے له غوله
مګر سم ورپسے ځے نوے دصبر کړے

په نعیم به دجنت هاله فائز شے
چه تندی قدم په لار دپیغمبر کړے

دهستی بنیاد ئے ایښے په زوال دے
هجری غم بنادی په څه دباد په چرکړے

———..———

## (۳۲)

که په عدل خپل بشر وته نظر کړے
حال به کشف یو نظر دخپل بشر کړے

یو زمان دبدن ښهر ته ناظر شه — چه له کبره مېړا کاسه دسر کړے
داقبال مزے به اُوم درته ښکاره شی — کل هوس به له زړهٔ کم دکروفر کړے
ابتدا له څهٔ پیدا آخر به څهٔ شے — له غفلته ولے هیراول آخر کړے
اولاً ځائے دِ رحم قرار دِکوږ دے — نن حرص ته مخ دمزکے مختصر کړے
په برهان به دِښک تریوه خس کړم — کهٔ تهٔ وا دعقل غوږ په داخبر کړے
چه په خپل عیب بینا شے بوالهوسه — نور به پورے په هرچا دطعن ورکړے
کهٔ یو دم دِ قرار وُکا په معده کښے — دهزار خیشو سر نفیس شکر کړے
دشکم تاثیر دِ څهٔ دے نهٔ پوهیږم — چه بتر تر پشکِ خرشک وعنبر کړے
چه له تنه دِ جُدا شی باور اوکړه — کراهت ئے تهٔ له قربه سرسر کړے
نجاست دحال په ژبه درته واﺋﻰ — چه خپل قدر په دا فعل محقر کړے
زهٔ اول جنس نفیس ستاله صحبته — ترابده نجاست شوم کهٔ باور کړے
دا فساد پما حادث ستا له صحبته — تهٔ په ماله کومه نن هسے حذر کړے
نور به تهٔ کړے کراهت زما له بویه — کهٔ په چشمو تهٔ دخپل خبث اثر کړے
ناپاکی ستاله درونه کا حاصله — کهٔ په خلهٔ دپاکے وُنے نوے بر کړے

چه اول آخر هغه ژوندون دِ دا دے — ته په کوم سند خپل وزن تکه غر کړے

که خیال په خلقو ځکه کړے جاهله — چه مصری قبا په برخیره دزر کړے

دتن پوست دِ بنا آسته له اصله نهٔ دے — په چینی جامه هوس تکه کوتر کړے

هغه دم به دماغ ځهٔ کړے را ته وایه — چه زری لباس جُدا کفن په بر کړے

مخملی تکیه ترشا په کبر کښینے — د غرور سُنبلت کښته تر غضنفر دے

مال په سل ستمه واخلے له یتیمه — مهیا ځنے پُلاوُ په غوړو تر کړے

د نعمت غفلت دِ هسے کوروکس کا — چه نهٔ حال د نیکهٔ یاد نهٔ د پدر کړے

استفسار د حلال نکړے له حرامو — د معدے میدان پرے ډک تکه بقر کړے

خزانه دِ لبالب وی د مهرانو — غم دِ نشته کهٔ په زرکوره شرر کړے

لاتقربو مال الیتیم دِ لوستے نهٔ دے — ځکه خون د غریبانو محاضر کړے

په ناکام به پائمال د حوادث شے — که رُتبه دِ زری و تیره تر اکبر کړے

له جزا به ئے هغه زمان خبر شے — چه په موت ئے خون بدن زیرو زبر کړے

هر طرف ئے په مطلب پسے جارباسے — زرهٔ دِ ګل د نیلوفر امل ئے نمر کړے

په دا حال به هرګز تیر په صراط نشے — کهٔ بدن د باد په څځ تکه وزر کړے

---

ئه وَلا تقربُوْ مَالَ الیتیمِ اِلّا بالّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ حتّٰی یبلغَ اَشدّهٗ ؏

اومهٔ نژدے کیږئ مال د یتیم ته مګر په هغې طریقے سره چه

هغه بهتره ده تر څو چه پورے چه ورسیږئ ځوانئ ته ۔

(سورة الانعام او سورة بنی اسرائیل)

د ثواب په لار به هاله قدم کیږدے — کهٔ له سره بیهوده کښ بدر کړے
بے عمله علم څهٔ دے کهٔ پوهیږے — لکه باد د صحیفو حامل ئے خر دے

مجرّی مه په بنهٔ عمل کا کهٔ دانا ئے
نهایت به دا پکار شی چه سفر کړے

# ۳۳
# قصیده

## مشتمله په خطاب د کلنګ

زانګې ته چه په هوا تر ې چیغار کړې
په سینه مې د فرقت غشی ګذار کړې

اشتیاق د هوادی آشنا غالب شه
په خاطر مې لا ثقیل د هجر بار کړې

هغه غم دیار چه تل له ماسره دې
ګرندې ئې او چیچل ته ئکه مار کړې

فراغت کاندی هغه چه په زړه روغ وی
د هجرت غمونه ما وته ذوخار کړې

که ناله کوم له خوږو کله ګرم یم
په هر ژغ مې شخوده د غم پرهار کړې

تل په نیمو شپو ژړا د زنځوړانو
که الوزې په سما د خوږ و کار کړې

له آوازه دِ معلوم بېغمه نه ئې
خبر نه یم چه د چاله جوره زار کړې

په زبان دِ آشنا نه هومره پوهېږم
چه خالی له درده نه ئې اضطرار کړې

یا نادمه په راتلوئې وطن ژاړې
یا وماته جوابونه د نامدار کړې

لامې ژاړې په احوال د حال په ژبه
یا جُدا ئې له دلبره غم دیار کړې

د فریاد دِ رقّت د زړه کره میلمه شی
ګو یا خوږ و ته د زړه قصّه شمار کړې

چه شیرین وطن ته شا کړې دکن ګورې
د مهجور په خطه پاسه خپله لار کړې

محتاجی کله د پل کړې په سیند و نو
ئکه باد سیر په څوکه د کهسار کړې

هومره هسکه په هوا ځې له میدانه
په رښتیا تر نظر لاندې ګل و خار کړې

لاشوړه، غربیڅ، توتکي د آئینه وو — که په حال مے د خسته وُ خبر دار کړے
ما په ناز ساتلي چرے څه ئے چال دے؟ — تر صد که مے خبر په دا اسرار کړے
د مردیٔ مخ ئے په خاوړو آلوده شه — چا وِسیل د و رنګوکړے په کنار کړے
هیڅ ګفتار ئے په کردار موافق نشه — په دروغ ئے واړه لافے د کردار کړے
نن په توره راته ناست بریتو نه مړی — چه ئے تل د محبت تیغے په چار کړے
ننګه ته په مزکه کله وے له اصله؟ — که بے ننګو نن عدم په دا دیار کړے
ناهموار غرونه که ډک له خار و خه — ربه! هر چرے افضل پرے ته ګلزار کړے
ملګری ورسره چا تر سره نشکره — دیانی غیبی لښکرے ئے انصار کړے
دوباره به پیره بیا کوے په دشتو — چه د ژمی وار قضا په هندوبار کړے

تن په تن مے سلام وایه په یارانو
چه د دوه په خطه ورئشے ګذار کړے

---

۱ چراټ سره نږدے جنوب خواته یو کلے
۲ دا هم دیوکلی نوم دے
۳ چراټ چاوڼی د جنوب په طرف د آفریدو او خټکو په سرحد واقع یو کلے۔
۴ سراسر (ق - ن)
۵ ننګه ته په مزکه تل نوی له اصله (ق - ن)

## (۳۴)

نهایت د ګوړ په کوړ خاوړے اېرے شوے
هغه خلے چه د فنا شګړ خورے شوے

کوم پسر میند وجدا کړي له رحمه — چه ئے نه په سینه خاوړے انبار شوے
په هر غولي چه ووے وُښي د سند رو — لازمي ئے په انګړ د غم سوُرے شوے
د وړ ژغ به ئے سبا مخونه تور کا — کهٔ ئے نن په بنادئ ګواهے نغارے شوے
که دائم په دروغ وُوے د بنادي نهٔ کا — خُلے ئے وے بژه د دهر په درے شوے
تهٔ په لږ عمر غرور کړے بوالهوسه — نکه مخ قبله د ښس یار د سفرے شوے
ګمان مهٔ کړه چه به تهٔ همیشه پائے — چه تر تالوئے کلّ ذرے ذرے شوے
د حیات خلعت ئے پس په ازل جوړ که — اول توُرے د ازل ورته تیرے شوے
ما په د استرګو کړے[1] په خیر لیدلے — په سمائے پیوسته بادي طُرّے شوے
چه صرصر د حادثے وربانده راغے — زړو که طرّے پا تو هم خیرے شوے
پرهنه ئے ملوکان له تخته بوتهٔ — پستنه ئے لعیلے فیل و دیرے شوے
د فرقت بار ئے ثقیل شهٔ په ماڼیو — په ژړا ژړا نسکورے په اېرے شوے
نهٔ ئے مهر په اوربل د جوُنو وشهٔ — نه مهرے ور ځنے پا تو د اګرے شوے
کهٔ د هیو وفا نهٔ وکړه له نا ویو — له شاهانو هم جدا ئے سهرے شوے

---

[1] کړے خیرے (ق - ن)

له هیچا ئې یاری نکړه تر کماله ئې نصیب د یو دعا د بل بنیرې شوې

هغه مست زلمي چه زیب د ودانئ وو په صحرائې د خدا کونو هدیرې شوې

سل داغونه په ځیګر له کوره لاړل په خلوت ئې د ګورزنګ پیښې ځیر شوې

ناویو مزکو چه د اغم شاهده کړې د زیور اثر ئې لرې که میرې شوې

ګذشته سهرې مونږ په طلب نه شي په ژړا مې دواړه چشمې فوارې شوې

نن به کله مینه ستا پرېږدي ودانه چه په دورې د ماضي خونې پیښ شوې

هغه لوئې د جهان چه رته پرتې شول چه د دې ئې نقش پاتو منارې شوې

صندلي ونې ئې غوټې په تیشه کړې له بنیاده دیرې سروې په ارې شوې

څو طرې د چمن زویو په سر کښېښوې په سیلئ د مهرګان همه خورې شوې

په ازل د بخرو ویشي رسد ئې نن دې په حصه د چا مسجد د چا دیورې شوې

د دنیا چارې نادان ته بناسته دي ودانا ته یا قیصې یا مسخرې شوې

هجری خلق ئې د عالم په جور پرې کا
د هجران کله په چاپڅې د هرې شوې

## (۳۵)

دنګارے یوه مخبنه لیده شي په احضر کښے
دسما همه ګلونه ددلبر دي په زیور کښے

تور اوربل ئے تخت مثال لکه سپهر ... که کوکب غواړے نظرے کا په در کښے
وسره مهرته ئے غټ کتل محال دي ... کله سترګے برابر ګوري په نمر کښے
مخ ئے بدر دګردون دے راشه ګوره ... دآسمان تلے ترتے دي په پسر کښے
په غون ونو ئے غنچے کړن پهول نه دي ... سر یا دي دسپهر بخر کا په دلبر کښے
په تارک ئے سپس پهول ایښے لکه تاج وي ... مرصع په زمردو هم دُرر دي په افسر کښے
رخشنده ټیکه ئے ایښے ده عجبه ... دمچلیونه سوخته په ډیر خطر کښے
دواړه لړه ئے روښن دي ترشهابــو ... دګردون لارے څرګندے ده په سر کښے
سُور پېښ وان ئے ددوکان لیسري ولی ... هرګز نشته داخصلت په سمندر کښے
دسرے نتے ئے همیش وطن په اور دے ... که ختک له مجبوره سوزي په شرر کښے
دیاقوت سُرخي ئے وینے دشیدا دي ... لطیف ځان مے ګرفتار په دا ګوهر کښے
مستغني دي بناګښته دچرخ له زیبـــه ... دطارم ترزیب ئے څه دے په نظر کښے
سرتر پایه ئے همه سره تشبیهه کړه ... نه ګلونه دچمن دي نه فلک په هسے کښے
خماری سترګے ئے نه لـري سپـــهر ... چه مستي ئے دپیالوده په ساغر کښے

د مېنې مينه د خوږو زړو سبق دے ... شپه او ورځ مې هېره نهٔ ده په سفر کښې
زړهٔ مې ناست د شاه په لبو هميشه دے ... لکه مچ چه گرفتار دے په شکر کښې
د يار حسن شعله د رغله په خوب کښې ... بنديوان همه روشن شهٔ په غرر کښې
منت بار د بنائسته وُ د کل جهان يم ... په برهان مې فلک درست ورکړ رهبر کښې
دا بيان کهٔ په غوږونو واروی ځونے ... په رحمت به ئې فقير کا په سرهٔ زر کښې
دځان غم را ته وئيل کوی په شمار ه ... گونگ طوطا مې ئې گوگل کړو په پنجر کښې
روڼې سيل ئې د مخ کا زلفې ئې راغلے ... همه ورک شهٔ ترشپې لاندے په سحر کښې

دسر وېره هرگز مهٔ کوه اشرفه!
عاشقان دی پروانه د عشق په چړ کښې

—…—

## (۳۶)

لباسی دُنیا فتنه ئے په بنیوڅ کښے
هر سړے فریبنده کړے په جلوڅ کښے

دمراد باده په ستړکو ورښکاره کړے — په افسوس ئے کړے خارج په مسخرو کښے
ستا په خوان د بیغمئ نوا له نشته — د پر تارخهٔ دِ آلوده دی په خونو کښے
دانایان دِ په خوی بوه درځنی تښتی — دنعمت هوس د پروت وینم په خرو کښے
چه ثمرئے ستا دباغ خوړلے نهٔ وی — وطالب ته ئے سزاوار کړے په کتو کښے
تل دغم سره بوره په زندګئ وی — څوئے واچوے دخاوړو په کیسو کښے
باغیچه دِ اګنده ده له اندوهه — واړه زهر دِ موجود دی په میوو کښے
بوالهوس دِ وصال غواړی تر اَبده — تجافی کله اهمال کوی په تلو کښے
څهٔ دوصل نوښی تیره په زمان شوه — هجره! تهٔ به مے څوسوزے په لمبو کښے
دبنادئ وفا مے اولیده په ستړکو — غمه! ستا به څهٔ بقا وی په آستو کښے
لکه باد د زلفو وصل شهٔ له دسته — حلقه مار به کله پاتو شی په پښو کښے
فسادت دِ تل کړے څیرے پریباسی — څو کینه لرے دورانه په شملو کښے
طراری دِ برهنه واړه قاتل دی — طرفه داچه بیا دِ نیسی په سینو کښے
بهاری ګلونه څو رنګه تازه کړے — زرئے خاوړے د چمن کړے په غرمو کښے

ګوارا طمعه کومه له کرداره — د فلک همه ترخه دی په کاسو کښے
عارفان د له مستو هسے ویزار دی — لکه وویے ترخه ګوټ لاپه شود و کښے
ذی حیات دی مسافر، ته ئے منزل ئے — هر نفس د بندیوان په غم شیشو کښے
واڑ ګونه دور د خوی شه له ازله — چرخه! څه سود د موندلے په کړ وکښے
غم ښادی په خپل نصیب رسی خاطره — څوک د چا دپاره ډیروی په رخنو کښے
که هرڅو د غم وریځو تاریکی کړه — د کرم قمر ته ګورم په اوړو کښے

هجری صبر وسیله د راحتونو
د زحمت علاج د نشته په کیلو کښے

---

# (۳۷)

په هر لور دِ دهوس زین کړے ګړنګ دے
د لغت میدان ئے نشته عمر تنګ دے

دیر وخنګ د امل تند په دا منزل کړې
د مسلک په سرئے مرګ شلوے تنګ دے

تهٔ او مهٔ فکر ونه کړے بیغمه څرے
مرګ په څو درته ولاړ لکه پلنګ دے

په دالار به څرنګ تیر امل رخت کړے
د حباب کیسه لوټي موت ئے شنګ دے

ذمیمه حرص ماڼئ ذرهٔ دِ تخته شهٔ
په منقار ئے د قلم لکه ارتنګ دے

یو زمان ښهر ته شا، هدیره ګوره
ملوکان ئے نواله قبر تفتنګ دے

لس ګویا زلمی به اووینے دم شوی
د خاکی قفس کهنه تن ئے نهنګ دے

رنګینه څونه پرتے دی په لحد کښے
تورے زلفے ئے ورستے بدن ئے زنګ دے

تل ئے حسن تراوت باخښنه وګل شه
تن ئے مخ د حبشي خاورو په رنګ دے

د ماغي ناوے د حال په ژبه وائي
د مسن هیکل مے تن د چا تر څنګ دے

صنوبر چه ئے له قده خجالت کړه
هغه قدرتے حلقه شوے لکه چنګ دے

هغه شاه چه ئے بستروه د اطلسو
په بستر[2] د خاک اودهٔ ستخره دهنګ دے

---

[1] بونه (ق - ن)

[2] مسند (ق - ن)

چه په ځان ئې مځکې نښتهٔ له کبره
دمړ چاځې ځن په سر باندې شلنګ دے

تیر مهري که بندیوان د لحد نهٔ دي
په را تلهٔ ئې وله کړې هسې درنګ دے

زلمي ځونه ئې غوټه کړهٔ ترابده
نسي د ګور کهٔ مختصر بس ئې ترنګ دے

زیرکان به څهٔ هوس په دا چمن کا
مرګ په کښ ښېنده ولاړ پښه خدنګ دے

فریدون چه هسې ناز په خزانو کړه
له حشمه خالي لاړ خاک ئې په چنګ دے

په بقا به د دولت هغه نازیږي
چه ئې ځنې غفلتي بوټې دبنګ دے

ودانانه مال جیفه قدر ئې نشته
ابلهان کله سګان په هډې جنګ دے

په جامه ئې دا پرو جریده کس زي
کهٔ په دور سره یار غواړې ملنګ دے

مال و ملک ئې د دنیا همه ترشا کړهٔ
په یوه دوځه غره لا تر اورنګ دے

نهٔ مشتاق د مهترئ نهٔ د بزرګئ شهٔ
نهٔ ئې پروت په کېږئ د چاقلنګ دے

نهٔ هوس د یارئ کا نهٔ وصل غواړي
نهٔ ئې ځنې د فرقت په جام شرنګ دے

شاه زلمي په ارمان لاړهٔ له جهانه
په عالم ئې نښان پاتو نام و ننګ دے

هجري زړهٔ د وفا بدشهٔ له ښهرونو
په څوکو هغه باغي ګرزي چه رنګ دے

## (۳۸۱)

ملال مه لره خاطر که وار دَدَے دے
سبب غواړه دهوس پسے سپرے دے

هغه څوک چه عیش کا په جام دمیئو
په نظر کښے ئے دیر سهل تخت دکے[۱] دے

څلور خیزه چه لری په وخت دګلو
دمراد په سریں ناست هغه سړے دے

نے ودف زیبا دلبرے په مجلس کښے
چهارم ئے بل څه کله جام دمیے دے

دغم فوځ به څوک مات کا بے شرابو
هر طرف په جهان ویم ژغ دهے[۳] دے

ما دهجر داغ نهان کړے په سینه کښے
لاله ګل په کف نیولے دزړه[۴] کے[۵] دے

زما زړه دیار په یادو حیاق کا
کهٔ دا نور خلق همه په اوبو[۶] ځے دے

هغه کور چه بناسته وی په بنو جونو
پسر لے کله دهغے انګنړ محے[۷] دے

په هرغولی چه رسته وی څو دلبرے
تر جنت ئے زیب هزار ځله تیرے دے

په څهره به ئے ګل څوک دمشابهت کا
دیار مخ په حسن شاه هغه چُورے دے

---

[۱] دکے یعنی دشمسی کال لسمه میاشت چه سخته یخنی وی پکښے - دمنی موسم
[۲] کے لهراسپ - دایران دیوکیانی بادشاه نوم چه دکیخسرو نه پس باچاشوے وو -
[۳] هائے افسوس [۴] داغ [۵] کب - مهے [۶] مثال
[۷] مجازاً موجود ے -

د مخ نور ئې ماله نمره تجربه کړه  —  دیار نور بیشکه وینم چه برے دے
سیاه خال ئې په عارض باندے جلوه کا  —  کهٔ په ګل د ګلاب بوډیا[1] میږے دے
په پیښ مخ ئې خط د خط دے چه ئې وینم  —  یا چا کړے په سورج د مشک دُفے[2] دے
بوړه ترعقیق د ماه په څهٔ نسبت کړم  —  تر بهاره بورے هیڅ د مهر رُوے دے
مرتبه دیار د مخ که هما ئې ده  —  د ګلزار قدر ئې حسن ته ملخے دے
دونا تاثیر ئې نهٔ وو په شودو کښې  —  په طفلی چه یار رودلے هغه تے دے
چه د عشق د پلنګ بیت مشاهده کا  —  ترګیدړے هغه عاجز شی کهٔ مزرے دے
بورا بوس دعشق په زور ځنې اخلی  —  ګنړه ګل سره ئې څهٔ تور چښے دے
هرسړے چه طمع نهٔ کاندی له چا سته  —  هم هغه دخپل زمان حاتم طے دے
دجهان په ریاض ګل بے خاره نهٔ وی  —  دهرګل دخنګه وینم چه اغزے دے
دځوانئ عمرے تیرشهٔ په زحمت کښې  —  ګردون کله رحم وُکهٔ چه زلیے دے
بے مګسه حلوا څوک په دوړ موی  —  نوشول ئې آسانی مشکل ئې قے دے
هیڅ حاصل ئې بے دریغه پکښې نشته  —  هغه عُمر چه تیرشوے پروني دے
نن به څهٔ ژړا له هجره کړم وچا سته  —  ماماتم د وصال کړے لرغونے دے
دپروں ساعت مزه نن موندهٔ نهٔ شی  —  دهرکار په څیره وینم چه کمے دے
چاوے شاه د نظم څوک وینے سپهره  —  لاس[3] ئې اوږد زما په لورکړو، وئے ډے دے

هجری آروه په څو رنګه شکایت کا
د هجرانه فریادی بیچاره نے دے

---

[1] دبورا مخفف  [2] تورخال
[3] لاس ئې اوږد کړ زما په لور چه ډے دے (ق-ن)

## (۳۹)

سوز لکه د زړهٔ دے دسرسترګو مے ژړلے
رخ وه چه په ښهر سیلابونه چلیدلے

زړهٔ مې په منګل ګېنې درست نیولے فرقتونو
پروت یم له غمونو لکه غش کا مار خوړلے

زهٔ بلبل دګلو تابندی کړم په قفس کښې
وئ د ریغه نصیبه که ځځکنه دِ وے کتلے

مرګه تلوار مکړه لږ فرصت اوکړه شدېږه
یو ځله چه اووینم مېین ترګلو کښنلے

وے واړګونه دورونه تل کوے فلکه!
هسک نهٔ وے دلاسه ئے دا هسے ګرځیدلے

دا همه جورونه بیلتانهٔ دی پما کړی
کشکے مے رسد وے د هجران مهم کولے

نهٔ دے زما لاس چه په فرقت ئے سینه ځخ کړم
یو ځل مے په خوب کښې پټ په وینو وهلیدلے

سل کاله د وصل کله هومره خرمی وی
جام د جدائی د زهرو څوک شی نوشولے

واړه تماشه کړه غم لما سره جنګی دے
زهٔ ئے په قسمت وم دے وغا لره ساتلے

غم که پما یو وے زهٔ ئے جنګ وته تیار وم
چا ته مخن نشم دا لښکر دے جوړ وے

ستاله ستمونو دوړه چا وته ژړا کړم
ولهٔ مے په غشو ما همت در ته نیولے

خوب وینم په وینه یا بیهوشه کړم غمونو
غم په خلائق دے که زهٔ غم لره زوو ے

وئ د ځوانئ عمره څرنګ دروے بے درنګه
پیا توشی لتا نه دلبندے غشے ختلے

تیر به کله راشی باقی لا شتاب زده دے
مخ په وړاندے زغلی لکه څوک وی چا بللے

تل اوبهٔ ژړا کا په ژړا کښې داوینا کا
لاړو رابه نشو څو مخوا دے بهیدلے

طوطا دے په پنجره کښې ته خبر نۀ ئې ابلهه
لږ چه رسیده شي ځوک ئې نشي ستنه وُلے

کوم هغه خسرو چه په اورنګ کښېني د زړو
تش ځنې لاړ نشي د ارمان ســوړ وښتلے

ژړنې غونډې ګرځې په عالم باندې فلکه
پاتې به مېړه کړې تش دِ واړه مېړه کړې

ګونډې په غوغا د حشر ویښ اُوده سړے شي
اوس چه په آواز د جرس نۀ دے خمیدلے

هیر مې کوم نفس ئې چه دِ یاد کړم کله کله
جوړ دِ دوی نامداره بېلتانه دِ یم وېشتلے

لږ نۀ ئې شمشیره تر خاطر مې ئې چاپیر ه
اثر لرې شمشیر ئې د زړۀ ملک مې وه ګټلے

لال مې طبیعت وه د اشعار له قیلو قاله
خشکه ګویا شم چه بېلتون راغے ختلے

زړۀ مې دے بیمار د غم اثر بنۀ ئې سېلے
څو رنګه وېنی چه رنځور شي باد وهلے

ولاړ په رهګذر یم خبر غواړم د یارانو
د ترو خبر اخلم چه هیڅا نۀ دے مونډلے

داهمه فریاد چه روحي کا سلامت نۀ دے
زړۀ ئې دور غوځ کړیا په کاڼو دے ویشتلے

# رباعیات

(۱)

څوک چه هیر د یار نصیحت کا — زمانه واړه پرے ملامت کا
د خدائے رحمت شه په هغو باندے — کهٔ ډیر ضرور وی نظر به پټ کا

(۲)

داچه وتاته خبرے څوک په خلے کا — له زړهٔ نه واڼی هرګز تشے قیصے کا
زما شوے زړهٔ تشن په تش لباس کړ — هیڅ وینا په رښتیا نه قیصے پسے کا

(۳)

قضا له عقله داناتغیر کا — ځنے خطا د بهبود تدبیر کا
ماهی پخپله ځان لره داولی — مرغهٔ بے عذره په دام اسیر کا

(۴)

تورے زلفے چه په مخ باندے ولول کا — هزار زړونه د عاشقو مبدل کا
په شفقت ئے بلاق پروت علاج ئے نشی — هر زمان په کوډ د زارو آتش بل کا

(۵)

دولت مند چه لما طمعه د تعظیم کا — په دا کار ترحده ډیر غلط عظیم کا
چه زما طمع د دهٔ لما له نشته — دے به څهٔ لمانه طمع د تسلیم کا

(۶)

چه څوک کوي خونِ جگر کا — هغه زده علم و هنر کا
هیڅ حاصل نهٔ کا له علمه — په بازیو چه زړهٔ سر کا

(۷)

ربه نکړې هیڅ غمګین بنده په یاد — چه کړم د خوشحال نکړې په مراد
پخپل فضل ے دکار کشائش اوکړه — دنړۍ ورځ راباندې غم کړله سواد

(۸)

په تحویل شي دویساک — شین اطلس شي مځ د خاک
د زړهٔ مځ کا په عیشونو — له جمله اندوهه پاک

(۹)

سپینې به یرے تا په جونو کښې بدنام کړم — سزاوار د د ګلرنګو د دشنام کړم
که هزار ځله فغان کړم پرواه نهٔ کا — نهٔ نظر په مهر کاندې چه سلام کړم

(۱۰)

کشکے کړے وے دا مسے ذوالجلال — چه قدرت د هجران نهٔ وے په وصال
یو دین چه د مینو سره اوشي — نور ئے نهٔ وے ترابده انفصال

ﻟ سور (ق-ن)

(۱۱)

ماته ژغ وکړ شباب چه لاړم لاړم ‏ ‏ ‏ ‏ ما به رابه نشی بیا که ژاړم ژاړم
دځوانئ زمان موندهٔ په طلب نهٔ شی ‏ ‏ ‏ ‏ همیشه که ئے په دهرغواړم غواړم

(۱۳)

زهٔ حلال سحر بیشکه په اشعار کړم ‏ ‏ ‏ ‏ ځکه هومره په خپل شعر افتخار کړم
هر غزل چه مے صدور له فکره وکړه ‏ ‏ ‏ ‏ جواهر د دې عالم په سر نثار کړم

(۱۴)

په ماننګ وشرم دېر ولاړ په ننګ یم ‏ ‏ ‏ ‏ چه په اور خپسر سېزی هغه پتنګ یم
چه د مال په طمع خوی کا د نامردو ‏ ‏ ‏ ‏ کله زهٔ د عمرو زید غونده دورنګ یم

(۱۵)

تر وېنبهٔ ځکه نړے دغم وطن شوم ‏ ‏ ‏ ‏ په چهره لاخهٔ خوزېږ ترکور کمن شوم
چه مے زړهٔ چاته ورکړے وه په مینه ‏ ‏ ‏ ‏ دهغهٔ کور په کابل زهٔ په دکن شوم

(۱۶)

په اشعار چه دفارسئ سخن رانی کړم ‏ ‏ ‏ ‏ په لحد کښے ارواح خوش دخاقانی کړم
دپښتو ژبے شاعر په زمانه کوم دے ‏ ‏ ‏ ‏ چه ئے زهٔ په داهنر دځان ثانی کړم

(۱۶)

باقي مهٔ ګڼړه یاري د این و آن    عمر و زید چه ئې غواړي دا زمان
خزان دور د ګلونو ز ربدل کا    کهٔ هر څو ئې آرائش وکا نیسان

(۱۷)

کهٔ تازه کانو روزي نسیم ګلان    بیا ئې زړ کا پژمرده بادِ خزان
د هر چېن د عمر څو کاهه بهار وي    نور ئې زړ له خوبئ غزل کا زمان

(۱۸)

هر نبات چه نبات نوش کا د نیسان    زړتر زړه نیش په خله کا د خزان
چه خوان ئې د وصل خوري بې غمه مشه    البته به تار خهٔ نوش کړې د هجران

(۱۹)

یاري مهٔ کوه هرګز د جاهلانو    په دوستئ کښې چار کوي د غلیمانو
غلیمي د رلره ښه ده د فهمیدو    نفع نهٔ بخښي یاري د ابلهانو

(۲۰)

په هیڅ به غرض نهٔ کا وهٔ غمو نو    کهٔ انصاف جُله کوے عالمونو
چه حاسد په ظلم راضي د نس هوا کا    د بل زړهٔ غمونه غوڅ کا په نوکونو

(۲۱)

دژوند ون مزه هغه گــنړم یا رانو     چه بېنه کېږي په باغ کښې دگلانو
دمجلس حلقه خالي وي له غـمازه     حاشیه ئې وي زیبا په سرودیانو

(۲۲)

ریاض کۀ شین کۀ دنیسان فیضونـو     نسیم رنگین کړي په سرو گلونـو
شبنم برگونه دونو هسې کړهٔ     لکه شین کا په تور غوټۍ دپېښو

(۲۳)

باده چه ورشي دروه په غرونـو     سلام مې وایه په ژړیو ځونـو
پس له سلامه ورته ظاهر کړه     چه هجري زور کړ ستا سې غمونو

(۲۴)

دریاض میدان همه ونیوهٔ گلو     په هر لوري ئې آواز اوکړو بلبلو
مور ددهر دبناډۍ فرزند پیدا کړي     دمان بولي ورسره شیشې دملو

(۲۵)

هغه دم چه دوطن هوا کړم یاده     دائم داشه برابر دمراد باده
گوندې بیا هغه یاران مشاهده کړم.     سفینه له تا نگه ووزي سرهوا ده

(۲۶)

په رضا که د چا جوړېږي کارونه — د هیچا به په زړه نه وو ارمانونه
قضا کار په رضا کله د هیچا کا — ارمان ځکه په هر زړه کېږي زخمونه

(۲۷)

په خېر خېر کوره د باغ ګلونه — پسې به وکړې بیا ارمانونه
زیبا بهار به کانده خزان شي — همیشه نه وي ګلزار ګلونه

(۲۸)

نېک و بده چار د دهر ګټه تېره — تېره چارې نهایت کا خالق هېره
د دنیا مثال پاسې د قمار بازو — هره چارې ګټې تېن شي ګټې تېره

(۲۹)

که هر څو دنیا وفا نه کا فاني ده — یارې شکرن ګلو ارزاني ده
او بېشکه مل حلال نه دی واعظه — ولې نن ئې منع مکوه ځواني ده

(۳۰)

هم د نم هم ګل و مل او هم ځواني ده — بله کومه تر دا ښه زندګاني ده
غني ګټره داوار به کانده نه وي — وفا نه کاندي له چا دنیا فاني ده

(۳۱)

هجری کیږ ده اندوه ته غاړه          بنادی به څهٔ کړے ځوانی دِ لاړه
خوبی دعمر په غم کښے تیره شوه          بیا به رانشی ورپسے ژاړه

(۳۲)

زړهٔ بنهٔ ده اړه کړه هجری محزونه          آخر به تیر شی دا ساعتونه
خوشی د وصل کهٔ دوران رانیوه          همیش به نهٔ وی هجران غمونه

(۳۳)

سبا غنچے کړهٔ د باغ ګلونه          مونږ مسافر یو سبا به ځونه
دیدن د ګلو همیشه کله وی          په مرادګے کا فلک دورونه

(۳۴)

غنیمت شماره دا ښهٔ وختونه          یاره چه وینو سره مخونه
دا کروفر چه لیده په مزکه شی          زر به ئے نور کا فلک رنګونه

(۳۵)

هومره مهٔ کړه په مال نازونه          اول د نورو وو دا مالونه
لتا به کله یاری ترسره کا          په مکر ئے تیر کړ عالم زرګونه

(۳۶)

په چرته لاړغــه زلمی ځوانه ‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌ چه به یې ناز کړ په داځایونه
خبر یې غواړمه موندهٔ نهٔ شی ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ تـــکل دکوچ کړه پسې به ځونه

(۳۷)

ترکومه به اوسی په دا ملکونه ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ وړاندې یې لاړل پلار ونیکونه
چه مرګ پرې راشی ترې یې جُدا کا ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ که ملک یې ډیر وی یا زر سکونه

(۳۸)

ډیر مې اولیدل زربفت شالونه ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ چه ځنو قبول کړل په ډیر کالونه
مرګ چه روان کړل دکوره ګورته ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ نور و قسمت کړل نغده مالونه

(۳۹)

هجری پرېــــکړه له خلقو طمع ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ هاله به خلاص شې له ډیره غمه
یاران واړه دمطلب ځونې دی ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ په اخلاص نهٔ ځی څلور قدمه

(۴۰)

دغریب هجری ‌ ته نشته بې صبره ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ چه دزړهٔ یې هسې پرېکړه فلک ببره
دګردون خو ‌ وشی چه کینه کاندی ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ ته مې ولې وریتوې په هجران ګبره

(۴۱)

هغه شراب طلب کړه چه وی تل له غمه وتښه — راځه کړه شیشه چه ته پکښې دم کړم غمه تښه
قبا د ننګ پاره کړه که رفیق ئې د مستانو — کښېنه لره راده ومه لکه زه یم هسې ته شه

(۴۲)

چه په نام پسې بې ننګ شوې چه نام نشته — جهان درست په تعرف کړم آرام نشته
له جهانه کاوس کله په زړه داغ تللهٔ — یک حرفی خبره داده چه کام نشته

(۴۳)

دآرا به روغ کړل رنګین ځایونه — ترشیرې لوئې وو د باد بریتونه
له وره ئې هسې ګردون خارج کړه — لکه تیز صادرشی دخره له کونه

(۴۴)

څو په تخت باندې قائم دې اورنګ شاه — په نوکری دی هیڅ پښتون نهٔ کا وسیاه
نن آغاز دلسم کال دې باور اوکړه — چه په بند کښې ئې زیږیږم بیګناه

(۴۵)

که ئې زده وې چه په ځنکښې دابلا وه — نې به خوب وهٔ هغه دم نهٔ به خندا وه
اوس نازین مګوندې عیش وی په ځنکښې — ګذران شوه هغه ورځ چه دجفا وه

(٤٦)

دنیا ګرام ارزښته مکره بې وفا ده ترحیاتے زیاته مینه په دنیا ده
که په کوره دِ چرے درغله نور ژاړه وایه راوسته نصیب توره بلا ده

(٤٧)

دریغه اولیدے د روه ملکونه په حیات روغ شوے دزړه زخمونه
پیری ئے راغله هجری به بوځي هورے چه لاړل همزولی ملونه

(٤٨)

زه ګنهګار یم زیره کستیره د نوی و دیرو وے ستا په ستیره
صغیر چه خطا شی کبیرئے عفوه کا بنده معاف کړه ما دِ منیره

(٤٩)

اوس به اغوندم جوګی دِ تاله بهیسه چه فلک کړمه خارج له خپله دیسه
یو عشرت په صد هزار غمه بدل کړے عجب خوئی لرے ګردونه کاسه لیسه

(٥٠)

دسائے تاثیر دِ دیر دے تر همایه دبنائست پایه دِ تل د فلک سایه
یو نظر په حال دخپل ویشتلی وکړه غم دِ خشکل په کټ ځملاوه له پایه

## (۵۱)

دجهان خلق همه ګڼړه دورسنګه — یو سړے په دوئ کښے نهٔ وینم یکرنګه
وفاګر په سختئه نهٔ ځئ له مینه — دډیوے لمبه وطن ګڼړے پتنګه

## (۵۲)

چه حرص تل دوطن کړے زړهٔ فضوله — مګر مل بدنصیب څهٔ شی له هر سوله
آب وخورکهٔ ډیرے وی البت به ورشے — اوکهٔ نه لیه غوغا کوے مجهوله

## (۵۳)

په اورنګ هسے غرور مهٔ کړه اورنګه! — ډیر و وړے دے ارمان له دے اورنګه
جهانګیر، اکبرؔ پدر دِ مګں هیں کړهٔ — چه ئے داغ پو وړ دے اورنګ له رنګه

## (۵۴)

راشه ګوره د داؤدی شاخونه — ټوک ئے غوټی کړهٔ خنه تیکونه
یا کښته ډرد ے نسیم جړاؤ کړهٔ — د فیروزه ؤ په پیوسند ونه

## (۵۵)

په خیر خیر ګوره دباغ ګلونه — پسے به اوکړے بیا ارمانونه
زیبا بهار به ګاند ه خزان شی — همیشه نهٔ وی دګلزار موجونه

(۵۶)

یوځل اولید ے د ولایت غرونه — په سر شمله کړے د باغ ګلونه
جیات میلمه دے باور پرے نشته — تر باد تیرے کا په تلهٔ کالونه

(۵۷)

ګوره څهٔ شی د وصال طمع سبا ده — نن مے غم د هجر سل هغه رِجا ده
د فردا امید په شک دے ګوره څه شی — نن د هجر د غمونو په زړهٔ غوغا ده

(۵۸)

چه په بزیره د چاپیږ ویښتهٔ ظاهر شی — د ځوانئ نوبت قضا عمر آخر شی
په دا وخت دانا هغه چه ښهٔ عمل کا — د زلمیو له خصله نور صابر شی

(۵۹)

زهٔ کهٔ وایم طالبان د دنیا سپی دی — ملامت به هرګز نهٔ کا چه سړی دی
هم هغه ګنړه سړی چه سړی توب کا — واړه مهٔ ګنړه سړی ګیاه جنی دی

(۶۰)

په ریاض کښے نن هر ګوره د بړګلان دی — خلعتونه ئے اغوستی د نیسان دی
رنګارنګ نمری په تن مخ ئے ښکاره کړ — ګویا جوړ د عید د ورځے کودکان دی

(۶۱)

په چمن چه جمع شوی بلبلان وی — دګلونو په صال څکه نالان وی
هر زنده چه دوصال شکرےنوش کا — ور پسے ئے زهر بخره دهجران وی

(۶۲)

هر سرے چه په وصال دیار خندان وی — شک پرے مکوه همیشې هغه نادان وی
هجران بنهٔ چه پسے وی دوصال طمع — خندا مکړه په وصال پسے هجران وی

(۶۳)

دهرچا چه په نظر هغه رخسار شی — په جامه کښے ئے پیدا ګُرږے هزار شی
په قرار به خوب په څو هغه سړے کا — چه ئے ورُږے هزار پټے په آزار شی

(۶۴)

هغه زلفے چه تل غوړے په فلیل دی — هغه ګتے چه لا پسینے تر چنبیل دی
لکه ګرد دیار په مخ هسے خورےشوے — زما نے ګر چاپړ کړے په غلبیل دی

(۶۵)

سرو دیان چه سرود ګرم کا غښرین ی — هلته اُخله په لمنو عشق لوټین ی
دا ساعت چه یوځل شا کا مخ به نشی — دفانی دُنیا دوړ ونه دی تیرین ی

(۶۶)

پهٔ دنیا چه چیرے دو رنګ دی  داړه سپی د سړیو په رنګ دی
سړی هغه ګڼړه په دانا بوده  چه په ضرور کښے ولاړ په ننګ دی

(۶۷)

بناسته سترګے هغه چه باحیا وی  بے حیا سترګے به څهٔ کړے کهٔ زیبا وی
ارتینه چه زیب لری پوهه ئے نهٔ وی  په بناسُت ئے غلط مشه ببینه غواوی

(۶۸)

هغه سترګے چه په څو رنګه زیبا وی  زهٔ ئے مهٔ وینم هرګز چه بے حیا وی
که ئے مخ تر سپوږمئ ښین په کارے نهٔ دے  چه خالی له ښهٔ خصلته بے وفا وی

(۶۹)

قرار نهٔ لری په هیڅا فانی سرائے وی  وهر کار ئے کله سروی کله پائے وی
په یوه لور چه ئے ګورمه خندا وی  کهٔ په بل طرف نظر وکړم هائے هائے وی

(۷۰)

دم چا چه په نصیب ذوئے قابل وی  له همه غمه ئے پاک صحن دَدِل وی
تا قابل زو په نصیب د هیڅا مشه  بد الم په دنیا کله تر دهٔ بل وی

(۷۱)

یاری نهٔ لری د چا همه د سود وی ... باشنده دَ دهر زوئے د مقصود وی
پس وی د میچا نهٔ کا بے مطلبه ... کهٔ آشنائے حقیقی پهٔ ر په جُود وی

(۷۲)

ښهٔ مردان که ښے دلبرے د جهان دی ... عاقبت له دنیا تللی په ارمان دی
چه احوال ئے نن بیان کا کتابونه ... هغه واړه د خاکونو بندیوان دی

(۷۳)

چه نوبت د مُوت قضا وارد حمل شی ... له دنیا همه تغیر د برد عمل شی
ساکنان ئے تن په تن عیش را فی کا ... له فلکه کنج د سرو په مزکه تل شی

(۷۴)

حادثه هر کوره ښهٔ وی ... چه ور ده نشی وړه وی
نیک و بد همه ظاهر کا ... ولے غم دے چه وُر ده وی

(۷۵)

په دیر غم کښے تل رِق وی ... چه ئے یار ناسوافق وی
د غم کار په هغه نشته ... چه آشنا ئے موافق وی

(۷۶)

قضا چه راغله طبیب ابلهه شي  —  دارو له خپلې نفعې ګمره شي
د مار په غوښو مېږی ای انډ کا  —  شیرِ بې قدرته لګه رو بهه شي

(۷۷)

داکوړی په سرائې تو دې ډېرې ښځې دي  —  پرې قبول شوی څو بې ننګ د قبیلې دي
چه حیا او ننګ ئې ګورم باور وکړه  —  په څو رنګه مسخره ترخان برې دي

(۷۸)

دم چاپه ځائې چه پاتو ناخلف شي  —  اسم ورسم ئې د ښووارو تلف شي
ناقابل د چاپه مینه پاتو مشه  —  په بد خوی ئې آخر بد همه سلف شي

(۷۹)

چه مطبوع مې په خاطر وي  —  اوس هغه غیر حاضر وي
چه مې کېږې په کار نهٔ دې  —  هم هغه راته حاضر وي

(۸۰)

بیا به رانشی زما هغه معزولی  —  چه موتل سره مجلس کړه یوغولی
دم یار ژغ مشتمل په طلب آرزوم  —  البته به مې خُم چه تل مې بولی

(۸۱)

چه جفا وی سرشته دچا په تن کښې　　　　هغه کله وفا کاندی په زمن کښې
په دیُل به دمچا وفادار نشی　　　　چه رب کښیښوه وفا په هغه من کښې

(۸۲)

نجات نشته له مجرانه په تدبیر کښې　　　　داگمان دِ مېڅوک نهٔ کا په ضمیر کښې
زهٔ له یاره هسې وصل ځه بیل کړم　　　　لکه دوه ځاڼې چه جګې شی په ځیر کښې

(۸۳)

بل مطلب مې هرگز نشته په ضمیر کښې　　　　مګر یو فکر دائمُ دې په خقیر کښې
یو ځُل یار سره جوړه په هسې شان شومې　　　　لکه دوه کوتې چه وصل سی په ځیر کښې

(۸۴)

چرخه څهٔ گناه دِ اولید په مهجور کښې　　　　چه لما شهٔ یارجدا ستا په فتور کښې
یار مې پاتو په وطن زهٔ په دکن شوم　　　　اوس به یار نسیمه بل په بیچاپور کښې

(۸۵)

څوک چه مری دننگ په کار کښې سعادت دې　　　　هرچه وُتښت له دې کاره ملامت دې
په عزت گرځی هم هغه په جهان کښې　　　　چه نیولے ځے دامن دلوځے همت دې

(۸۶)

غم هرگز د دنیا مهٔ کوه که مرد ئے    اخته شوے له حرصه په دا درد ئے
په قرار دِ هرگز نهٔ پرین دی جا هله    د یرِ حرص مثال سیلئ ته لکه گرد ئے

(۸۷)

په عظیم دریاب مثال دار دجهان دے    پانڑه ئے پانڑه ئے لمتولے ماحیران دے
یوه سطره دبنادئ پرے کښلے نشته    هر ورق ئے په غم یک یا په ارمان دے

(۸۸)

تاکهٔ ډیر دولت تحول کړے دجهان دے    عاقبت دِ نتیجه واړه ارمان دے
بے کفنه به نوی هیڅ ځنے یو نسے    هغه هم بیشکه نهٔ لا په گمان دے

(۸۹)

ن موسم دنوبهار خیز دگلزار دے    نو دِ مل دیدن دگل سرود پکار دے
دا طامع مطرب کړی په سرود نهٔ کا    په انعام ئے گرموی دزړه ویار دے

(۹۰)

ن موسم د زیړو گلو غنیمت دے    په غارت ئے دخزان کاندهٔ نوبت دے
د زوال له عیبه پاک کله موندهٔ شی    چه پیدا په دا فنا هغه دولت دے

(۹۱)

دنیا ملک دَهوس نه ځائے دارمان دے | په هر زړهٔ ئے تیرنگ کړے دهجران دے
هر سړے چه ځنئی داغونه یوسی | هم په زرغمه اخته شوئے مهمان دے

(۹۲)

داجهان ځکه دارمان دار دے | چه خزان ئې ډیر وی لږ ئے بهار دے
نوبت چه تیرشی کله پیښ ه کا | ساعت ساعت ئے دچارو وار دے

(۹۳)

نهه کالونه گذشته دالسم کال دے | چه سپهر ے سرگرم په کوشمال دے
د دنیا طمع ئے تار په تار خوړے شوے | دغریب هجری امید په ذوالجلال دے

(۹۴)

راشه راشه چه دیدن کړو غنیمت دے | هر زمان د نوی نوی کار نوبت دے
نن ساعت به سبا کله راپیرزو کا | ښین فلک هرگوره ډیر بے مروت دے

(۹۵)

که هرڅو په دکن ډیرے دی دلبرے | هجری تهٔ په غوره اوښوے گوهرے
چه په مهرے تل یادکړے مرگ دِمهٔ وه | لب شکرے سیمین برے مُوکمرے

(۹۶)

په هغه یار مې هزار ځله سلام دے — چه یې غم د هجر میشت را ته مدام دے
چه هجران په جهان شته دې ښادي نهٔ کا — هر چه عیش په وصال کا ندی حرام دے

(۹۷)

توریت راغواړئ نیت مې د فال دے — د هجر له غمه مې زړهٔ غربال دے
جدا له یاره رمق را پا تو شـــهٔ — ساعت به کوم وي چه دِ وصال دے

(۹۸)

برېږي راشه په بنا ئست تر ګل بزر مې — ستا قدم ته ډېر کا تهٔ د چمن ستر مې
په کا تهٔ کا تهٔ نرګس یرقاني شـهٔ — داوُدي هم په ژړا کړے پېښے ستر مې

(۹۹)

دسري په حصّه څهٔ غم د غفلت دے — چه په زړهٔ یې دمال هومره محبت دے
نهٔ دمال وفا له دهٔ نه به دِ تل وي — ترو په څهٔ یې سره داهومره شِدت دے

(۱۰۰)

دسړی چه خوئ د کَس وی اشارت ورلره بس وی
که لوئ غروی د پند وغو و ناکس ته لږ ترخس وی

(۱۰۱)

دوران هسے په شدت راته تاوېږی چه په تیلو مے چراغ هم نهٔ بلیږی
د نامرد په تیر د ادویشتم فلکه نهٔ پرهار د هلاکت دے نهٔ رغیږی

—..—

# قطعات



ماوے زړهٔ! دنیا هرګوره بیوفا ده ورته ولے عالم هومره تمنا کا
داړه واڼ چه فنا باور برے نشته بیا شدت په دادنیا سره پیدا کا
ظاهرواڼ دین باقی دنیا فانی ده دفانی دپاره بیا باقی ته شا کا
هغه څوک چه ځان حاتم ګڼړی د دور واڼ مینه په دا ورانے بے حیا کا
چه ئے وار په دنیا جوړشی کهٔ ئے ګورم ددُنیا حرص ئے هیڅره دادنیا کا
فاضلانے چه ئے له مینے منعه کاندی دوئ په کوم روایت مینه په دنیا کا
هغه کار چه ناروا کاندی په نوړو هغه دم ئے پخپل ځان بانډ روا کا
زړهٔ وے زهٔ جواب کوم ددے خبرے کهٔ ستا هوش درضا ګوش څهٔ خوپما کا
داهمه واړه تاثیر دمحبت دے چه هر دم له دنیا څوک ګیله برپا کا
دنیا عین په مثال یوه جیفه ده دا سپی نګه سباع تل برے غوغا کا
چه اول ئے برے غوغا کړه هغه لاړل نن حیات په داجیفه سره هیجا کا
وار په وار به داهم خاوړے دلحد شی داجیفه به کانده نورو ته رها کا
څه حاصل دهغو نشته بے ارمانه چه د دهر په دکان بانډے سودا کا
ترهغهٔ نادان به څوک نهٔ وی په دور چه دعمر په امید ورده رجا کا
مجرّی نن عمل کوه چه لا فرصت دے جاهلان طمع دچارو له فردا کا

---

یادګیرنه:- دااشعار په قلمی نسخه کښے نشته.



یو زاهد په لارے ته فاسق ئے ولید
وے ئے دا عمل به تا نهایت خوار کا

هومره بد عمل څوک نهٔ کا په دنیا کښے
هرچه کا هسے عمل وطن به زار کا

وے ئے واروه اے په ښهٔ عمل مغروره
عارفانٔ په عمل کله استکبار کا

هغه دم چه ئے جوش وکاسید د فضل
مکرم به تر نیکانو ګنهګار کا

یو مجرم به بهشتی نهٔ شی حاسده!
که خالق د عالم ستا په وئیل کار کا

تهٔ په خپل عمل مغرور زهٔ ئے په فضل
حق به څشکله نومیده امیدوار کا

چه ګناه د بنده نهٔ بخښی جاهله!
د خپل فضل په حق څشکله اظهار کا

څوک به وبخښی په فضل بے حسابه
څوک به پس د سرزنښه رستګار کا

جنت ځائے د مومنانو خو به ورشی
وطنی به د دوزخ داره کفار کا

هجری نهٔ لری نیکی په ګناه تور دے
د بخښش طمع له فضله د غفار کا



نهٔ سګان کا په مردارهٔ هومره جنګ — نهٔ غوا یهٔ هومره شدت سره په خرو کا
نهٔ لیوان په خوړو هسې حسد کاندي — نهٔ حرص دنس دپاره هومره خر کا
نهٔ په نس ګډله اخته هسې سباع وي — نهٔ حسد سره اولاد د بو البشر کا
په دا حال تهٔ جهالت دسړي ګوره — چه بدنام په دې حرص خر و بقر کا
هجري بخل و حسد لرې کړه له ځانه — داخصلت په جهانیو کښې بهتر کا



په هفته کښې نحسه ورځ د چارشنبې ده — په دا ورځ سود وسودا کله دانا کا
کهٔ د کال د نحسو ورځو خبر غواړې — چه خبر ئې د فرقان آیت پیدا کا
هغه لس ورځې آخرې د شوال دي — عاقل نهٔ دے چه ترې خیر تمنا کا



بدخصلت[1] په ارتینه کښې هسې پټ وي — لکه پټ په لویه سوړه کښې لوئې مار
چه قابو دېدو نهٔ وي نشد اره کا — په دروغ کا ځان عالم ته نیکو کار
مار هاله ووځي له سوړې چه څوک نهٔ وي — خوئې ظاهر کا بنځه هم ولې په وار

[1] دا شعر ونه قلمي نسخه کښې نشته.



یوه ورځ مې پرسش اوکړو له ګردونه — وې مې کان دې ير هُنر زما پدر وو
هغه کان دِ وې ما کړه اې سپهره! — چه په دهر تابنده لکه قمر وو
هم دانا د زما وو په دا دوړ — هم د کل افغان د قوم سخنور وو
هر صفت چه لازمي دې د مردانو — هغه واړه هغه خان ته مُيسّر وو
د خوبۍ صفت ډېر دې وايه نشي — غرض دا چه تبرک نادر بشر وو
وې ئې دوه امامان نهٔ وي په يو دور — په هر وخت د يو نزول د بل سفر وو
چه اعظم امام سفر له دهره وکړ — شافعيُ هله راغلې په دا بر وو
په نوبت دِ تا پېر شکر ډېر کړه — نن نوبت د پېر نه وار د پسر وو
کوم زنده په دهر پاتو يو نفس شهٔ — چه تمام ئې له جهانه آب وخور وو
نن ثاني خاقاني ته ئې په افغان کښې — کهٔ دِ پلار د قديمي بلبلو سرود
ما وې زهٔ دِ عادت پېژنم پلنګه! — ډېر دِ اوخوړل فقير کهٔ تونګر وو
تا هغه سلامت پرېښبنهٔ په دوړ — چه د ديوو د پېريانو ئې بنګر وو
نهايت ئې برهنه له تخته بوتهٔ — انوشير، کهٔ فريدون، که سکندر وو
خاقاني غوندې تا بوتهٔ له جهانه — چه دبدب ئې د اشعار په دهر نمر وو
انوري حکيم دِ خشکل نابود کړ — چه ګفتار ئې تر قمر لا منور وو
عاقبت دِ واړه خاوړې د لحد کړ — دو بناني، که ارزاني، کهٔ قلندر وو

تهٔ به نن کله هجري په خپس پرېږې دې
چه آدم دِ ډېر مرېز کړ چه بهتر وو



هرسړے دخپل جوهر په قدرکار کا ۔۔۔ نیک له نیکو تولد کا بد له بدو
چه سرشت ئے سعید نهٔ وی له ازله ۔۔۔ نصیحت پرے کله لږی د اسعدو
له بدخویه کهٔ بنهٔ ویئے باور مهٔ کړه ۔۔۔ هغه واړه په تقلید کا د امجدو
کهٔ خوږه میوه اُمید کا زیرک نهٔ دے ۔۔۔ چه ارهنړه کا بِنا په خپلو بدو
چه و یار په قابو کاندی په یارئ کښے ۔۔۔ دتبئ تورکے ئے پورے شه په خدو
یو عمل ئے په گفتار موافق نهٔ دے ۔۔۔ هئ توبه له هسے غولو مُشدو

په صورت ئے غلط مشه اے مهجوره
زمانیو خصلت وُنیوهٔ د دَدو



هغه کان دهندمات شهٔ انے خاطره! ۔۔۔ چه بهتر دپښتانهٔ په نام ختک وو
ذات وبود که ختک وو دادروغ نهٔ دی ۔۔۔ و ئے کُل پښتون تنه دے مردمک وو
دوفات تاریخ ئے ماله عقله او غوښت ۔۔۔ په دارنګ ئے دجواب شان وسلک وو
مهینه دویمه خور اتهٔ [۲۸] ویشتم ده ۔۔۔ چه ئے روح په جمعه ورئ پاک ملک وو
خاکی دارئے په هوس دَاِرم پریښَش ۔۔۔ عین وقاف [۱۱۰۰ھ] ئے په عددسال دهلک وو



هسې تل راته حاضره په شوخئ ده ‌ ‌ ګویا شه راسره ګړی په څوکئ ده
تل مې خونه د شکیب لوټي له روهه ‌ ‌ شنکونه د باد راکبه که پیرئ ده
فریادی د هندوبار له جُونو نهٔ یم ‌ ‌ چه په چانې جورکړې روهیلئ ده
هر زمان راته جلوه کا په څو رنګه ‌ ‌ له ګوګله مې زړهٔ وړی په دلبرئ ده
زهٔ که تل شورم له غمه پیغوړ نشته ‌ ‌ سایه وانه مې په سر دعشق مرئ ده
له چشمانو یې سیالی دلبره نهٔ کا ‌ ‌ څو له شرمه په ځنګل سره هوسئ ده
سالی غاړه یې کلنګه کړه بیقدره ‌ ‌ کهٔ هر څو یې بناسته غاړه نرئ ده
د خاکی غاړې زینت د اهسې نهٔ وی ‌ ‌ ګل غندل یې په وړو کښې صراحئ ده
باریکی یې د ملاڅهٔ سره مخې کړم ‌ ‌ تر نسبت یې بالیده د ګل کلئ ده
د چوټئ په زینت هومره کبرجنه ‌ ‌ چه په امن یې ساتلې له خړئ ده
کجه لجه په لاړیون په هسې شان کا ‌ ‌ مثال باد یې کړه وی د ناز څوکئ ده
الغیاث د میچانهٔ آروی په غوړو ‌ ‌ پخپل حسن هسې برنده په مستئ ده
غنچه لعل چه مفتوح کا په خبرو ‌ ‌ ملته څهٔ قدر د لعلو له موتئ ده
اوریې حسن هسې بل کړی په مهتابې ‌ ‌ ګهې مخ شی نورانی کله وړئ ده
کهٔ رنګیه د عاشق په ویښو نهٔ ده ‌ ‌ وې سره هره دانه د چپ کلئ ده
دریې خاورې د عدم کړل ګل صنمې ‌ ‌ سیه مارې په چیچل هره کونځئ ده

په خټک یا نه ې قدرې د یار له دسته
تر حاصل د هندوستان یوه غوټئ ده



هجره! څهٔ خو فرصت راز ړهٔ مې پاره شهٔ　　سرې لاندې ستا دجور په اره شهٔ

دیارانو جدائی مثال چاره ده　　د زړهٔ سرې مې پرې قلم لکه تره شهٔ

دوصال دولت په څوک سلامت یوسی　　بیلتون سل زړهٔ لښکر پسې پره شهٔ

راشه یوځل خټک ګوره په دکن کښې　　چه له هجره ډیر ناڅیز لکه ذره شهٔ

دیاد یاد مې قامت هسې پیچ وتاب که　　په دا کار مثال دزلفو په طره شهٔ

دهجران خمار ئې زړه په لاس کښې کښېنی　　چه شراب دوصال نوش کاندی غره شهٔ

هر ساعت ئې دستم په دار و نسی
دیار یاد لکه لیوه هجری بره شهٔ



راشه مه کړه اې خاطره جګی جګی　　زړ له سره بیهوده فِکر جن کړه

دغفلت په خته ګډ کړې دمال مینې　　که مردانو غونډې مردئې ورته شا کړه

دهوس بُتان دِبس په زړهٔ میشته دی　　دا همه په تورهٔ غوڅ دلا اله کړه

درب وصل کامانه لار دړا زه نهٔ ده　　څو یو لام دمال[1] عدم بقیه ما کړه

مرګ مهلت له هیچا نهٔ کاندی خټکه!
څو لا نهٔ دې مخامخ زاد مهیا کړه

---

[1] د "مال" نه چه "ل" لرې شی "ما" پاتې شی ۔



ماوے عشق دِ زما زړهٔ زیـــرو زبـــر کړو
مستے څهٔ خو مخ ښکاره کړه وکتـــو تـه

وے یُ څو یما مئین یُ حال ظاهر کړه — شاید ورسے عاشقه وآرزو ته
ماوے هومره وکتو ته منتظر یم — چه به نهٔ وی هیڅ مُلا دپاومړو ته
وے یُ دادِ څهٔ مذکوراوکړو نادانه — هرګز نهٔ واڼے داسے څوک وبنو ته
تهٔ چه دا خبرے واے بے دریغه — ځان دِجوړ کړو دښخانو ودُړو ته
ماوے زهٔ یُ پرده لرے کړم دمخه — چه دا حال دِ برهنه شی ودِیدو ته
ملایان راځی دیچا په مړګ نهٔ دی — وے زړهٔ یُ حرص کا غوښو خوړو ته
دا مذکور دختک یاد لره دلـــبره — ترشکرو دیرلذّت بخښی وزړو ته
آدم خان هسے عاشق په دُرخو نهٔ وو — نهٔ قطب هسے خواهش کړو وناآزو ته
بلکه څو څیزه مئین دی په څو ځینه — شب وروز یُ ترصدّ کا وکتو ته
بو یه دومره عشق دتل په دمن نهٔ وو — چه خواهش لری ملا دڅل خوړو ته

---

یادګیرنه :- دا شعرونه قلمی نسخه کښے نشته

بل واَحمق پهٔ گوړ کښې غوړنیسي پهٔ کټو — د شیخانو حُب چه وینی شکرانو ته
بل پښتون هومره مشتاق دستې نهٔ وو — لکه ځم سرے چه مینه کا غوښتو ته
بل نصیب هومره حرص د هیچا مهٔ شه — ثوئے کا ملک دکلی سوالو ته
دغریب وینو ته هسې کوشش کاندی — چه گرگ نهٔ کا داجدل دچا رموته
دهمسایه په غوښو هسې مُسرت کا — گویا مژک شهٔ میسر تورے پیشو ته

هجری ځکه دباوړ په سترگو گوره
حیرانی کاندی ښمه ستا قیصو ته



یوه ورځ د باغ په سیر ووتلے
دچمن په سر دِلبره وه ولاړه

دلاله برگ ئے ترلبو دیر کمته وو — په قدم هم شهٔ نرئ دگل ترناړه
دهوسئ چشم ئے هیڅ وے ترچشمانو — ورمیږه نهٔ ئے ښه دزاڼے غاړه
زړهٔ وے ماه په چمن رب درکړه یواځے — تمنّا دځهٔ لرے ورځنے غواړه
ماوے اے دصباحت په سریر ناستے — ترتا ځارشه ددکن دلبرے واړه
دکنار دولت به رانکړے پوهیږم — په مولا دوه په جب شه راته کراړه
وے ئے ځم په آئینه کره دیره گوره — په داسې طلب دحُب رواده لواړه؟

ما وے زۀ د وخت صنمو ته بهار وم — تا ته نن وے بد ترشوم تراهاړه
وے ئے ورشه د خپل دور ځونو نه گوره — چه خوږی ئے د مخ څرنګ ده اوجاړه
ځنې خاوړے د لحد هر چه زنده دی — تنې کنډر د خاوړو شته مزه ئے لاړه
د شباب دَم چه قضا شۀ حیا اوکړه — څو به خط د هوس لوے وے ئے نغاړه
که د خپل دور دلبرو ته شهند وے — نن زما په نظر بهه نۀ ئے تر خواړه
هغه تیر عمر به بیا پیره اُونۀ کا — کۀ په ډیره ژړا پیښ کړے کسه دواړه
چه دوران د دور تیر کړو دیارانو — نن خوشی کله وفا ده پیسے ژاړه
په حسرت ئے د تیر دَم وښکے څښے شوے — په دادور مشِد مشه تر پهاړه
چه د مله په دا روِش ته بوسه غواړے — په پایه د وفا کم ئے تر کراړه

هجری نن توشه کوه فرصت به نۀ وی
چه د موت فیل د کیږدی په سر داړه



هر نفس مے وُریتوے د عشق په اور کښے
امن نۀ مومم د زړۀ له هایه هُویه

کۀ یو غم ئے د شکیب په بنا دئ مړ کړم — بل به ترشی پرے نازل د یار له سُویه
نن خرد په دا روش راته گویا شۀ — وے ئے غور زما په قول کړه یکرُویه

واله زړهٔ قرارے یو زمان دَ دنکړ
څو جُدا ئے د زیبا آشنا له رُویه

د خِسړ و ترجوره دے درته بلا شهٔ
سو دئے څهٔ دے له دے یاده تګو پویه

ما وے زړهٔ! خِرد سوال وُکړ لتا نه
کهٔ معقول حجت لرے جواب ئے بویه

وے ئے څو د عشق د شاه سره آشنا شوم
نو ربری یم دخِرد له ګفتګو بیه

عقل تل په دا روش فضولی کاندی
کهٔ ما صبر کړے د یار له جستجویه

هغه یار چه همیشه سره مجلس وو
نن ئے واروُم مګر نوم د چا له وُویه

په ژړا ژړا مے څو کاله قضا کړهٔ
چه ثمر مے حاصل نکړ له آرزویه

په مژده به دوارهٔ کسی ترے فدا کړم
کهٔ ئے راکا یاد زړهٔ د تن له بویه

چه وطن د یاره کابل زهٔ په وطن شوم
صبر څونګ کړم خِرده وعظ خویه

د وفا په رتبه هیڅ یم لا تر هیڅه
کهٔ مے اوښکے ترے ونهٔ کاله جُویه

چه حیات له یاره پاتٔم وفا نهٔ ده
کهٔ هر څو ئے غم نرے کړمه ترمُویه

د وصال سحر ته ګورم لیدهٔ نشی
شپه د هجر شوه زما تر عمره لویه

غم په څهٔ غوښتهٔ لما کهٔ آروېدے مے
کهٔ ژغ د آشنا سک د یار له کُویه

د وصال عمر کوتاه هجر دراز شهٔ
هجری څبنه خونِ جګر غمونه ژویه

★



دهر چا په [ل] نصيب ليک دی نصيبونه
ژن به نشی په زور بخره د چا نوره

که یقین له جهله نهٔ کړے په دا قول
د باور په سترګو حال د دور ګوره

یو طلب د سویو کا په شهد پيښې شی
ثانی مړشی روغ وتلے وی له کوره

بل کاسه د شربت ډکه ځان کښیږدی
په زمان ئے قضا واړه وی نسکوره

چه نصيب د نیک وبد په ازل لیک شه
حسد ځکه له چا نهٔ کا نیکان وروره

هر اشیا په مرتبه د اصل کار کا
خاصیت د اوبو مهٔ غواړه له اوره

د نیسان قطره په نس د صدف دُر شی
همه زهروی چه ورشی تر منګوره

نهٔ به څوک انلی کور په وعظ سم کا
نهٔ به سپینه کا صابون شړۍ ئے توره

زوئے د پلار په رضا نهٔ ځی بے غرضه
نهٔ به لور په خیر وُونے له موره

ما هجری باریک نظر په دنیا وکړ
هیڅ طرف ئے خالی نهٔ وینم له شوره

---

ل داشعر ونه قلمی نسخه کښے نشته



بې موشمه هیڅ پکار نهٔ وی درے ځینه　　عاقلانو ته روښنه دا وینا ده
د ځوانئ عمر چه لاړ وادهٔ په څهٔ کړے　　بل چه وار د ژمی تیرشی څهٔ قبا ده
بل چه نس په طعام موړشی پکار نهٔ وی　　کهٔ پلاؤ کهٔ پیازه وی کهٔ حلوا ده



نن سبا ملا له ناسته وه په تړه
زړګے دا ارمان کاوهٔ دغرهٔ په څرګړه

په ژړاۓ تورے سترګے هسے سرے وے　　همه شپه ۓ ګویا پټه نهٔ وه سترګه
وے ۓ څو پښتون په روه وطن شوے　　قبیله داکوړی نامی سترګه
ېخ ۓ نهٔ وه برسیرن لکه سر ګړے　　په معنیٰ هسے محکم وه لکه غرګه
اکوړی چه مزکه اونیوه په توره　　خالی نهٔ وه په هیڅ دور له بزرګه
نن ۓ ځکه مهابت برکت لاړشهٔ　　چه کیدړشهٔ وطنی دښیں په درګه
بے مکانه ۓ بانګ کړ وطن ۓ بائیله　　خان بره وو دخټکو نحسه چرګه
نحوست حسد دقهر په ملک ساز کړ　　په صورت لکه ګرجی په سیرت ګرګه
مړهٔ زنده همه بدنام کا په وګړی　　هجری مشه له چا پاتو بده پرګه

---

۱ دادرے واړه شعرونه چاپ نسخه کښے نشته



عمارت د بیچا پورې واړه عـالي دې
ولې ماسره نزدې یوه مـاسړۍ ده

هو مره هسکه ده له مزکې ته به واځې
په ګردون یې پیوسته لویه څړۍ ده

پاس په سرچه یې رسد دیچا نشته
په وښیل ژړه غوښوي خورد قمرۍ ده

د قمرۍ آواز مې هم دې آرویدلې
ولې ډیره ترې بهتره کښر یې ده

پرنده به یې له حسنه سیالي نه کا
تر تارو په لقا بنه هم ترسیسۍ ده

لطافت یې د آواز په څه نسبت کړم
چه تر زانګې یې وینا ډیره نرۍ ده

د هیڅ ساز زیر یې مخې د آواز نه دې
د سرونا تر ترنغ هم تیره په خوبۍ ده

زه په نیت د ختو پاسیدم کتل ته
چه په کوم لورې یې ایښې پهورۍ ده

زړه وې داز غ د صغ بلبلې نه دې
هغه پرو ته د لحد په تاریکۍ ده

هجرې مرګ بیولې کله آواز کاسندی
د بلبلې آواز نه داسـر کوسۍ ده

---

یادګیرنه:- داشعرونه قلمي نسخه کې نشته



بے موسمه هیڅ پکار نهٔ وی ذرے څیزه ... عاقلانو ته روښنه دا ویښا ده
دځوانئ عمر چه لاړ وادهٔ به څهٔ کړے ... بل چه وار د ژمی تیر شی څهٔ قبا ده
بل چه نس په طعام ډک کا پکار نهٔ وی ... کهٔ پلاؤ کهٔ دوپیازه وی که حلوا ده



یوه ورځ له ورځو نه زهٔ عقل مخاطب کړم
سوال ئے کړو لمانه په لِذّت سکه مصری

وے ئے په ویلو دبلبل دسرا فسره ... قول به زهٔ وایم جواب اوکړه باوری
نن په ملک دنظم خِسرو ته ئے دهمه وُ ... کړه اگرچه نورهم په دا دور شاعری
فکر دمعدن ئے ذاتی دُر لرے په نس کښے ... زبان درنه اوکاږی اے ددهر جوهری
کته مے په لب کړه ماوے زهٔ خاقانی نهٔ یم ... چه ختمه کړم په تن دزمانے سخنوری
ذات دپښتانهٔ بعدوپس دی تر لکونو ... نهٔ به وی وطن چه لما اوکړه همسری
وے ئے خاقانی، انوری سردسرو په ژبه ... ته ئے خاقانی دپښتو هم انوری

---

یا دگیرنه:- دا شعر ونه قلمی نسخه نهٔ لری

رتبه د دوئیلو بالائي کړه تر فلکه
مه ئې کړه خالق دبدو ستر ګو نظري

شعر دي په تله دحق وزن کا تر نوره
که شعر دمرزا ئې په وئیل شي سرباري

شعر دے ته وائي نکه را غله له وطنه
خوشیرین غزله تخالص سکندري[۱]

یا ئې قلندر کا ددکن په لویه مزکه
لا ئې کا په روه بنده درب پښاوري

دا څه شعر نه دے چه ئې ته کوے ځمکه
دے ته فرزانه وائي حلاله ساحري

ماوے تل په دور رتبه دان دخلقو ته ئې
څکه کړے بهبود ته دوګړي رهبري

بنه ولد تر تا دعدم مور تولد نکړ
قول مې بیشکه له ریا دے مبرّی

ته ئې چه محق په دم جدا کړے له مبطله
تاغوندے څوک نه کا حق دعدل پروري

ستا په آئینه کښې دهرشي مثل جلوه کا
څکه کړے دا هسې بې نقصانه داوري

په دا عهد که وي دزمانې له شاعرانو
چه کا زما له شعره په حسد برابري

مثال ئې په څه بویه نه کا پاکه ګوهره
چه کاندي په دروغ قصه باطله سرسري

وې ئې دموسی معجزه نشي بې رونقه
نسبت که ئې یاوه کړي په افسون دسامري

تاوے دخبرو چه ته جوړه په زیور کړے
ځائې لري بیشکه که د واف کا نوکري

هر زیور دحسن چه لازم دے دوئیلو
تم شه ستا په شعر په وحدت دتنګري

حال مې تجربه کړو یو په یو د زمانیو
وارو قابوچي په دغا کا لابه ګري

نه په قول ار نه ئې باور په وئیل بویه
په شاهمه ګرګان دي په مخ کا برادري

---

۱ دسکندر د قلم نوند که ئې تر خله شي
قلندر به ځل قلم په دکن مات کا
سکندر دخان خټک

ماچه مکر اولید دغرض له پسرانو ... کله بازیګر کا په دا شان مسخروری

باطل هسې دحق په لباس بل ته مجلّا کا ... چه نهٔ کا ساحران دا صسې سحرګستری

داخهٔ وفانهٔ ده چه ابنائے د زمن کا ... په بنهٔ لاف دخلّت په بده ؤکا منکری

نوم دوفا شته اثرئے نهٔ وینم په دور ... خلق دجهان دی همه تګ قندهاری

په غرا ویُلو افتخار کوے ختمکه! ... فخر دحقّاً بے ځایه نهٔ دے ځائے لری

نازبه ئے په درګنے په دا دورکهٔ زنده وے
په دا سِحرِ حلال چه نن ئے کا بنده هجری



کړے کوے یاران وینم چه روان دی
ځوک تنها په لاره ځی ځنی کاروان دی

کهتران ئے ناچار ځکه پیسے دړومی ... چه په دا لارے تیرشوی بهتران دی

چه کتاب ئے دخوبئ ذکر کاندی ... په هغه جهان میشته هغه مردان دی

عرض وطول ئو به ئے هسے رانبکاری ... چه ترکوز دیلی اګره دهندوستان دی

یو عظیم کوټ ئے پخته شهرپناه دے ... ورته هیڅ کوټونه وارهٔ ددوړان دی

عمارت دشهر یو جُمله تیرے کا ... بادشاهی ځایونه لاعالی مکان دی

په سرو زړو ئے کهګل دی محلونه ... ګنبدلی ئے سرونه په آسمان دی

ماه ونمرستون محل په عرش لیدهٔ شی ... هزارستوری پکښے جوړ هم ګلستان دی

دهر ځائے نقش ونګار مے جلوه کا
ته به وائے زیږ ګلونه د نیسان دی

ن ئے وار فلک تیر کړے د بهار د ے
پژمرده ګله ګلونه د خزان دی

صد هزار زیبا دلبرے پکښے ناز کا
ن اتش د آدم نهٔ لری ویران دی

هرګدا ئے د خوا ښینو په ځائے ګرزی
امتناع لره نوکرنه ئے خواجګان دی

هغه ځائے چه مجالس که ناویو جونو
په مکان ئے کا سیرونه تورزاغان دی

نهٔ آواز د ناویو دف نه پخاوج شسته
په قبهٔ ئے ندا کا نحس بومان دی

هر محل د حال په ژبه ماتم کاندی
په ارمان ځنی وتلی خاوندان دی

خط وخال دهر محل زخمی لیده شی
ګویا ویر په مخ نوخ کړی عروسان دی

دم په خود ولاړ په ځائے حرکت نهٔ کا
بے ارواحه تش ولاړ لکه بتان دی

هیڅ خبر له حاله نه تفکر کاندی
د فلک نیرنګ ئے اولیده حیران دی

سرئے هسے هسک خطے تر حصار دے
ته به وائے څښتن ګوری نګران دی

اهتمام د دروازو د محل نشته
زمانے ځنے شړلی دربانان دی

په دربار چه ئے لار نهٔ مونده میرانو
بے وسواسه پکښے یون کاندی پاجیان دی

چه نسیم پرے ګذر نهٔ کا وه له داره
ن فلک پکښے تول کړی بندیوان دی

دانګنړ خاوړے ئے مشک یا کافور وے
چار جوئی تړے ن بهترے د زمان دی

هنګامه دخاص وعام ده بے رونقه
اسپ و فیل ځنے خارج هم امیران دی

تخت ئے بے صاحبه پروت قدرئے نشته
بے وفا تاج ئے ښولی نور یاران دی

هر پاچی ئے په تخت ګرځی ادب نهٔ کا
ګوره چیرته ئے ورک شوی چاوشان دی

---

یادګیرنه:- چاپ نسخه کښے نشته

اورنگ شاه بے هوده پروت په بیجا بوردے
په غولولی ئے دا هومره خسروان دی

عاقبت په ارمان لاړهٔ لاس سـنا ولی
چه راغلی د فانی دنیا په خوان دی

حیات واړه کشاله وطن ئے گور دے
هسے غم لره زوولی آدمیان دی

دا حیات به امید خشکل د بقا کا
چه راغلی په دا دشته غریبان دی

هر بشر پخپل مقصد پسے جدل کا
یو دبل په غرض نه واړه دکان دی

بیهوده ناز په دُنیا چه ئے څوک کاندی
چا چه ناز په دُنیا کهٔ واړه پشیمان دی

زهٔ دحال په غوږ وژغ د تیږو آروم
چه په زړهٔ ئے ډیر داغونه دارمان دی

د وصال مرهم ئے کیږ ده په زخمو نو
هجری ډیر غشی خوړلی د هجران دی



هغه دم چه زهٔ دیار سره خلوت وم
کهٔ نسیم راباندے اولـگی آسیب وی

په مراد د زمانے یار راکړی دربانـه
د هر خار ګلے عطا کا کله سیب وی

د وصال زمان په هجر زر تغیر کـا
رښتیا نهٔ کا زمانه دائے فریب وی

اوس ے سر د هوس پاس دے تر فلکه
تر زمانه به غم پښے کوز په جیب وی

چه ے تن په خلوت لار غواړی وهه ئے
کهٔ په تن شاه عالم داورنگزیب وی

---

یا دګیرنه :- دا پنځه واړه شعرونه قلمی نسخه نهٔ لری



یو دانا د زمانے په سر ولاړ وو
کۀ کتلے په لاره ځی یو امرادے

یَسا وُلو اهتمام کړو په هر لوری
بنسکر تول ورپسے ځی میرے په خوادے

دکُوس ژغ ئے مخ د مزکے همه وینو
په گردون ئے پیوسته ژغ دقرنادے

دانا مخ په یو ابله کړوے ئے وینے؟
داصاحب دفوځ خشکل بے حیا دے

درویژگو به په ملک دا هسے نۀ وی
نۀ لیدلے چا په ملک هسے گدا دے

نادان مخ له قهره واړوۀ ویَل ئے
وے ئے دا مذکور چه تۀ وائے خطا دے

طمطراق شان وشوکت وته ئے گوره
دا مذکور چه تۀ کوے کله روا دے

زما ستا اوۀ پیر یو لره بس کړه
گوهری خنجر چه نن دده تر ملا دے

وے ئے ستا عقل کا بۀ وینی چا مله
د احوال غونډے په بل طرف بینا دے

دخنجر موتی ئے اوښکے ستا د زویو
سُور یا قوت ئے مشخص وینے زما دے

هرچه غواړی څۀ له چا گدا ئے بوله
که قارون د زمانے وی کۀ بادشاه دے

دا دولت حشمت چه تۀ ورځه وینے
نۀ پیدا د دهقانئ نۀ دسودا دے

دمنگی تر اوبو پورے ئے حساب کړۀ
همه مال ئے څوک دچا څنے دچا دے

ددُنیا په دولت ناز مکړه غافله!
سراسر واړه جفا هم بیوفا دے

هجریؔ غم وعیش ئے دواړه لا بقا دی
هسے ځی لکه نسیم وار ددُنیا دے



ما وزړهٔ ته سندا او کړه چه خاطره!
ترسقر عذاب د سجن مختصر دی

وې ئې سجن کله کم دی له سقره — که عذاب ئې تېرېنهٔ کا برابر دی
خو نومونه ئې عالمو سره بېل کړهٔ — ګنړه سجن جدا نه عینِ سقر دی
یو له کافَ تولد شهٔ بل له نونه — هغه جوړ په آخرت دا په دې بر دی
په هغه جهان دوزخ شهٔ د بدانو — وې غلونو لره سجن مقرر دی
دوزخ ځکه په کتاب کښې سقر یاد شهٔ — چه سرکشو لره جوړ د عذاب کور دی
هر عذاب چه مقابل شي په دارېشو — هم هغه درته سقر چه د ضرر دی
په دوړه ملکه ئې حریف د عذاب نشته — مګر هجر د وجد د بېل پېدر دی
ما وې دا عذاب چه نن پما نازل شهٔ — په ځان ایښې هم د چاچرخِ احضر دی
وې ئې ذوق کا جهودان ارمني واړه — خو لتا سره په جنګ شام وسحر دی
دا شدّت چه نن لتا سره سما کا — نهٔ نصیب د رافضي نهٔ د کافر دی
ما وې زهٔ مګر بدترېم ترهمه وُ — چه لما نه فلک هسې مُکدر دی
وې ئې دې چه رب پیدا کړو له ازله — همېشه له فرزانه سره په شر دی
دجهان تربدو ته ورته بس ئې — چه دِ شعر زړهٔ اوکاږی سحرګر دی
د خبرو په میدان له حریفانو — ګوئې دِ وړې د خوبئ په دا هنر دی

فرزانه ئې له گردشه تل خسته وی — پرورش د هغهٔ کا چه ګیدی خر دے
که باور د په دانهٔ را تهٔ سامع شه — یو مثل به درته وایم معتبر دے
دشک څخ به دیقین په توره غوڅ کړه — مقابل په ښتنه بلکه محضر دے
ته په دا روشن ضمیر غذا د ذهن — برے څکه خوری شکر چه کوڼ خر دے
ته د ختیو شنځه خوارے موندهٔ نهٔ شی — برے خورئ تولوے په دور سر دے
دچل مخ لاتقه نهٔ وینې په روه کښې — په کاهنوئ د هند کړے نظر دے
خرامان به ئې سبا په سینه ګرځم — که نن دور د ګردون پما احقر دے
دنیکی جزا نیکی د بد و بد دوی — نا علاج به هغه ریبی چه دګر دے
طولانی شهٔ حقیقت قیصه کوتا کړ — دا نا وائې سل خبرے یوئې سر دے
دګردون شکرے اوخورے خرانو — د عاقل همیشه قوت خون جگر دے

په قیامت دمجری لاس ددهٔ ګریوان دے
نن د کا فلک نا سازے لاس ئې بر دے



زده کول د صد وس مسئلو فرض دی
څکه دا په مؤمنانو باندے قرض دی
چه ئې زده نهٔ کا په حال د سلامت — په قیامت به شی بیشکه ملامت
زهٔ ئې کړمه یو په یو درته بیان — ته ئې یاد لره په زړهٔ هم په زبان

دهمه نمانځه اولس رکعتونه          هم ئې یادلره پنځه واړه نیتونه
پنځه وخته د نماز فراموش مهٔ کړه          د نبیٔ څلور کوسی نامه ئې زده کړه
. . . . . . . . . سیم هاشم دے          دریے دغه عبد مناف ئې څلارم دے
. . . . . . . . . حق مشر اعظم شهٔ          شافعیؒ ، مالکؒ ، حنبلؒ عددئې تم شهٔ
. . . . . . . . . سنح دسرپښبو ترکعبونو          په وضو کښے داڅلور دی له فرضونو
. . . . . . . . . روژے د رمضان سی ئې نیتونه          تیمم د غسل فرض دی شپږ څیزونه
اول نیت شماره لازم د تیمسانهٔ          بیا په پاکه مزکه لاس کړه مسلمانهٔ
پنځے راڅکوه په مخ باندے بے ځنځله          پس ئې راڅکوه په لیچوتر آرنجه
خلهٔ اول په اوبو پاکه کړه جُنُبه          پوزه هم کړه په دغه روش طیبه
له اوله چه طیب شی هغه دواړه          پس په بنهٔ روِش شسته کړه بدن واړه
کله دشهادت پنځه نمونځونه          حج روژه پنځم بنائې زکوتونه
پنځ بنا چه داسلام شوه هویدا          دایمان اووه صفته کړه پیدا
په هغهٔ راوړه ایمان چه یو بیشک دے          بیالازم ایمان په قوم د ملک دے
بیا پسے په کتابونو چه لازم دی          په اخلاص ئې قبلوه چه پاک رسل دی
دقیامت په ورځ چه شک لری کافر دے          هم له خدایا ئې ګڼړه که خیر وشر دے
پس له مرګه ژوندون فرض دے بے ریبته          نور پوره شول دایمان اووه صفته
دیارلس حکمه مابقی دے مکان دی          اووه امره داحکام شش دارکان دی
بدن پاک لره نمازی د نجاسته          ځائے دِ هم وی مطهر له دے آفته

---

یادګیرنه :- داشعر ونه په چاپ نسخه کښے نشته

پاکیزه لره دائم چېله جامه — هم مستور لره د تن غوره همه

دقبلې په لوري مخ کړه برابر — ..............

دا احکام شپږ قلمي اووم ئې نیت دے — ..............

آخرینه قعده هم تکبیر قیام — په رکوع سجود ........

یو په یو دواړه وشو له شماره — صدوسی ځکه ..........

چاچه دا مسئلې یاد ے پرے عمل کا — د جنت دولت به ځان لره حاصل کا

هرچه اولولی دا ذکر خداداد — په دعا دِ ګنهګا اشرف کا یاد

خدایه! اوبخښې همه اهلِ اسلام

په دا ختمه شوه خبره والسلام

یو صورت ے برایه په خوب کښې اولید

ماوے کوز د شته فلک نه پاک ملک دے

وے ئے کور د هجری کوم دے مسافره! — د لید لو شوق ئے تیر په زړهٔ ے لک دے

ماوے کوم هجری تهٔ غوارے خبر نهٔ یم — دا جهان د هجری ناموهمه ډک دے

وے ئے زهٔ هغه هجری غوارم عاقله! — چه دبدبه ئے د اشعار برتر فلک دے

ماوے نن هغه نصیب هسے ځائے بند کړ — چه نهٔ انس پرې خبر نه جن پرے شک دے

ددنیا میدان ئے ګل همه پرې وغښت — نه فلک پنجه چوګان دے ئے پتک دے

شین سما توره په کف وړ پسې زغلی
په کمک ورسره مل مجر مرزک دے

یا مفسد مجرے بنت لری د وژلو
دګردون دوړ دده کافر کمک دے

دیار رحان ئے باد راوړه پسې ګرزی
مونده ئے نشن په غمنتل ئے هکوړ دے

نه ئے نمر په دین وینی نه مهتاب
کوره چرته خلوق دچا په وک دے

داشعار اسم ئے شته دے لیده نشی
خدائے زده ځائے ئے په سماله په سمک دے

چه دادرے ښئیزه ئے نه مومی په دوړ
میسرے تانه ګران ترحُله تک دے

وے ئے ذات دمجری کوم اسم ئے څه دے
پیروی دچا کوی کوم ئے مسلک دے

ماوے مرسرے چه دوست دپاک نبی وی
دینده مجری دستګو مردمک دے

هرکیدی چه پیروی داحمد نه کا
ومجری ته لاسبک تر یوه ګک دے

غلمان به دنبی صاحب پر ولم
دلیندے په ژئی ے جوړ دحق ناوک دے

دثانی مصرعے په سیس ئے اصل ګوری
ختک نن په بنه اشعار له زرویک دے

داشرف په نام مشرف شه له پیدره
په مجری ئے داشعار نوم مبارک دے

هردانا په فتوی کا په دا خبره
چه ے شعر دپښتو آب ونمک دے

دامضمون چا په پښتو ویلے نه دے
لذت نه لری دا دوے باورے کلک دے

وے ئے پس له دیرو ورځو نن خبر شوم
چه مجری ئے تخلص اشرف ختک دے



داچه بد عمل ته شا نیکو ته مخ کا
وایه بنهٔ بنده د ربٔ دوست د نبیٔ دے

دا د همه د کردگار چه ئے په چا کا — و ے هسے گمان کړه چه بهشتی دے
چه په بد عمل آرزو د بهشت کاندی — تش د باد پیمانه کاندی مدعی دے
د بهشت لیدهٔ محال کړه هغهٔ ته — چه ئے خوئ د سړی نه رنګ د سړی دے
دا حدیث ځکه وارد په دا معنیٰ شه — چه په زړګنے بهشتی یو اُمتی دے
دا ژوندون په څهٔ بنادی کا خبر نهٔ یم — بنادی رُخ د هغه چا چه منجی دے
هجری طمع د نجات لری له خدایه
کبیره کهٔ هر څو ډیر لری عاصی دے

---

ے ام حسب الذین جترحوا السیٰات ان نجعلهم کالذین اٰمنوا وعملوا الصٰلحٰت
لا سوآءً محیاهم ومماتهم ط ساءَ ما یحکمون ٥
(سورة الجاثیه)

دا خلق چه بدکارونه کوی ـ څهٔ خیال کوی چه ګنی دوی به هم د هغو خلقو برابر ساتلے شی چا چه ایمان او عمل صالح اختیار کړے دے چه د دغو دواړو مرګ او ژوند یو شان شی ـ دا بد حکم لګوی ـ



ماله شعره شغل کړپه بیجا پوره کئے
چا وے تا لره راځی دهنده افغان دے

بل مطلب ئې په زړه نشته بے دین نه — خواهش کا دغزلونو سخندان دے
وے مے زړ ئې برېښ راوله تادانه — ددانا سری مجلس داد ډیر زدان دے
چه دیدن موسره وشه پس ئې ووے — چه زبان دِ په وکړی دُر فشان دے
وے مے ماهر کړ اشعار ویُلی نهٔ دی — داوینا چا درته وے که دِ گمان دے
وے ئې هومره دروغ مهٔ وایه پردیسه — په بنی لاس کښے دِ بیاض په لینړهم آن[۱] دے
ماوے کرم ملامت هیڅ نهٔ ئې غریبه[۲] — عقل هم په قن رِحال دهر انسان دے
مادروغ ویُلی نهٔ دی تهٔ غلط شوے — دا نهٔ شعر نهٔ اشعار سحرِ بیان دے
زهٔ شاعر نهٔ یم بے شکه سِحر کریم — دا بیاض دشعر نه دسحر کان دے
هغه شعر چه څوک سِحر ورته وائی — تا هر گز لیدلے کله په جهان دے
کهٔ پوهیږے په اسرار ددے ویُلو — ما[۳] در ایښے کتاب واړه په میدان دے

تهٔ چه پوهه په معنو نهٔ ئې هجری څهٔ کا
ورشه گوره هغه شعر چه آسان دے

---

[۱] قلمی نسخه کښے "دیوان" دے. د "آن" یو معنیٰ شراب هم ده.

[۲] درولیشه

[۳] درته ایښے کتاب واړه په میدان دے

(ق - ن)



ےا

اے پہ تل استخارہ کړے پہ زاریو
چہ نکبت لہ تنہ گُم د زمانے کړے

هرطرف تېروته غوارے د پیسانو    پہ ښځانو دِ پریشانے شکوانے کړے
دا همه جدل چہ کړے پہ زړۀ دِ دادی    چہ پہ دا حیلہ درپورے د رخنے کړے
د قضا خو امش میخوک تغیر نۀ کا    دا عمل بیشکہ لرے لہ معنے کړے
فکر مۀ کړه چہ بہ یک د ازل نور شی    کۀ خیرات د جهان وارہ خزانے کړے
وسیلہ تر رضا شتہ قضا نشتہ    تۀ دکل طمعہ لہ تشے ویرانے کړے



یو جاهل وئیل و ماتہ چہ خټکہ!    چرخ پہ څۀ درسرہ بد کا تۀ عاقل ئے
ما وے میخ ملامت نۀ ئے بے خبرہ    لہ کلامہ دِ معلوم چہ ناعاقل ئے
فلک کلہ کینہ کا لہ ابلهانو    و لے تۀ معنوتہ نۀ رسے جاهل ئے

---

ے یادگیرنہ : دا شعرونہ چاپ نسخہ نۀ لری۔



اے چه تل استخاره کړے په زاریو — څه نکبت له تنه کم د [illegible] کړے

هر طرف قبرونه غوارے د پیریانو — په شیخانو د پریشانه شکایت کړے

داهمه جدل چه کړے په زړهٔ د دادی — [illegible] چیله د رپورته [illegible] کړے

د قضا خواهش به هیڅوک د تغیر نهٔ کا — د عمل پشکه تورے له مینے کړے

فکر مکړه چه به یک د ازل نور شی — کهٔ خیرات د جهان وار ه خزانے کړے

وسیله تر رضا بنهٔ قضا ته نشته — تهٔ دکل طمع له تنے ویرانے کړے

---

یا دګیرنه :- دا شپږ واړه شعرهٔ قلمی نسخے نهٔ لری



کهٔ نظر د عزیز عمر په کار وکړے — کیفیت ئے واړه مثل په کتاب دے

د کړیو شان ئے جوړ لکه فصلونه — شب و روز ئے مثال ګوښے ګوښے باب دے

هر سرے چه د اکتاب مطالعه کا — په نوبت ئے باب و فصل ته مآب دے

عیش و غم د هر چا یک په دا ساعت دے — د قضا حکمت نیولے پرے حجاب دے

مسافت د حیات جوړ لکه جزونه — نصیب ویښی کم په دم چه ئے په باب دے

---

یا دګیرنه :- دا شعر قلمی نسخه نهٔ لری

# نعت محمد مصطفیٰ صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم

چه ئې نور اول ظهور د مصطفیٰ کړه
له هغه ئې نور عالم همه انشا کړه

دارواح په مقام مشر دے بیشکه
که صورت ترصفی وروستو مولا کړه

تولد ئې څکه پس له رسولانو
چه ئې تم په ده دولت د اصطفیٰ کړه

اَلِهَه د کفر پرېوتهٔ په مزکه
چه ئې مخ د مور له بطنه په بطحیٰ کړه

هغه شاه چه د بلوغه پس فائز شهٔ
په مقدم ئې نامور غار د حرا کړه

ناصیه به ئې چه وصله په زانو کړه
د خاطر مرغهٔ ئې سیر د طوبیٰ کړه

چه د عمر شمار ئې ورغے تر څلو
نبوت هاله مولا ورته عطا کړه

جبرائیلؑ ئې په رمضان کښے له محفوظه
مستقر ئې د قرآن نازل سما کړه

له هغه ئې بیا په ختم د مرسلو
په نوبت نوبت وارد په دادنیا کړه

که آغاز ئې فاتحه[1] لا په اِقرأ[2] وه
و ئے ختم ئې تحقیق په اذا جاء[3] کړه

---

[1] سورة فاتحه دا د قرآن پاک ورومبے مکمل سورت دے چه په حضرت محمد صلی اللہ علیه وسلم نازل شوے دے. د دے سورت نوم الفاتحه دے. فاتحه پرانستونکی ته وائی یعنی هرکله چه قرآن پاک پرانستلے شی، نو ورومبے دا سورت ښکاره شی او ولکه چه د قرآن حکیم ټول سورتونه په دے کښے پراته دی او د قرآن مجید گرد مطلبونه حل کوی نو څکه ورته فاتحه ویلے شی. دغه نه علاوه ورته ام الکتاب او اساس القرآن هم ویلے شی.

[2] اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ۝ اولوله په برکت د نامه د رب خپل چه پیدا کونکے دے (سورة العلق)

[3] اِذَا جَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ ۝ هغه وخت چه راشی مدد د خدا ئې او ظاهره شی فتح (سورة النصر)

په دا قول اتفاق دے د بزرګانو
چه اول ئے سورت کوز پرده اقراء کهٔ

درے کتابه الهی چهارم نوی دے
آخرین حرف ئے سین په سر ئے باکهٔ

د لاهوت اسرار ئے اولیدهٔ په سترګو
هغه شپه چه ئے نیت جزم د اقصیٰ کهٔ

لامکان مسے بینا په لامکان کړه
سکه عام ئے په مکان دلته بینا کهٔ

په اسرار به دے حال هغه خبروی
چه قرأت ئے سبحان الذی اسرا کهٔ[۱]

د موسیٰ طاقت ئے کله دلیدو وو
هغه مخ چه برهنه احمد رائی کهٔ

تر اوؤه فلکو تیر کرسی ئے پیش کړه
صد هزار میله ئے عرش همه ترشا کهٔ

د حجاب اثر له میانه منعدم شهٔ
مګر میم ئے د نامه نمائے مئی کهٔ

چه احمد د احمدیت په یم غوټه کړه
هغه میم ئے هم د تام له سکه لا کهٔ

مظنه د انکار مکړه په دا قول
په دا باب آیت ګوره د اَو ادنیٰ[۲] کهٔ

ایسته لس زره وینا ئے شنیده کړے
په هر یو ئے رسول قبلت ربنا کهٔ

هر چه دهٔ مسئلت وکړ له احده
هغه دم ئے اجابت په غوږ اصغی کهٔ

---

۱ سُبحٰنَ الَّذی اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ لَیْلاً مِّنَ المسجد الْحَرامِ اِلی المسجد الْاَقْصَا الَّذی بٰرَکْنا حَوْلَهٗ لِنُرِیَهٗ مِنْ اٰیٰتِنَا ط - پاک دے هغه خدائے چه بوتلهٔ بنده خپل د شپے له مسجد حرام نه مسجد اقصیٰ ته (یعنی بیت المقدس ته) هغه مسجد اقصیٰ چه برکت کړے دے مونږ ګیر چا پیره (علاقے) د دهٔ هغه د پاره د دے چه اوښایو مونږ هغهٔ ته له علاماتو د قدرت خپل نه بیشکه هغه دے اوریدونکے لیدونکے.

(سورة بنی اسرائیل)

۲ فکان قاب قَوْسَینِ اَوْ اَدْنیٰ پس او رسید په اندازے د دوؤ لیندو یا نژدے زیات له هغهٔ نه (سورة النجم)

د عزت کتاب ئې راوړ له احــــده | مهر دار ئې په والنجم اذا هوی کۀ
د اضلال عَلَم په دوړ سرنګون شـۀ | چه احمّد په مکه هسک دحق لوا کۀ
چه ئې پښه د نبوت په رکاب کښېښوه | د نصفت په تیغ ئې غوڅ سر د غوی کۀ
دحق سنګ ئې په پنجه د عدل واخست | برے مات ګودن دلات سر د عـزی کۀ
د معجز په خوان ئې جوړه حاضری وَه | صغه وربت بڼه چه رب ورته ګویا کۀ
څو شوق څو بزرګی ئې وه د لاســو | چه له قربه ئې تر کار چوب وحصا کۀ
د اعجاز پایه ئې هسے وه بلـنده | چه مهتاب ئې شق دګوتو په ایما کۀ
د لاهوت خطه خلوت د مصطفی ده | که موسیٰؑ معراج په ونه د طوبیٰ کۀ
د امّت پاکوئې دیر مرده زنده کړل | کۀ د ا کار اول معجز د مسیحــا کۀ
نۀ ئې کسب دلوستو نۀ ئې جُز واخست | نۀ ئې ځان په مکتب ګرم د استا کۀ
آفرین د هغه پاک په حکمتـــونو | چه اُمّی ئې په هر بیت علم دانا کۀ
په غفران دچل امّت د ګنهګارو | هر ساعت به ئې لاس پورته په دعا کۀ
د اندوه ئې حاله کم شۀ له خاطره | چه مسرور ئې په یُعطیکَ[1] فترضیٰ کۀ
د بهبود مخ به اونۀ وینی په سترګـو | چه له امره ئې چا سر تهه وبالا کۀ
په هر کار چه مُکلّف شوم له خالقه! | ما بے عذره سَمِعْنَا[2] وَاَطَعْنَا کــۀ

---

[1] ایت شریف دے۔ وَلَسَوْفَ یُعْطِیْكَ رَبُّكَ فَتَرْضیٰ ہ او البته ژر به نعمت درکاندی تا لره دب ستا۔ پس خوشحاله به شے ته (سوره الضحیٰ)   [2] د سوره البقرہ ایت شریف دے۔ وَقَالُوا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ہ او ویئیل ئې واؤ رید ل مونږ او فرمانبرداری اوکړه۔ مونږ غواړو بخښنه درب خپل او تا ته دے بازګشت۔

هرچه دهٔ په مبارک ژبان ویلی　　په احکام ئې [۱] آمنّا صدّقنا کهٔ

چه بنی ځنې ویزار وی مهٔ ئې وینم　　هغه نیک عمل ئې یار چه ئې روا کهٔ

چه منکر دے د احمدؐ د پاکه دینه　　توره خاوره ئې په سر ځان ئې رسوا کهٔ

همیشه شکر واجب په مومنانو　　چه دا هسې پیغمبر ئې دې پیشوا کهٔ

د بهشت بونه ئې میل په دیدن کا　　چا چه دین د احمدؐ غوره په رضا کهٔ

د نبی یاران همه ټوله افضل دی　　صدیقؓ تن ترنمر روښن په صدق لا کهٔ

د عمرؓ عدل تر مهره لامنیر دے　　فرقان جمع په جدل ابوالیحیٰ [۲] کهٔ

تن په تن مخالفانو کره ویر شهٔ　　چه ترملا د شوکت سیف مرتضیٰؓ کهٔ

هر مقبل چه پهلوان دو د کفارو　　ترکیاه ئې سهل توره ته مولا کهٔ

له غفوره کله دور چه ئې مغفور کا
چه ئې نعت د حبیب هجری اِملا کهٔ

---

۱ ایمان مې داوړو او ریشتینی مې وګڼل ۔

۲ حضرت عثمان رضی

# مرثیه

## دقبله گاه مرحوم

د هښ بحر چه تالیدهٔ سراب شهٔ
هغه ښهر د عظمت کوره خراب شهٔ

هغه تن چه همه کان د مروت وو ‌ ‌ ‌ تن په خونه د لحد موږ ته تراب شهٔ
څوک به کیږدي تن په روه د هښ وے ‌ ‌ ‌ چه معدن د خوبئ مات هښ کړیاب شهٔ
دا د غم قضیه هرگز بیانه نهٔ شه ‌ ‌ ‌ چه یو کے رود گنگ او بل چناب شهٔ
جگر دوزه غم اندوزه واقعه ده ‌ ‌ ‌ په آوازے څکه تن لکه سیماب شهٔ
دا خبر مگر آتش وه بے گمانه ‌ ‌ ‌ همه زړهٔ د مخلصانو ئے کباب شهٔ
غیبی کانړی سر دوه که له دے پسه ‌ ‌ ‌ د تارونو په ترنغ بیا زنده رباب شهٔ
ما پارس لیدلے نه چه سنگ ئے زر که ‌ ‌ ‌ د صاحب فکر مصرعے بجاب شهٔ
د ښتکو اولس سنگ وو بے وقاره ‌ ‌ ‌ هغه سنگ ئے له جرسه زرناب شهٔ
خان په قصد دارم کوچ اوکړهٔ له دهره ‌ ‌ ‌ پستنه ئے اولس ډوب په اوبه آب شهٔ
بو علی د پښتانهٔ له دوړه ویښ ‌ ‌ ‌ په جهان ئے غنیه بیا تو یو کتاب شهٔ
په حیات ئے له اندوهه کناره وم ‌ ‌ ‌ په رحلت ئے صویدا د غم سیلاب شهٔ

لکه هاله راته وا د خوشئ در وُه — په هجران ئے هسے بند د عیش باب شهٔ

که شکوه له دوره شی څهٔ فائده نشته — اوس قضا په ارمان عمر د شباب شهٔ

ذات له ذاته په سیلئ د موت کډ شی — دنیا بحر د تُراب سرے حباب شهٔ

اوس لمن د شکیب مهٔ پریږده خاطره — که هر څو د زړهٔ په ملک صبر نایاب شهٔ

د انصاف په نظر حال د خلقو ګوره — تر شماره د گذشته وُتی حساب شهٔ

سکندر چه شهریار د بحر و بر وو — تر فلک ئے لا بلند د در جناب شهٔ

د دولت خیمه ئے پریوته په مزکه — چه ئے غوځ د حادثے په تیغ طناب شهٔ

سلیمانؑ چه تخت ئے با دوړهٔ له شرفه — نهایت ئے تور بستر محل د خواب شهٔ

ما په سترګو ډیر لیدل مالک رقاب وُه — نن ئے خاک د تور لحد مالک رقاب شهٔ

سخنور بلبل چه تا لیدهٔ مجبور ه!
په قفس د تورو خاورو لا جواب شهٔ

# مخمس

سرود دِ نقش و ے پہ څوکہ ئے لوخن دے | تن ئے سر پہ سر پہ څلورشاخہ مُزین دے
وقود کافور تر صغو دو وخسن برزن دے | قدر د عنبر و صفہ نور تہ ارزان دے
لب ئے دوہ عقیق زما خاطر سکہ یمن دے

حن تہ ئے کہ دخزان موسم بہار کا | ھر طرف چہ گورے پہ خاطر نوے فکار کا
عکس ئے تازہ پہ یوہ دَم سوے گلزار کا | تل پہ چمنونو تن پیدا سرو چنار کا
ستا د سیمو سرو زما زړهٔ دے چمن دے

لاڈے پہ قلیلو مصفا دغم اوربل کڼہ | سوو تہ ئے د خلق کسہ اورچہ مشتعل کڼہ
نهٔ چہ زما دِل ئے دِ سکی حسن جلبل کڼہ | بلکہ پہ اوربل ئے دعالم کرہ اوربل کڼہ
دے نافہ دمشک و زما زړهٔ شهر ختن دے

دکن دِ بے دید نہ محرا لکہ تنور شهٔ | کار د غیرو چرے زما تن پکښے محرور شهٔ
شہ چہ دالم ملک ددل ھمہ فتور شهٔ | شک مکرہ مینہ ھم پیدا ری مسرور شهٔ
تهٔ دصندل ونہ زما دل لکہ کوکن دے

داشہ پہ چمن دگلو نرخ پہ دم سرد کرہ | دِل ئے لہ سرہ یو لکہ تهٔ پہ حسن فرد کرہ
جگی جگی شمهٔ خو کنارہ لہ مخہ برد کرہ | دحسن پہ جلاے شگفتہ تر نوی ورد کرہ
دِل وما ختیگ صنمہ ستا دغم وطن دے

---

یادکرنہ :- دا مخمس پہ چاپ نسخہ کښے نشتہ

# مخمس

چه همیش دِ حُسن ستا ئم    باور وکړه همه ستا یم
ستا له خویه په ژړا یم    له تا دوړ هم نارضا یم
داشه حال په درته وایم

مخ دِ زیب کا تر کلوته    منځیه دی پړے ماروته
په حلقوټے خسته زړونه    وړے تل کړے آزاروته
خوئ دِ نیک شه په دُعا یم

ډیرے مینے په عنا کړم    تر ویښتهٔ ئے نرے لاکړم
کهٔ اخته ئے په بلا کړم    تن به ستا ترسرفدا کړم
که لاس وی په دا هوا یم

بخت کجا چه مے ممتاز کا    د زړهٔ غوټ ئے راته باز کا
چه بنده ورسره راز کا    کوم دارے نصیب ساز کا
دیو مشتاق ئے دِ لقا یم

کله خلاص یم ستا له غمه　　دریغه ولیدے دوه دمه
نما پرے کړه هسے طمه　　چه کوټے پرین دم ضمه

کهٔ ته هیر زهٔ دِ رانجا یم

وے دِ مینه پوشیده کړم　　لار په بل طرف سیده کړه
له حیا مے جریده کړه　　لا دا قول دسیده کړه

زهٔ هجریؔ هسے شیدا یم

---

یادګیرنه
دا مخمس هم په چاپ نسخه کښے نشته

# فارسی برخہ[٤٣٥]

## انتخاب

ساقی بدہ پیالہ رہین غموم را | تا بشکند رگ گوئے غم چرخ شوم را
نقشے کہ از عدم بہ فضائے زمین رسید | شوید تمام دہر بہ نزود آن رقوم را
یک لقمۂ مراد نیابی بہ خوانِ دہر | خالی ز نوش شہد نیابیش موم را
دیدم ہزار قصرِ منقش بدشت پیر | بستد ملک ز شاہ و عطا کرد بوم را
ہر کس کہ نوش وصل غذا کرد یک دمے | آخر خورد زِ ہجر رکاب زقوم را
باما زِ نائے و چنگ دمے قصۂ بگوئے | بدرود کن حکایت ایران روم را
شاید کہ گل ز ملک عدم نامدے بدور | گرمی شنفت قصۂ جور و سموم را
اے دل بہ اقتضائے قضا نیستی صبور | زان ہکتی تکلف اہل رسوم را

ختک مدام دار بہ اتک جبین خویش
باشد صبا زِ ملک تو آورد شموم را

اندر خم زلف آں پری را | دیدم دو ہزار مشتری را
بنگر عجب از خدِ چو کافور | کاورد دو زلف عنبری را
طاعن شدہ حسن او زِ خوبی | سر خیل بتان آذری را
ہر ذیل وصال خویش پیوند | دارد ہمہ سعد اختری را
درویش بہ لمحہ وانماید | صد سالہ عذاب کافری را
تا پا بر کاب حسن بنہاد | داند ہمہ طور دلبری را
چشمش بہ رواج دلربائے | گردون زدہ سحر سامری را
انشاد غزل بہ این قوافی | پیرو شدہ شعر انوری را

وے گفت ختک غلام مائے
دادم بہ زمانہ مہتـ [illegible] را

مستی ز چشم مست تو افتاد در شراب — دو بیت میانِ هاله درخشد چو ماهتاب

چتر سیاه زده بالائے ابرویت — حقا که چون فلک شده با قرص آفتاب

اختر سیاه ماه بود در دیار چرخ — اندر سپهر تست بدور خورت شهاب

هر جا که شکست گشت دران طرهٔ دراز — کافور شد پدید بعینه زِ مشک ناب

مهر دگر نهاده چو دیهیم بر از گهر — تا عاشق نزار بسوزد ازان شباب

نازک بدن چو زیبق وابیض زبرگ آن — جانم چو زیبق است زِ عشقش در اضطراب

مفتونِ حسنِ او شده باهم گره زد تند — در زیر گوش ماه سریا به پیچ و تاب

چون کهکشان چرخ بفرقش فتاده راه — سنگ دُزد در دست کند عالمے خراب

به صفحه جبین مبین لعل تیکه بین — کز جنبشِ حیات وے آمد جهان کباب

گوهر که قیمتی است بدرگاه خسروان — اندر دهان تنگ تو گنج در خوش آب

خالت میانِ آبروے محراب در سجود — دارد زبان حال به خیر تو در حجاب

دارد ختک امید زِ الطاف ذوالجلال
کز حسن دلبران بشود زود کامیاب

ما بلبل عشقیم محبت چمن ماست — ما بین دو شعله مار در آتش وطن ماست

اشکم به گریبان و به مردم زِ غم یار — پیراهن آلوده بدم بین کفن ماست

هر کس که دمے عشق زند کے شده عاشق — اندک زِ محبت خبر آن کوهکن ماست

از ترس جدائی به وصالت مهے دلبر — پرواز صفت گم بشوم محو فن ماست

گفتم بدل گم شده خونت ز که جویم — گفتا برو از چاه ذقن جو ذقن ماست

چون سگ به گدا جنگ کند حاسد بیباک — غماز به پهلوے بت چین رغن ماست

آلام حوادث شده سهان به تنے ما — تا بار گرانِ غمِ هجران به تن ماست

هنگام شب آن زمزمهٔ ورد که خواند — پیوسته وظائف به دعایت دهن ماست
اظهار غم یار بهر کس نتوان کرد — از هجر صنم سوخته ماوا دکن ماست
هردم پے زر رفته و روہتی سرکویش
خاک در معشوقه تمامی سمن ماست

لاله را سرخ ازان پیرهن است — که بخون آب کے آلوده تن است
موکب او بود همیشه به سیر — گرچه امروز به ملک چمن است
من براه وفا شتابم ازانکه — در رهِ عشق همان بخته فن است
طبع خوبان از و کند تنفسیر — هر کرا جامهٔ زینت کفن است
نرود بازار شان نبود به وقار — عاشق را که کیسه پر ثمن است
دل شد از سینه مے نیابم باز — شاید افتاده بچاه ذقن است
ختک از خاک درش زان نرود — که در اسدهٔ جانان وطن است

زان مه به فلک دماغ دارد — کز خور رخ او فراغ دارد
نتوان مثلش به حسن اوراند — چون سود زبان چراغ دارد
نادیده به روے او گشودیم — جان طعنه بورد باغ دارد
ماهے که دلم ربودهٔ اوست — مابین دو گرزه کاغ دارد
حاشا که دو چشم مست دلدار — مستی نه کم از ایاغ دارد
بوئیده هر آنکه موے زلفش — بر عنبر و نافه لاغ دارد
در غم ز دو برگ و لاله ماه — کو جلوه بران کلاغ دارد
این دم که ز لطف ابر نیسان — هر سوز رونقره داغ دارد

